# افغانستان

## دسونې لویه لار




مؤلف :

آرنولد فلیچر

مترجم : دسرمحقق مستیال

عبدالجبار نادر



۱۳۶۹ لمریز

# افغانستان د سوبې لویه لار



## مؤلف: آرنولډ فلیچر



مترجم:

د سرمحقق رستیال

## عبدالجبار نادر





د افغانستان جمهوري د علومو اکاډمي
د پښتو څېړنو بین المللي مرکز
کابل ۱۹۶۹

د کتاب نوم --- افغانستان د سوبې لویه لار
لیکوال --- آرنولډ فلیچر
مترجم --- د سرمحقق مرستیال عبدالجبار نادر
مهتمم --- د سرمحقق مرستیال عبدالجبار نادر
خپرونکې موسسه --- د افغانستان د علومو اکاډمي
د چاپ کال --- ۱۳۶۹ لمریز
د چاپ شمېر --- ۱۵۰۰ ټوکه
د چاپ ځای --- د ښوونې او روزنې د وزارت مطبعه
پوښ لیکونه د --- نصیر هنر پښتون

---

# اهداء

دهیواد دخپلواکۍ دیواویایمې کالیزې په ویاړ چې
دآزادۍ دلارې شهیدانو سپیڅلي روح ته په دیر
درناوي سره وړاندې کوم.

(مترجم)

# فهرست

| سرلیک | مخ |
| --- | --- |
| یوولسم څپرکی ، دامپریالیزم معراج | ۲۱۳ |
| دولسم څپرکی ، امیر حبیب الله خان | ۲۳۵ |
| دیارلسم څپرکی ، دخپلواکی جگړه | ۲۵۵ |
| څوارلسم څپرکی ، دافغانستان څرګندیدنه | ۲۷۰ |
| پنځلسم څپرکی ، په افغانستان کی اردودور | ۲۹۴ |
| شپاړلسم څپرکی ، دنړیوالو جنګونو ترمنځ | ۳۱۳ |
| اووه لسم څپرکی ، افغانستان له ۱۹۴۵ څخه تر ۱۹۵۳ پوری | ۳۳۳ |
| اتلسم څپرکی ، افغانستان په ساړه جنګ کی | ۳۵۵ |
| نولسم څپرکی ، حال او آینده | ۳۸٤ |
| دالف ـ ضمیمه : پښتنی قبیلی | ۳۹۸ |
| دب ـ ضمیمه: افغانی کورنی | ٤۱۰ |
| یادښتونه | ٤۱۷ |
| مأخذونه | ٤۳۰ |



# مخکینۍ خبرې

دپښتو څېړنو بین المللی مرکز ویاړی چې دخپلو همیشنیو علمی خدمتونو په لړکې چې دګرانو هیوادوالو اوپه تېره بیاد تعلیمافته قشر له پاره یې د تحقیق اوڅېړنې او تالیف اوترجمې له لارې سرته رسولې دی، داځل بیایو داسې غوره اثرله انګرېزې ژبې څخه زموږ په خپله ژبه درنو لوستونکو ته وړاندې کوی چې دیوه ښه نیتی دقیق اودتاریخی پېښو په څېړولو کې بېطرفه لیکوال اوتاریخپوه له خوا لیکل شوی دی.

دغه اثر په حقیقت کې دمعاصر افغانستان د پېښو او واقیعو یو سیاسی تاریخ دی چې امریکایی مورخ ارنولدفلچرله خوا دډېرو کلونو څېړنو او هاند په نتیجه کې لیکل شوی دی او لیکوال دده په قول کړښښ کړی دی دافغانستان هغه نا اشنا او انحرافی بڼه، چې دیو شمېر بدبینو استعماری لیکوالو، سیلانیانو او نیمه پوهو اشخاصوله خوا تصویرشوی ده په سمه او خپلـه ربښتینې جوله کې نړیوالو او لوستونکوته وروپېژنی،

لکه چې وویل شول لیکوال دخپل لیکنې اصلی برخه دهغو پېښو او جریانونو ته وقف کړی ده چې له ۱۷۴۷ تر ۱۹۶۵ م (۱۱۲۶ـ ۱۳۴۴ هـ . ش) کلونو پورې وخت نیسی. لیکوال دافغانستان په لرغونی تاریخ اوهمدارنګه زموږ دهیواد په جغرافیای حالت باندې یوازې یوڅغلند شانته نظر اچوی چې دده په وینا دمعاصر افغانستان دتاریخ په پوهیدلو کې مرسته کوی اوضروری بریښی. همدارنګه زموږ دهېوادپه بیلا بیلو اتنیکی دلو لکه پښتنو، تاجکو، هزاره و، ازبکو اونورو باندې هم یو ځانګړی فصل لری اودهریوه فصل په باب لنډ تفصیل اوتحلیل کـوي اوحتی

یوشمیر هغه کلمې هم کار وي چې زموږ دخلکو په باب کله کله په سمه اویا هم ناسمه توګه داشخاصو تر منځ لري، خوایکوال کوښښ کړی دی هغه صفات چې زموږ د هیواد بېلا بېلا وګروته یوشمیر سیلانیانو اواستعماري لیکوالو منسوب کړي دي په سمه اومناسبه توګه استعمال کړي، اوباید په همدې نظرورته وکتل شي. او په ځینو ځایونو کې چې مترجم کوم عبارت یانوم حذف کړي دي هغه هم دهمدې هڅې له مخې شوي چې نامناسب اوبې باکانه کلمه یا کلمات دچا په مورد دبایدله چاپ څخه راونه وځي ځکه ګټه هیڅ نه لري او تاوان یې بې مورده دی.
البته هغه قضاوت چې داشخاصو اواميرانو اوپاچاهانو په باب دهغوی دکارنامو او کړووړو په هنداره کې تر لید و وروسته دهغوی په باب شوی دی دلیکوال دژور فکر، دقت او افاقیت څرګندوی دی او یقیناً هغه کوښښ کړی دی چې دهرچا مثبت او منفي اړخونه دمعتبرو ماخذونو اومنابعو تر کتلو اوڅیړلو وروسته سره پرتله کړي اولوستونکي ته یې په تقریباً بشپړه امانت داری سره وړاندې کوي:
په دې کې هیڅ شك نه شته چې دیو لیکوال ذهني، اجتماعي اوعلمي ځانګړنې د تاریخي پېښو اوشخصیتونو او ملتونو د تحلیل په برخه کې بشپړ او دبې خچه افاقیت سخت ګران کارګرځوي. خو دیوه بهرني تاریخپوه او دیوه پراخ نري لید درلودونکی واقع بین لیکوال په حیث ارنولډ فلچر دخپلو نورواندیوالانو په دله کې چې زموږ دهیواد دتاریخ په باب یې لیکنې کړې دي لوړ مقام ګټلی شي ځکه دهغه هیڅ دول عندي قضاوت اواحساسات دکتاب په هیڅ یوه برخه کې نه ترسترګو کېږي:
څرنګه چې لیکوال اساساً یوازې احمدشاه بابا تر محمد ظاهرشاه او دهغوی د زمانو موده (اود ظاهرشاه دوره هم صرف تر ۱۳۴۴ کال پورې احتوا کوي څیړلې ده او غالباً دانګریز انو دمداخلو یعنې د ۱۸۳۸ تر ۱۹۱۸ کال پورې دمودې په پام کې نیولو سره چې زموږدهیواد بهرنی پالیسي دانګریزی استعمار له خوا اداره کېږي زموږدهیواد مخکینی تاریخ په پام کې نه نیسي اودیوی بشپړی

اشتباه مرتکب کیږي کله چې په یوه ځای کې وایي «... دغه هیوادډیره سره راټول شوی ملت په تورګه ... له دوو پېړیونه زیات یې دیوه خپلواك او نیمه خپلواك هیوادپه ځیروجودلاره .» دلته په ښرګنده لیدل کیږي چې لیکوال زموږ دهیوادتوله پنځه زره کلنه تاریخي سابقه هیره کړې ده ، کـه نـه نوهیڅکله یې داډول جمله نه لیکله . اوکه چیرې د لیکوال منظورلـه « راټول شوی ملت» څخه همدغه نني افغانستان وي چې نه‌یوازې خپل هغه حدودیې له لاسه تللي دي چې یو وخت له کشمیره ترمشهده اوله بخارا څخه‌دعربو ترسمندرګی‌پورې رسیدل ، چې په یقیني توګه همداسې به وي ، نوبیاده قول دبرتانوي نفوذ په باب چې له ۱۸۳۸ څخه ۱۹۱۸ م پورې یې ددغه هیوادپه بهرني سیاست باندې دراود، تریوې اندازې څه ځای لري، خوهغه هم دبشپړي آزادۍ په ارتباط نه «موجودیت» په لحاظاو حتی دآزادۍ په ارتباط هم زموږ هیواد هیڅکله حتی په همدې موده کې هم مستعمره نه وه لکه چې پخپله لیکوال هم زموږدغه قول تائیدوي اوخپله پـورتـنـی‌خبـره نقضوي کله چې په یوه مخ کې دوه ځلې وایي ، «داهیوادهیڅکله یوه مستعمره نه وه اوخلك یې دحقارت لـه پاتې احساساتـو څخه خلاص دي ...اوافغانان چې هیڅکـلـه ترا مـپـریـا لیستي کـنـتـرول لا نـدې نـه دي را غلي .»

کله چې سړی دغه اثر په دقت سره له پیله ترپایه ولولي نودا ورته ثابتیږي چې لیکوال سره ددې چې یو بهرني لیکوال اوتاریخپوه دی خوزموږدهیواددغې برخې تاریخي پېښې یې په دومره سوچ اوهراړخیزتحقیق او تحلیل سره څیړلې دي چې حتی کله کله لوستونکی ته داسې نظرورکوي چې ته به وایې یوه تکړه افغاني تاریخپوه لیکلي دي. اوله همدې امله لوستونکي دې ته مجبوریږي چې هره موضوع ترپایه ولولي اواکثرلوستونکي به یقیناً ځان په دې مکلف وبولي چې ټول اثرپه یوه وخت کې ولولي نه دهغه یوه یاڅو برخې. دکتاب دغه جامعیت

---

* تایپي نسخه ۲۵۲ مخ . همداړنګه دپورتنی اشتباه مفصل ځواب دمحترم پوهاند ضمیر صافي په تقریظ کې لیدای شې.

تعمق او په زړه پورې مطالب یې موږ دې نتیجې ته رسوي چې د افغانستان د کابل سلطنت بیان نومې اثر ترڅنګ چې د ارنولډ فلیچر دغه اثر یو ډېر غوره انډول وبولو چې دیوه خارجي لیکوال له خوا زموږ د ټولنې او تاریخ په باب لیکلی شوی دی. دا اثر په ښېګڼو او دغه په څرګنوالي باندې د لا ښه پوهېدلو او قضاوت کولو له پاره زه لوستونکي ته رابولم چې په دې باب زموږ د څېړلو یو شمېر تکړه لیکوالو دغه نظریې ولولي چې د تقریظونو په حیث د اثر په باره کې د کتاب تر پیل د مخه راغلي دي او همدارنګه د مترجم او هم پخپله د لیکوال سریزې دي هم نه هېروي ځکه. دغه برخې د کتاب دا نوي پېژندنې او د لیکوال د کار او هدف په باب رڼا اچوي او البته د کتاب تر لوستلو وروسته به خپل قضاوت پخپله دغه په باب وکړي .

دا خبره هم د یادولو وړ بولم، چې د کتاب مترجم د سرمحقق مرستیال ښاغلي جبار ناصر د دغه اثر په ژباړلو کې ډېرې ستونزې ګاللې دي او د امانت ساتنې په خاطر یې حتی یو نیم ځای د مطالبو د رواني او بې تکلفي خیال هم نه دی ساتلی یا په بله وینا لوستونکي باید د بېخي آزادې ترجمې په فکر کې دایم نه اوسي ځکه د مترجم له خوا د امانت ساتنې په خاطر یو نیم ځای په اصطلاح تکي په تکي ژباړه او له بلې خوا د کتاب اصلي متن هم په ډېره عالي سویه او پېچلیو انګرېزي جملو او عباراتو کې لیکل شوی دی او په روانه ژبه د دغو پښتو کول ذاتاً د ځه ستونزو سبب ګرځي او ګرځېدلی دی. لاکن د مفهوم ښکلا او د محتوا او متن غنا یې له شکه دا نیمګړتیا تلافي کوي او کله چې سړی د کتاب یو څپرکی پیل کړي نو بیا خپله دغه پسې د بل او بیا د بل د لوستلو تلوسه او مینه یې تحریکېږي .

بله خبره چې باید په پام کې ونیول شي دغه داده چې د افغانستان د پخواني پاچا محمد ظاهرشاه د دورې د وروستیو کلونو جریانونه په زماني لحاظ د حال په زمانه کې افاده او بیان شوي دي او د لوستلو په وخت کې سړی فکر کوي چې ګواکې همدا اوس داسې او یا هسې څه پېښېږي. په داسې حال کې، چې همدغه بیان د نن ورځې په حساب د کابو دریو لسیزو د مخه کلونو پېښې دي او په همدغه

څلور

وخت کې کتاب لا دلیکلو په حال کې واو چاپ شوی هم نه و نو ځکه دوخت جریانات دحال دزماني په اساس بیان شوي دي نه دماضي په اساس . څرمره به ښه وای چې دغه کتاب له چاپېدو د یر ژر وروسته په پښتو ترجمه شوی وای خوله بده مرغه لکه څنګه چې تخنیک او پر مختلګ زموږ غوندی وروسته پاتې تولنو ته ځوځو کاله وروسته را رسیږي او کله هم یا نیمګړی او یا هیڅ نه رار سیږی ، نو همداغسی علوم او علمي پانګې هم د کتابونو په شکل وروسته هغوی ته ورر سیږي او تر څو چې بیا دغه کتابونه په ملي ژبو اړول کیږی چاپیږی او داستفادی ور ګرځي ،څو کلونه نور هم ور باندی تیر شوی وی. نو زموږ په هیواد کې هم یوزیات شمیر علمي اثار خصوصاً هغه چې تاریخي حیثیت لري په څو را ځند سره زموږ په خپلو ژبو هیواد والو ته رسیدلي دی او رسیږی چې یو مثال یې همدغه حاضر کتاب او دهغه پښتو ترجمه ده. دپښتوټولنې نړیوال مرکز چې دخپلو ملی او بین المللی وظایفو او اهدا فو لـه مخی تل هڅه کوی هغه اثارچې په بهر نیوژبو زموږ د هیواد او تولنی په باب لیکل شوی وي زموږ په خپله ژبه پښتو یې هیواد والو ته وړاندی کړی ،ددغسی زماني واټنونوتشی (خلا) د موضوع او مضمون داهمیت په پام کې نیولو سره ناځیزه ګڼي ځکه نو نه یوازی ددغه کتاب ترجمی ته اقدام وکړ بلکې یو شمیر نور اثار یې هم تر اوسه له بهرنیو ژبو را ترجمه کړی او چاپ کړی یې دي او یو شمیر نورهم لاتر اوسه یا د ترجمی انتظار باسي یا مطابعوته استول شوی او یاحتی لا مطبعې ته داستولو وار هم نه دی ور په برخه شوی :

دوروستیو اثار وغوره مثالونه: اوږ په افغانستان کی،خوشحال ختک دنهضتونو سالار ، اوسیدجمال الدین افغاني او داسی نوردی چې هریو یې دیرکلونه مخوا لیکل شوی دی ، په دی وروستیو دوودریو کلونو کی ترجمه شوی دی خو دبیلابیلو ستونزو له امله حتی مطبعې ته دتلو چانس هم نه دي ور په برخه شوی. اودغه نوی اوزړي مرغلری به لانوری هم پسی زړی شی:

په هرصورت ،دغه حاضر کتاب یعنی «افغانستان دسویې لو یه لاره» نومی اثر

پنځه

زموږ دګران هیواد معاصر تاریخ یعنی د ورستیو تقریباً دوه‌نیمو پیړیو پیښې او جریانونه په دومره خوږه ژبه ، هم‌اړخیز تحیق علمی میتو د او دیوه خارجي پوهاند له خوا تر ممکنه حده د بیطرفانه قضاوت په چوکاټ کې چمتو شوي دي چې زموږ دهیواد ددغې دورې دتاریخي پیښو د څیړلو ، تحلیلولو او پوهیدلو له‌پاره دتاریخ او په تیره بیاد سیا سي تاریخ‌دمینه والو پرمخلو به لاره پرا نستلې شي او یقین‌دی چې ځوان تاریخ پوهان اودتاریخ‌زده کوونکي به‌زموږدګران‌هیواد دهغو ستونزو په باب پوره معلومات ترلاسه کړي چې نننۍ ستونزې یې زیږنده او دسیاورځې اتکل ترې نتیجه ګیرې کدای شي .

په پای کې زه ددغه اثر لوستونکوته ددغه اثر په لوستلو کې دو ځل بیاددې ټکي یادونه هم ضروري بولم چې دکتاب لیکوال کـه زموږ د بیلا بیلو ورونو هیوادوالو په باب یولړ کلمې اوتوصیفي‌عبارات کارولي‌دي‌هغه‌یې هم‌یاله‌بهرنیو کتونکو او یا هم بنایي زموږ له ځینو خپلو هیوادوالو څخه او ریدلي وي ځکه هغه د لته بنایسته زیاته موده حتی دیوه عالي لیسې د مرستیال‌او دبهرونی اوروزنی وزارت دهمکار په توګه کار کړی دی . نو دغه کلمې اوتوصیفي عبارتونه چې ځینې ځایونه یې بناغلي مترجم لکه د یو شمیر معلوماتو په ارتباط په لمن لیکونو کې تصحیح کړلو او یا حتی‌حذفولوته‌مجبور شوی دی ، باید دیوه خارجي‌له نظره ورته وکتل او ولوستل شي نه زموږ دیوه خپل مورخ‌او لیکوال له‌نظره . داخبره باید ورزیاته کړوچې لیکوال علی‌العموم زموږ ټول هیوادوال‌وروڼه‌کنداوی اتنکی ګروپونه دي او کوچنی یازموږ په‌اصطلاح « ملیتونه » ، ټول یې په و اقعانیك نظرسره کتلی اوارزیابی‌کړی‌دی.

داخبره هم بایـد له یاده ونه باسوچې له بـده مرغـه دنفوسو په باب دلیکوال احصائیوی معلومات بیخي اتکـلي اونخمینی بڼه لري چې هومره زیات باور پرې کیدی نه شي اوهغه‌څه چې‌دکتاب په‌پای کې یې دبیلا بیلو پښتنی قبیلو په‌باب‌راوړي دي هم دیرلنډ اوناکافي دي.له دې نه پرته ، نورنو کتاب هومره چې علمي‌دی

شیبې

هغو مره دلچسپ او په زړه پورې هم دي او د معلوماتو یوه ښوراغوره منبع بلل کیدای شي.

په پای کې زه پوځل بیا وایم چې د پښتو څیړنو بین المللي مرکز په دغې دښې باندې وياړي او د غه اثر د خپلو بشپړ هیلو د ترسره کیدلو په لاره کې چې د ګرانو هیوادوالو د خدمت لپاره یې لري، یو بل غوره ګام بولي او د ښاغلي د سرمحقق مرستیال عبدالجبار ناشر هغو تولو مخو ته د قدر په سترګه ګوري چې د دغه کتاب په رازبارلو، د پاپلیکونو په تهیه کولو، چاپ ته د چمتو کولو او اهتمام په لاره کې یې سرته رسولي دي. او په دې لاره کې د دوی لازیات بري غواړم.

دسرمحقق مرستیال جلات خان حکمتي
د پښتو څیړنو د بین المللي مرکز رئیس
د زمري څلورمه ٤، ١٣٦٩ لمريز

# دمترجم لنډه پيژند ګلوي

د سر محقق مرستيال عبدالجبار نا در د نا در شاه زوی د احمد شاه لمسی اود الف خان کروسی دی . عبدالجبار نادر په ۱۳۲۱ هـ .ش کال کې د لغمان ولایت د علی خیلو په کلي کې زېږېدلی دی . ده خپل لومړنی، منځنی او ثانوي زده کړې د روښان په عالي ښوونځي کې پا ته رسولی



او خپله (B.A) يې د کابل پوهنتون داد بياتو پوهنځي د فلسفې او پښتو ادبياتو په څانګه کې په ۱۳۴۴ هـ .ش کال کې ترلاسه کړه .

عبدالجبار نادر د ۱۳۴۴هـ .ش کال د سلواغې په مياشت کې د هماغه وخت په پښتو ټولنه کې ( چې اوس د افغانستان د علوم اکاډمۍ یو انستیټوت دی) د مسلکي غړي په توګه مقرر شو . نوموړی څه موده وروسته د ۱۳۴۹ کال د کب په مياشت کې د ښوونې او روزنې د وزارت له خوا د انګریزي ژبې د تقویې لپاره استرالیا ته ولیږل شو. عبدالجبار نادر د انګریزي ژبې د کورس چې موده يې نه مياشت وه له پای ته رسولو نه وروسته د فلندرز په پوهنتون کې د اجتماعي اداری (Social Administration) په څانګه کې خپل تحصیل ته ادامه ورکړه او په ۱۳۵۱ هـ . ش کال کې بیرته خپل ګران وطن ته راستون شو او د پخوا په شان يې د تألیف او ترجمې په رياست کې د ژبې د مهارتونو په څانګه کې د درسي کتابونه د لیکو ندی ته دوام ورکړ :

عبدالجبار نادر د يو شمیر درسي کتابونو له لیکلو وروسته د ۱۳۵۴هـ .ش کال د چنګاښ په ۲۴ نیټه د امریکې متحده ایالاتو ته سفر وکړ او دا تلسو میاشتو په موده کې يې خپله (M,S,E,D) یعنې د ماستري شهادتنامه د جنوبي کلفورنیا له پوهنتون څخه د ژبې

اتـه

دمهارتونو ( Language Arts ) په څانګه کې لاس ته راوړه او د ۱۳۵٦ کال په پیل کې بېرته هېواد ته ستون شو. دی اوس د افغانستان د علومو اکاډمۍ د پښتو څېړنو په بین المللي مرکز کې د علمي غړي په حیث کار کوي.

دی د پښتو ژبې یو تکړه لیکوال او محقق دی او ډېر زیات شمېر علمي ـ تحقیقي مقالې یې په انګریزي او پښتو دواړو ژبو لیکلې دي چې د هېواد په معتبرو مجلو لکه: د کابل مجله، د عرفان مجله، پښتو مجله چې د پوهنې په ژبو خپرونې کوي او ډېر نورې پښتو د مخه په ورځپاڼو کې لکه اصلاح، انیس، هېواد او د زېرې په جریده کې خپرې شوې دي.

عبدالجبار ناظر له انګریزي ژبې څخه په پښتو ژبه یو شمېر ترجمې هم لري چې په مجلو او د اکاډمۍ په یو شمېر مجموعو کې خپرې شوې دي. همدارنګه ده په ډېرو علمي کنفرانسونو، سمپوزیمونو او سیمینارونو کې ګډون کړی دی او خپلې علمي ـ تحقیقاتي مقالې یې لوستې دي.

د ده چاپ شوي آثار:

۱ـ «د ښوونې تعلیمات او پرمختګ» له انګریزي څخه په پښتو ژبه ترجمه چې د ښوونې او روزنې د وزارت له خوا په ۱۳۵٤ هـ. ش کال کې چاپ شوې ده.

۲ـ «په لغمان کې دواده دودونه» چاپ ته چمتو دی.

۳ـ «سل ستر مسلمانان» له انګریزي څخه په پښتو ژبه ترجمې لاندې دی او ډېر ژر به چاپ ته چمتو شي.

٤ـ د میسن (Masson) سفرنامه له انګریزي څخه په پښتو ژبه ترجمه کېږي او ډېر ژر به چاپ ته چمتو شي.

۵ـ «د ژبې مهارتونه» (Language Aats) تألیف چاپ ته چمتو دی.

٦ـ «ادبي لیکنې» تألیف چاپ ته چمتو دی.

۷ـ «د پښتو دژوندانه د دریو اساسي پړاوونو دودونه» تألیف ژر به چاپ ته چمتو شي.

۸ـ د پښتو اصطلاحاتو او محاورو پښتو ـ انګلیسي قاموس. چاپ ته چمتو دی.

۹ـ «افغانستان د سوبې لویه لار» چې اوس ستاسو د استفادې لپاره ستاسو په واک کې دی

نه

# کوروداني

کوم گټور کارونه چې د پښتو څېړنو بین المللي مرکز محترم رئیس د سر محقق مرستیال ښاغلي جلالت خان حکمتي د دغه مغتنم اثر چاپ ته د لیږ او او تر خپل نظر د تیرولو په لار کې اوچت کړي دي، هغه د قدر او ستاینې ور دي. زه د ده دغه همکاري ته د قدر په سترګه ګورم او کوروداني ورته وایم.

زه به د سر محقق مرستیال ښاغلي محمدهاشم رحیمي ګټورې لارښوونې او مشورې د ژوندانه تر پایه پورې هېرې نکړم. کومې اخلاقي مرستې چې دغه مهربان او د ښه نیت خاوند له ما سره د دغه کتاب د ځینو اصطلاحاتو او نورو پېچلو عباراتو د ترجمو د روانې په برخه کې کړي دي د هغو وزن دومره درونددی چې هیڅکله به د فراموشي سیلاب نشي وړای. هر کله چې ما ښاغلي رحیمي ته مراجعه کړې ده، ده زما ستونزې په ورین تندي سره حل کړي دي ځکه نو تر زړه منه کوم او کوروداني ورته وایم.

همدا رنګه د ښوونې او روزنې د مطبعې له محترم رئیس دیپلوم انجینر عبدالکبیر کاکړ څخه هم د زړه له کومې منه کوم چې د دغه کتاب د چاپ چارو ته یې پوره توجه وکړه او هغه یې چټکې کړې. د محترم کاکړ د زیاتې پاملرنې له برکته وچې کتاب په ډېر ښکلي قطع او صحافت سره په خپل وخت کې له چاپ څخه راووت. یو ځل بیا ورته کوروداني وایم. پته دې پاتې نشي چې د طباعتي چارو محترم مدیر عبدالفتاح، د حروف چیني او مونوتایپ د څانګې آمر ښاغلي عبدالروف او مرستیال ښاغلي عزیزالله او د حروف چیني او مونوتایپ د څانګې او د طبعي حروفي، صحافي له ټولو هغو خوېندو او ورونو څخه چې د دغه کتاب د چاپ د چارو په سمون او ښه والي کې یې په پوره حوصله مندۍ او اخلاص سره کار کړی دی د زړه له کومې منه کوم او کوروداني ورته وایم.

د سر محقق مرستیال عبدالجبار نادر

## د پوهاند دکتور مجاور احمد زیار اواك (نظر)

د محقق عبدالجبار نادر سا پی ژباړه می وکتله ، هماغسې چې له اره یو علمي تحقیقي اثر دی او دلیکوال د دیرو اوږدو کلونو څیړنو، گرویږنو او هاند و هڅو بیره او او زیږنده ده دغسی دژباړونکی ازترلزه دکال دوه زیارونو او ربړونو پا یله ( نتیجه) بلل کیدای شي . ښاغلی ژباړونکی نه تش دیوه ژباړونکی بلکی ترهرڅه د مخه دیوه محقق په توگه ددغه گټور کتاب پر توولو ارخونو ځان پوه کړی او ښه یې سهلې اوبیا یې پربوه ښکلې روانه او له دی سره سره پربوه معیاری وزمه پښتو را اړولی دی .

دنیو پا نگی ( در ونما یه محترا ) له پلوه هم دارونسدی ځا نگی او بیا پخپله دپښتو اړوونکی امرنه ( انتخاب) د ستاینی وړ دی . دا داسی یوه غوره علمی تحقیقی اثر دی چی تربل هر ختیځو پوهاند یی ، که مخکینی دی که وروستنی دافغانانو تولنیز ژوند ښه ترڅیړ لی دی. هم پکی تاریخی ارخ څیړل شوی هم اتنیک، هم فرهنگي هم اقتصادی ، هم اجتماعي ، هم سیاسی . دا کتاب یوگټور اومعتبر اثردی او زیات مواد لری ځکه یې دچاپ سپارښتنه کوم .

له کله راهیسی چی ښاغلی ساپی ددغه ستر علمی کتاب په ژبا ړنه لا س پو ری کړی ما سم ورسره ندپله مرسته او لارښوونه هم ملگری کړی دی . په رښتیا چی ( انگریزی ) دنورو ارو پا یی پر مختللونو مها ل فرهنگـو ژبو غورـندی له هره پلوه لیکلاری اوستایل‌له مخی له پښتو اونورو ژ باتو ختیزوژ بو سره خو را بی‌خرته او بی‌گچه توپیر لری، غرندلی ( جملی) یی دیری پیچلی اودچا خبره دیری ادبی او علمی اوورسره ورسره دخورا رنگا رنگو گرنو ( ایدیمونو)او څرگندنو (اکسپرشنونو الخ

او په پای کې تر هرڅه دمخه دیوی ناپایه علمي ویي پانګی له پلوه زښته ز یا ته ا رته او پراخه کوتلې ا و غښتلی ژ به ده . له دې تړ لو ستونزو سره سره ما وکړا ی شول ښاغلی ساپی سمی سیخی لیاری ته را وڅکو م چی دچا په وینا هم سیخ سوی نه وی او هم کباب، هم علمی امانت په دویمه ( پښتو) ژبه کی ښه ترا را خوندی کړي او هم دیوی لنډی تنګی سیمه ییزی پښتو پرځای‌څه ناڅه کره او معیاری نګه ا وخوږ ه پښتو پرکار واچوی:

زه پرخپل وارد ښاغلی محقق عبدالجبار نادر ساپی دغه ز یار ستایم او د سر څیړاند( سرمحقق ) دمرستیال علمی پوړ ی ته یی له هره پلوه پوره ا و بشپړ بولم . هیله ده چی په را تلونکی کی دلاز یا تو علمی څیړنو او ژبا ړنی له توغه ووځي . بری ورته غواړم .

پوهاند دوکتور مجاور احمد زیار

## تقریظ

دافغانستان دعلومواکاډمی د پښتو څیړنود بین‌المللی مرکز ښاغلی رئیس صاحب !

زما احترامات اوښی هیلی په لطفاً ومنئ .

د ښاغلی جبار نادر له خوا ترجمه شوی اثر چی ( افغانستان د فتوحاتـولو په لار نومیزی او دسرمحقق د مرستیالی علمی رتبی ته دترفیع لپاره تاسوته وړاندی شوی او تاسوماته د ۱۸-۱-۲-۶۵ مکتوب په ضمیمه دتقریظ او کـره کتنی لپاره استولی وماهغه سرتر پایه په ډیرغور اودقت وکوت اوله اصل کتاب سره می هم مقابله کړ.

نودادی ستا سو دغوښتنی سره خپل نظر داسی لیکم .

الف- داصل کتاب او دمؤلف په باره کی :

۱- دا دافغانستان پوسیاسی تاریخ‌دی چی زیاتره له ۱۷٤۷م کال نه تر ۱۹٦۵م کال پوری واقعات څیړی . مؤلف هم لکه دنورو په شان د ۱۷٤۷م کال چی دلوی احمدشاه بابا دجلوس نیټه ده ، دیومستقل‌دولت په حیث دافغانستان د منځ ته راتلو نیټه گڼی ، چی دایوه مطلقه‌اشتباه ده چی یوازی دغه مؤلف نه بلکی ډیرونورو باندینی مؤرخینوهم دغه اشتبا کړی ده .

حقیقت خودادی که چیری د افغانستان نیمه تاریخی او نیمه روایتی مستقل‌دولتونه لکه دپارا داتا ، دکیانیانواو داسپه سلطنتی کورنیونه تیرشو ، چی له یونیم زر کالونه پی زیات‌عمر کړی دی ، دمیلادنه‌دمخه په دریمه پیړی کی‌دافغانستان دیونانوـ باختری مستقل دولت‌اوبیادساکانو ، زابلیانو ، کوشانیانوروتبیل شاهانـواوکابلشاهانـواو

نور وخپلواك دولتونه دي ، چې داتول تر اسلام نه د مخه هغه ملي او مستقل دولتونه وو چې مرکزونه يې دافغانستان پهخاروه کې دننه موجود وواو نژدې يوزرکالهيې دوام کړي دی. تراسلام‌نه وروسته هم دصفاريانو ،غزنويانو ، غوريانو، کرتانو،د هرات دتيموريانو او نور مستقل او ملي دولتونه دي چې دا هم څه کم زر کاله دوام کوي او پايتختونه يې داوسني افغانستان په يو او يا په بل ځاى کې موقعيت درلود . لنده دا چې دافغانستان دغه موجوده هيواد دخپل پنځه زره کلن تاريخ په سلو کې ۸۵ يعنې په جهان کې تر هر بل هيواد نه زيات خپل ژوند او خپل موجوديت نه يوازې د يو مستقل هيواد په توگه بلکې په‌منطقه، کې دلويو امپراتورى گانو د مرکز په حيث‌تير کړى دى .

کله چې دغه کتاب چاپيږى، نو د مؤلف دغې اشتباه ته بايدگوته و نيوله شي او ديو تعليق او تحشي په ترڅ کې دې‌اصلاح کړى شي :

۲ـ دغه کتاب دافغانستان د اوسيدونکو خلکو او د هغو دکړو وړو په باره کې هم غږيږي او په دغه باره کې ډير مفيد معلومات راکوي . په دغسې موضوعاتو کې چې څوك غږيږي ضرور خپل احساس او عواطف او برداشت په‌خپلو خبرو کې منعکس کوي دښمنان يوڅه، او دوستان بل څه وايي :

دافغانستان دخلکو اودهغو دکړو وړو په باره کې په‌خپله مؤلف هم داسې ليکي : ( دمقدمې ۵ مخ‌اودمتن ٤٠ مخ) «دهغو له دلې نه چې ددې هيواد ( افغانستان) له پيښو ډك تاريخ يې ليکلى دى ډير لږ شمير يې د دوى دوستان وو . دا ټول تاريخ ليکونکي يا سيلانيان او يا خو د انگريزانو افسران وو . لومړنى دلې ( سيلانيان ) زياتره لـږ څه ليدلي لږ څه پوهيدلي او ډيرڅه يې اختراع کړيدي .

وروستي دلې ( انگريزى افسران) زياتره دخپل تيرى او تجاوز د موجه او وبرحق ښودلو لپاره او يا دخپلې وظيفې د يوې برخې په توگه خپلې ليکنې کړيدي چې په هغې کې رښتيا او حقيقت اوعينيت چندان نه ليدل کيږى »

«ځرنګه چې دوی د متجاوزو په حیث له وسلې سره په لاس ، د افغانانو خاورې ته ننوتي وو ، نو په آزادۍ مینو او زړورو افغانانو طبعاً هغوته ګلان او ترخه ځوابونه ورکړیدي.»

« نودغو خلکو چې دافغانانو کوم تصویر کښلی ، ځکه بد شکله اوبد قواره دی.»

په دغه کتاب کې لکه ځنګه چې محترم مؤلف وایي «هڅه شوې ده چې ددښمنانو له خوا د افغانانو دغه غلط اوبد شکله ښودل شوی تصویر اصلاح کړی شي او دافغانانو ښکلې اوواقعي څېره ترسیم کاندی.» دا چې پخپله مؤلف دافغانانو تصویر ځرنګه کښلی ، زه پدې باره کې نور څه نه وایم او له لوستونکو څخه غوا ړم چې پخپله دغه کتاب ولولی، وبه وینی چې دپردیو لیکوالانو په ډله کې دغه امریکائی ډاکټرارنولډ فلیچر دټولې منطقي دخلکو په نسبت ، دافغانانو ډیر ښکلې اوانساني څېره تصویر کړیده:

زه پخپله ګران او محترم مؤلف ته نه ددې لپاره چې زموږ دافغانانو ښه او ښکلې تصویریې کښلی ، خپل د احترام او عقیدت ګلونه وړاندې کوم بلکې ددې لپاره چې دافغانانو په متعلق یې حقایق او واقعیتونه لیکلي دي :

۳ـ مؤرخ یوازې یوساده مورخ نه دی، بلکې د انګریزی ژبې یو زبردست او پیاوړی ادیب هم دی . او له همدې کبله یې خپل دغه کتا ب په ډیره خوږه ژبه دانګریزی ژبې په ډیره عالي سطح کې لیکلی دی . سربیره په دې چې له ډیرو معتبرو منابعو نه یې استفاده کړې ده پخپله هم دڅو کالو لپاره په افغانستان کې اوسیدلی او ګرزیدلی اودافغانانو له مختلفو طبقاتو اومختلفو قشرونو په تیره بیا له روشنفکرانو او سیاستمدارانو سره یې لیدلي کتلي او د افغانستان دهغه وخت د ښوونې او روزنې په ډیرعالي مرکز یعنې دحبیبیې په عالي لیسه کې دمدیر دمرستیال په توګه خپله وظیفه اجرا کړې ده. همدا وجه ده چې دده دغه اثر له ټولو کمي اوکیفي عالي خصوصیاتونه برخوردار شوی دی :

ب ـ دمترجم او دترجمې په باره کې

۱ـ محترم جبار نادر له ډیر پخوا نه پېژنم . دی یو پرکاره او پرتلاشه سړی او په پښتو ژبه یې ښه لیکلوال دی او ډیر څه یې لیکلي او چاپ شوي دي. ترهرڅه دمخه دده دغه ذوق ستایم چې دغسې یو عالي او مفید کتاب یې دترجمې لپاره انتخاب کړی دی.

۲ـ په اصل کتاب کې ځینې داسې مطالب شته چې هغه توضیح ، تعلیق ا و تحشیه غواړي چې تر ډیره ځایه پورې مترجم دغه کار هم کړی دی .

۳ـ لکه څنګه چې دمخه مې وویل، دغه کتاب دمؤلف له خوا دانګریزي ژبې په ډیره عالي سطح لیکل شوی دی. د دغسې اثارو ترجمه‌کول په رښتیا چې ګران کار دی. خومترجم ددې کتاب په ترجمه کولو کې بیخې ډیر زحمت ګاللی دی . په تیره بیا چې ده نه دی غوښتي چې په آزاد سبک یې ترجمه‌کاندې . مبادې چې دده مقصد به دا و چې په ترجمه کې باید د امانت اصل مراعات کړی شي ، نوځکه د لفظ په لفظ ترجمه کول ورته ډیره ګرانه تمامه شوې ده:

ج ـ خلص، نتیجه:

زه په دې عقیده یم چې مونږ افغانان د ترجمې په مرحله کې یو او د تحقیق او تألیف مرحلې ته لا تراوسه پورې نه یو ختلي. ځکه مونږ پخپله ژبه کې په کافي اندازه مواد، متون او منابع په لاس کې نه لرو هغه څه چې لرو هغه نورو خلکو لیکلي او نورو خلکو پخپلو ژبو لیکلي او چاپ کړیدي، چې مونږ زیاتره دمغو په ژبو نه پوهېږو. نو بنا په دې هغه څوك چې متون او منابع ترجمه کوي په حقیقت کې مونږ ته مواد او منابع په لاس را کوي چې دا ډیر مهم او دستاینې ور کار دی :

له بلې خوا زمونږ په هیواد کې ډیر لږ خلك شته چې د تحقیق په اصولو او میتودونو باندې پوهېږي او هم دتحقیق او تألیف ترمنځه توپیر کولای شي . نوبنا په دې مونږ په دغسې احوالو او شرایطو کې ترهرڅه نه پرومبې د غسې ترجمو ته زیات ضرورت لرو چې محترم جبار نادر پخپل دغسې ترجمې سره زمونږ یواحتیاج رفع کړی دی.

زه په داسې حال کې چې محترم جبار نادر ته ددې ارزښتناک کتاب دترجمې په قبال کې یوه لوړه رتبه یعنې دمحقق له رتبې نه دسرمحقق دمرستیالی علمي رتبې ته دختلو اوورکو لوتوصیه او پیشنهاد کوم، ددې غنیمت کتاب ددېر ژر چاپولو لپاره هم اصرار اوتاکید کوم او په دغه لار کې لـکه ددغسې نورو گټوړو کتابونو دترجمه کولو لپاره محترم مترجم ته زیات بریالیتوبونه غواړم .

په درناوی

پوهاند محمد حسن ضمیر صافي

دکابل پوهنتون دتاریخ اوفلسفې په پوهنځي کې

دافغانستان دتاریخ استاد

# تقریظ

## افغانستان د فتوحاتو لویه لار

افغانستان دفتوحاتو لو یه لاره (Afghanistan High way of Conquest) انگریزی اثر دامریکایی یوه ارنولد فلیچرلهخوا په (۳۲۵) مخونو، (۱۹) فصلونو، دریوضمیمو او (۲۲۵) یاد ښتونو کی تألیف شوی دی .

ارنولد فلیچر په ۱۹۱۷م کی دامریکا متحدو ایالتونو په شیکاگو کی زیږیدلی دی. ده خپلـه لیسا نسه (B.A) د لین فیلډ ( Linfield ) له پوهنځی څخه اوماستری (M.A) او ډاکتری (Ph.D) دجنوبی کلیفورنیا له پوهنتون څخه لاس ته را وړی دی . ښاغلی فلیچر یووخت په افغانستان کی دحبیبی دلیسی مرستیال و، اوس په لاس ا نجلس کی دویلی په پوهنځی کی د پوهنوا ل په حیث تدریس کوی :

ارنولد فلیچر ددغه اثر په را منځ ته کولو کی له (۱۳۳) غوره منا بعو څخه استفا ده کړی او دری کاله یی پرله پسی دکتاب لیکلو ته وقف کړی دی . ارنولد فلیچر ددغه کتاب له لیکلو څخه ستر هدف دا و چی افغانستان بهرنیانوته ورو پیژنی . دده په قول حتی دافغانستان نوم دیوه لیری پراته،لنډ پیژندل شوی او نا آشناهیوادمفهوم افاده کوی.

ارنولدفلیچر له لاس ته راغلیو منابعو څخه په ژوره توگه استفا ده کړی او هغه یی دیوه دقیق مؤرخ په توگه تحلیل کړی او په زړه پوری نتیجه یی تری اخستی ده . مؤلف نه یوازی له منابعو څخه معقوله گټه اخستی بلـکی د یوه آگاه لیکوال په حیث یی خپلی منابع چاڼ کړی دی. په دی دول دهدخپل اثر دبرابرولو لپاره بوخ تاد او ایښی دی.

دکتاب مؤلف دتاریخ لیکنی د اصولو په اساس د یوه افا قي اثر دلیکلو تکل کړی او

په دې برخه کې تر زياتې اندازې بريالي بريښي . ده دافغانانو دلرغوني تاريخ پيښو ته په اجمالي توګه نظر اچولی او هغه يې په دويم فصل کې را وړي دي.

په اصل کې د (افغانستان دفتوحاتو لويه لار ) نومی اثر يو سياسي تاريخ دی چې زياتره له ۱۷۴۷ کال يعنې دلوی احمد شاه بابا دپاچاکيد و له پيل څخه تر ۱۹۶۵ کال پورې د افغانستان سياسي حالات شرحه کړي. خوسره د دی هم په دغه تاريخ کې دافغانستان دخلکو نژادي جوړښت له پامه غورځيدلی نه دی :

ارنولډ فليچر دخپل کتاب په مقدمه کې وايي: « دغه کتاب په اساسي توګه دسياسي تاريخ او په خاص ډول دافغانستان دننيو پيښو اود بهرنيو قوتونو په وړاندې دافغان اولس دعکس العملونو انځور ګڼل کيږي. »

په عمومي ډول ددغه انګريزي اثر دمحتوی او متن ارزښت هغه وخت لا زيات څرګنديږي چې يو څوك هغه تر پايه ولولي، خو څرنګه چې په ګران هيواد افغانستان کې له‌انګريزي ژبې سره زيات کسان آشنايي نه لري، نو دکتاب دياد شوی ارزښت پر بنياد پښتو څيړنو بين‌المللي مرکز هود وکړ چې هغه په پښتو واړوی : په هغه علمي غونډه کې‌چې په ۱۳۶۰ کال‌کې دمرکز له خوا جوړه او د مرحوم استاد پوهاند حبيبي په‌ګډون زيات شمير پوهانو پکې برخه‌اخستې وه، پريکړه‌وشوه چې دغه او ر ارزښت لرونکي اثردې دلوستونکو او ميه والو لپاره په پښتو ژبه ترجمه شي. په پخه ادبي انګريزي ليکل شوی کتاب پښتو ترجمه څه آسان کار نه دی، خو ددغسې يوه درانده علمي کار دسرته رسولو له پاره د پښتو څيړنو بين‌المللي‌مرکز علمي غړی اوپه انګريزي ژبه کې دپوره تسلط خاوند محقق محترم عبد الجبار نادر علاقمندی وښودله. دپښتو څيړنو بين‌المللي مرکز دخپل علمي پلان سره سم نوموړی اثر په (۱۳۶۰) کال کې دپښتو ترجمې په منظور محترم محقق نادر ته وسپاره .

محترم نادر ديوی علمي پروژ ی په توګه دکتاب پښتو ترجمه پيل اودز يار په ګاللوسره يې په تاکلي وخت‌کې هغه په ډير دقت پای ته ورسوله . محترم محقق نادر دترجمې په ترڅ کې تل له خپلو همکارانو سره سلا مشوري کړی اوزيات زيار

او کړاوېږ زغملي دي. ده حتی په غیر رسمي وخت کی هم دکتاب له ترجمې څخه ډډه کړی نه ده :

محترم نادر په ترجمه کی له پوره امانت داری څخه کار اخستی ، مفاهیم یی بشپړ خوندي ساتلي او هغه یی په روانه او خوږه ژبه اړولي دي. دمترجم دکاریو څوره خصوصیت دا هم دی چی هغه ځای ځای په ځینو تیرو تنو کره کتنه کړی او په لمن لیک کی یی رڼا پری اچولی ده. څومره چی په ترجمه کی لازمی ده ، محترم نادر تر هغی زیات غور کړی او دکتاب دمشکل متن د ترجمی لپاره یی زښت زیار پرځان منلی او په سطحی توگه تری تیر شوی نه دی:

دا نگرېزی په لحاظ دداسی یوه مشکل کتاب ترجمه دمحترم نادرله نه ستړی کیدونکی هڅی اوهاند څخه غیرممکنه نه وه. د دغسې یوه دراند علمی کار په سرته رسولو سره محترم نادر دمحقق له رتبې څخه دسرمحقق دمرستیال علمی رتبی ته دترفیع کولو مستحق دی. زه په داسی حال کی چی دمحقق له رتبی څخه دسرمحقق دمرستیالی علمی رتبی ته دمحترم عبدالجبار نادر ترفیع تائید وم ، سپارښتنه کوم چی دغه غوره ترجمه شوی اثردی دنورو محققینو اومینه والو داستفادی لپاره ژرترژره چاپ اوخپور شي :

دسر محقق مرستیال نصر الله سو بمن منگل

## د مترجم سریزه

نن دپرون زیږنده ده. نن ته په ژبه کې ( حال) او پرون ته ( ماضي) وایي . زموږ اوسنی ژوند له ماضي سره نه شلیدونکې ټینګه رابطه لري او دهمدغه ارتباط له امله دی چې هرسړی له دې سره مینه لري چې د خپلې ټولنې د ماضي په باب معلومات ولري چې دلاس ته راوړلو یوه ډیره اغیزمنه لاریې د تاریخ اود تاریخي آثارو مطالعه ده؛ خو لږ کسان موندل شي چې دغه هیله یې ترسره شوې وي . ښایي علت یې داوي چې موږته د خپلې ټولنې پیژندل څه آسان کار نه دی اوڅرمره چې داوسنی جامعې پیژندنه یوه ګرانه خبره ده ترهغه لا زیات سخته ده چې له لرغونې ټولنې څخه خبر اوسو. د هرې ټولنې که د(ماضي وي یا دحال ) دسمې پیژندنې اودټولنې دافرادو ترمنځ دمناسباتو دښه درک لپاره دڅیړنو او پلټنو دځانګړو روشونو پر بنسټ په پوره آزاده او دیموکراتیکه فضا کې پرله پسې ژور مطالعات ضرور دي . دغسې مطالعات به هغه وخت ښه او په زړه پورې نتیجه ورکړي چې یومحقق یا مؤرخ دنوروشیانو په لړکې دخپلې تحقیقي موضوع داساسي مسایلو په باب دفلسفي نظرخاوند وي اوددې ترڅنګه د تاریخ له فلسفي او میتودولوژی سره پوره آشناوي. په دې باب پوهاند داکتر محمد حسن کاکړ داسې وایي ، « مګر دفلسفي نظریاتو د معرفت او حصول لومړنی شرط دا دی چې ذهن دمختلفو نظریاتو د فهم لپاره خلاص پریښودل شي. پیشرفت او تکامل که په علمي یا فلسفي ساحه کې وي هغه وخت ښه ممکن کیدلی شي چې دهمدغسې نظریاتو دظهور لپاره لاره هواره وي. که داسې نه وي د ژوند دبیلو بیلو اړخونو په باب به مختلفې فلسفي په منظم اومنسجم

کې

دول ظهور ونګړي او انسان به په ذهني لحاظ متحجر او ځای په ځای پاتې وي .
چيرته چې دنظرياتو دظهور لپاره کوښښ کيږي هلته نظر اوعلم ته په مخ ځي د نقيضو
او مختلفو افکارو له تصادم څخه نوي راوځي او وړاندې تګ د وام کوي . په
واقع کې تاريخ دهمدغسې حال نتيجه ده.» (۱)

تاريخ د ماضي د يوې هنداري په څېر زمونږ داسلافو، دسلاطينو ، اميرانو
حکمرانانو ، اربابانو او پاچاهانو کارنامې منعکسوي او مونږ ته دهغوی د سياسي
اجتماعي او اقتصادي ژوندانه دمختلفو اړخونو په باب معلومات راکوي او له هغو
تاريخي او تړلنيزو پيښو نه مو خبروي چې په يوه مشخصه زمانه او په يو ټاکلي محل
کې درازراز علتونو له امله منځ ته راغلي وي. زمونږ د اسلافو کارنامې او اتل واکي
( قهرماني ) داوسني او دراتلونکي نسل لپاره د الهام يوه منبع او سرمشق دی . نو پکارده
نه ده چې اکثراً ويل کيږي« رومبنی دوروستني پل دی » . د رومبينو دژوندانه په باب
هراړخيزه څيړنه،يوازې دتاريخي پوهې په مرسته سرته رسيدای‌شي‌اودتاريخي پلټنو په
رڼا کې دهغو زمانو او تړلنو په برخه کې سم او دقيق معلومات لاس ته راوړل کيدا ی
شي چې دوی پکښې ژوند او حکمراني کوله . دا تاريخ دی چې مونږ ته د خپلو رومبينو
چې په هغو کې سلاطين ،اميران ، حکمرانان ، پاچاهان، ملي قهرمانان ، تړلنيز
شخصيتونه، سياستمداران ، پوهان ، نوابغ ، خلاق هنرمندان، نقاشان ، مجسمه
جوړونکي او داسې نور شامل دي نه بيوګرافي ، سياسي او اجتماعي افکارو او نظرياتو
سره د آشنا کيدو امکانات په لاس راکوي او مونږ له خپلو تاريخي وياړنو څخه خبر
وي. ځکه نو له تاريخ سره علاقه او دتاريخي مسايلو او پيښو په باب پوهه ضروري
او ګټوره ده:

لکه څنګه چې ديوه ملت د ذهني اوروحي معرفت لپاره د دودونو ، عنعناتو
رسم او رواج‌او کلتور مطالعه ضرور ده، همدا دول دافغاني تاريخ لرغوني وي که

(۱) تاريخ څه ته وايي؟ دپروفيسر ای. ايچ کارائر . دمحمد حسن کاکړ ترجمه . د کابل
پوهنتون دادبياتوپوهنځي دچاپ کال ، ۱۳۴۷، سريزه دج . مخ .

معاصر ، سیاسي وی که اقتصادي او یا فلسفي دکښلو او پوهید لـو لپا ره د هغو قومونو په برخه کې چې د افغان ملت تشکیلوی یوځه پو هه په کار ده. د دغو قومونو ترمنځ وفاداري او سیالي له پخوا نه موجودي وی او لاتر اوسه پوري د یوه مشکل په حیث پاتي دی. بې له شکه ځخه دافغانانوتاریخ ددی هیواد دجغرافیایي موقعیت توپوګرافي او اقلیم په واسطه سخت تر اغیزی لاندې راغلي دی. غالباً د دی هیواد غرنی سیمی او د دغو سیمو شدید اقلیمونو د افغانانو د خوی خصلات او کړو وړو دهغو اړخونو په وده کې مرسته کړی ده چې هغه عبارت دی له :

لـه آزادي سره زیاته مینه ، قوم یا قبیلي ته وفاداري او د افغانانو غښتلیتوب چې د دغو خصوصیتونـو له امله افغانانو داسیا پـه تاریـخ کې نظر و خپل شمیر ته خو را لوی نقش لرلی دی. له آزادی سره د ا فغا نانو دزیا تي مینې بیلګې د افغان او انګلیس په‌لومړی،دوهم اودریم جنګ کې موجوددی :

مځکې موویل چې تار یخ زمونږ د اسلا فـوکار نامی منعکسوی ، تا ر یخي ا و تـو لنیزی پیښې بیا نـوی چې هره پیښه ځانته علت لری اوهر علت معلـول . د لتـه دا پوښتنه را منځ ته کیږی چې« اجتماعي پیښې ولی پیښیـږی ؟ »په بل عبارت ا نسا ن په خپلو کړوکې‌څومره اوځنګه آزادی لری؟ دا پوښتنه په واقع کې یوازې‌دتاریخ په فلسفي پوري اړه نه لري بلکې د ټول انساني کردار سوال دی اود فلسفي موضـو ع تشکیلوی :

پروفیسرکار وایی «... هرهغه‌ځه چې پیښیږی علت یا علتونه لری اوپه بل ډول به پیښ شوی نه وای ترڅویی په علت یاعلتونوکې یوبل څه پیښ شوی نه وای . » له دی ځخه داسي څرګندیږی چې د ه په تاریخ کـې دعلت په میندلود یره زوره اچو لی ده چې‌داروش په تاریخ کې سړی د پیچلو او مجرد و فلسفي مسألوپه لور بیایی او دا ویره شته چې تاریخي مطالعه به بالاخره په فلسفي مطا لعی وا ړو ی که څه هم دی په خپله د غه ټکی ته پوره متوجه دی چې بحثونه‌مجر د فلسفي نه کړی اونظر یا ت، یوازې په تا ریخي مشخصوشواهد وبنا وښي. سره له دی‌هم دابه ښه وای چې‌ده دننایجواوتأثیر اتوپه‌باب هم په هماغه اندازه لیکنی کړی وای . داجتماعي پیښو تاثیرات ښوول عملي او تطبیقي

فایده نه لري او دنیا مطلوبو پیښو په مخنیوي کي ترڅه حده برڅکیدلی شي. مگر د پروفیسر کار په نظر د معین توب فلسفه قطعاً میخانیکي نه ده چي دهغه په قرار به انساني فردیوه کمال عنصر په حیث یوازي متابعت کوي . دی وایي چي «دجامعي او فرد انکشاف اوږه په اوږه په مخ ځي او یو په بل تاثیر کوي.» دی دهمدغه فکر په بنا دفرد به دینامیزم او ابتکاري او اخلاقي ارادي معتقد دی او په دغه باب د مارکس دغه نظر یه تائید وي چي وایي : «تاریخ هیڅ نه کوي هغه زیاته شتمني په تصرف کي نه لري. هیڅ جنگ و نه کوي. دغه انسان حقیقي ژوندی انسان دی چي هر څه کوي ، تملك کوي او جنگونه کوي. » دغه حقیقي ژوندی انسان» په خپله دجامعي زیږنده او په جامعه کي داخل دی. مجرد فرد نه دی چي دعنا په حیث به له جامعي نه بهر په کوم هسك ځای کي مقام ولري او له هغه ځایه به جامعه او حوادث زیږوي او رهبري به کوي . (۱)

دوهم ټکی یوازي په تاریخ پوري اړه لري هغه دا پوښتنه ده چي مونږ له تاریخي پیښو نه څنگه خبریږو؟ » څنگه چي دتاریخي حقایقو ثبتول او دهغه تعبیر کول مونږ ته دماضي طرح او دحرکت سمت راښیي له دی امله ثبت کوونکي اومؤرخ دماضي په معرفي کولو کي اساسي اهمیت لري . خو پروفیسر کار د ماضي دفهم په برخه کي دمعین توب دا صل په کلك نظر قایم دی. دی وایي « پیښو کښېوونکو ، لیکوونکو او مؤرخانو دنسلونو مرلاس دماضي طرح تاکلې ده بی له دی چي دهغه په باب څه وکړل شي .» دغه تېینگار له حدنه زیات معلومیږي دومره زیات چي د مؤرخ رول نفي کوي . په دی کي څه شك نه شته چي د ماضي په باب ټول تاریخي حقایق زمونږ لاس ته راتللی نه شي او هغه څه چي هم لاس ته راتللی شي دخاص نظر په رڼا کي ثبت شوي دي یعني عندي دي او عیني نه دي . (۲)

دغه محدودیت هر وخت په تاریخ کې لیده شي. خو دپورته سوال ځواب د دغي پوښتني په ځواب کي پیندل کیدل شي چي په دغسي حال کي دمؤرخ وظیفه څه ده؟

---

۱ـ دهمدی کتاب دداوهه مخونه وگوری .

۲ـ دهمدی کتاب دهه اوومخونه وگوری .

مؤرخ دحقایقو دتعبیر او توجیه نه علاوه یا تر هغه دمخه دغه وظیفه لري چې دتار یخ لیکنې دعصري میتود په رڼا کې هغه سوړې ډکې کړي کومې چې دنیمګړو او محدود و حقایقو له امله پیدا شوې دي او دغه دنړ و اجتماعي علومو په مرسته وکړي. نو په دې حساب یو مؤرخ باید :

۱ـ دتاریخ لیکنې یو منظم او دقیق روش او میتود تعقیب کړي :

۲ـ دتاریخ دماهیت او فلسفې په باب دیو منسجم او منطقي نظر خاوند وي:

۳ـ د نورو بشري او حتی تر څه حده د ساینسي علومو په باب لږ تر لږه عمومي معلومات و لري :

٤ـ ذهین او ابتکاري وي او داستنتاج پوره قدرت ولري . دا ګټور جي التن لا حتی په دې فکر دی چې تخصصي مؤرخ یوازې هغه څوک کیدلی شي چې دلوړو شهادتنامو لپاره یې لومړي تخصصي تیسسونه او وروسته تحقیقي اثار لیکلي وي او ورسره جوخت په تدریس بوخت وي .

۵ـ له هر هغه څه نه چې واقعیت او حقیقت وي سترګې پټې نکړي :

٦ـ واقعیتونه او حقایق تحریف نـکړي او د هغو په څرګند ونو کې د هیڅ الحاظ ونه ساتي او دیو رښتني مدافع وکیل په توګه له حق او عدالت څخه دفاع وکړي :

دغه کتاب چې « افغانستان دسو بې لریه لار نو میزي » دارنولد فلیچر ددریو کلونو د زیار نتیجه ده . ده دغه تحقیق په افغا نستان کې د خپل ما موریت په موده کې سرته رسولی دی. دی دپوونی او روزنی وزا رت له خوا استخدام شوی و او د حبیبی په پوونځي کې یې دمرستیال په حیث وظیفه سرتـه رسوله. ددغه کتاب په لیکلو کې مؤ لف له معتبرو مأخذونو څخه کار اخیستی دی چې زیا تره یې په افغاني کتابتونو نو کې نشته. په کتاب کې له منابعو او اطلاعاتو څخه دارنولد فلیچر داستفادې طرز ساده او سطحي نه دی هسې نه ده چې ده دیوې موضوع په باب تش اطلاعات سره ټمبلولي او دانګلستان دیوه مؤرخ کالنګ ووډ په الفا ظو « دبیاتي او سریښ تا ریخ یـې کښلي وي او یا یـې دیوه ژورنالست او جذباتي لیکوال په حیث هنګامه جوړونکې لیکنې کړې وي :

په دغه کتاب کې ارنولډ فليچر د يو مدقق عالم په څېر ځان ښکاره او اوچت کړيدی ځکه چې دی د خپلو مواد و او اطلاعاتو سره الی اوثقه، توب ته ځير شويدی او هغه يې چاڼ کړيدی . هغه، يې ترينه انتخاب او غوره کړيدی چې دده په نظر سم او مهم ښکاره شويدی .په دی ډول ده هغه څه ته توجه کړيده چې د يو علمي اثر بنسټ جوړوي او په دی توگه يې خپل اثر داډمن، باوری او مستند گرزولی دی. خوسره له دی هم يو څو ځايه ځينې معلوماتي تيروتنې لری چې هغه مايه‌جو ا شي. کې اصلاح کړيدی. خو دغه نيمگړ تياوی په هغه څه سره جبيره شوی چې افاقي توب ورته وايه‌شي . په‌بشری علوموکې په تيره‌بيا په تاريخ کې پوره افاقي توب تراوسه ليدل‌شوی نه‌دی. امکان لری چې يوه ورځ دغسی وشي خوهغه اوس يو اړيان دی سره لـه دی هم انسان د دغسی بصيرتونو خاوندگرزيدلی او دپاتنی دغسی لارې يې ايستلی دی چې په هغوسره علم له پروپاگند، تلقين او عندی ليکنوڅخه په واضح ډول بيليدلی‌شي ؛ البته دارنولډ فليچر په زمانه‌کې انسان د پوهې دغسی سطحې ته تريوی اندازی پوری جلت شوی او هغه شرايط چې دهغوپه رڼا کې ارنولډ فليچرخپل دغه کتاب ليکلی دی دده دليکنوله‌افاقي توب سره مرسته کړيـده :

دارنولډ فليچر د کتاب يوبل‌خصوصيت دادی چې نسبتاً جامع دی. په دغه اثرکې د افغانستان حـدودو اربعه، مرقوميت، اقليم، پيداوار، دغرونو لړی او دهغوی جوړښت دجهيلونو اقتصادی اهميت او حکومتي تشکيلات شرح شوی او هم دجامعې دمشرانو، تاريخي شخصيتونو ملي قهرمانانو او نامتو مذهبی کسانو يادوونـه شويده او د افغانستان نژادی‌ډلی‌هم تشريح شويدی. دافغانستان ولسونه په قومي لحاظ هم شرح شريـدی. په دغه اثرکې د ځينو پښتنې قبيلونو مونه او دهغو خيلونه ، ځانـگې او پښې هم په لنډ دول بيان شريدی او همدا شان په لنډ دول ځينی پښتنې دودونه هم تشريح شويـدی.

ددغه کتاب ياد ښتونه‌هم ډيرگټوراومهم بريښي، ځکه نوماهغه دگرانو لوستونکو لپاره‌ترجمه‌کړيدی .دغه‌کتاب په اساسي توگه‌له‌سياسي‌تاريخ اوپه‌خاصه توگه دافغانستان دکورنيو واقعاتـو او بهرنيو ځراکونوپه مقابل کې دهغه دعکس العمل سره اړه لری.

د افغانستان په تاریخ کې د نورو هیوادو په پرتله ټولنیزو او اقتصادي عواملو ارزښت لږلې دی ځکه چې نن ورځ دی له دیرش کاله مخکې پورې هغوی په نسبي توګه بې حرکته وو. په دې توګه مونټ ستوارت، الفنستن (د کابل سلطنت بیان) چې یوه نیمه پیړی د مخه لیکل شوی دی لا تراوسه پورې دشلمې پیړی په پیل کې د افغاني ټولنې په باب یو خوراغېزمن اثر دی. په افغانستان کې د ټولنیزو او اقتصادي بدلون د پروسې سطحې توب یا ورو ګام هم د تاریخ په اوږدو کې ځینې عوامل او علتونه لرلي دي چې کیدای شي یو له هغو علتونو څخه دتخت او پاچاهي پرسر باندې د امیرانو، پاچاهانو او واکمنانو ترمنځ شخړې او جنګړې او دکورنیو ترمنځ مخالفتونه وي :

څرنګه چې دهیواد له پخواني پس منظر سره څه آشنایي داوسني افغانستان د پیژندنې لپاره نه یوازې ضروري ده بلکې ارزښتناکه هم ده. نو دهمدې ضرورت له مخې و چې مؤلف دخپل کتاب یو څپرکی د پخواني تاریخ لنډې کتنې ته وقف کړیدی. په همدې دلیل دافغاني قبیلو د افغاني نژادي ګروپونو لنډه څېړنه هم پکښې شامله ده. دغه دواړه څپرکي په ضروري توګه هرڅه دي خو جامع نه دي .

لنډه دا چې دغه کتاب یو ډیر ګټور اثر دی چې دمحتوی له مخې خورا غني دی او زیات ارزښتناک مواد لري. په دغه کتاب کې زمونږ د تاریخ په باب ډیر حقایق څرګند شوي او هغو واقعیتونو ته ګوته نیول شویده چې دځینو مؤرخانو په آثارو او لیکنو کې ور ته نه پام اړول شوی او نه ور ته ګوته نیول شوی ده . ددغه اثر لوستل به دپښتو دواقعیت او حقیقت او تاریخي مسایلو په باب دتاریخ دشاګردانو شکونه اوترديد څخه ناخه لرې کړي او هغوی به له پټو حقایقو سره آشنا کړي . دغه کتاب باید کلونه کلونه وړاندې په پښتو او دری اړول شوی وای . له ښه مرغه دافغانستان د علومو اکاډمۍ له تأسیس نه یو څو کاله وروسته دپښتو څېړنو دبین المللي مرکز دتوجه اوزیار له امله و چې یو څو مهم کتابونه یې د ترجمې لپاره وټاکل چې یو له دغو کتابونو څخه دارنولډ فلیچر اثر و. ددغه کتاب ګټور توب او غنیتوب دخدای بښلي علامه پوهاند عبدالحی حبیبي چې دافغانستان یونامتو مؤرخ پوخ لیکوال او تکړه محقق و او تر خپل

ف

مرکۍ یوځی کاله پخوا دافغانستان داطلاعاتو او کلتور دوزارت علمی مشاورو له خوا تائید او په پښتو ژبه دهغه دترجمې سپارښتنه یې کړې وه . هماغه و چې د غه کتاب ما ته د پښتو څیړنو دبین‌المللي مرکز دریاست له خوا په ۱۳۶۰ ه.ش کال کې دیوی پروژی په په حیث راکړل شو او ما د هغه په ترجمه لاس پورې کړ. په ترجمه کې امانتداری په نظر کې نیول شوی ده ، مفاهیم له روانی نسه قربان شوی نه دی او له پوره دقت څخه کار اخیستل شویدی چې داتول دترجمې لپاره ضروری دي . په دغه کتاب کې یو ځای بل ځای ځینې جملې ، ځینې ټکي ،او یو ځو پراگرافونه په اخلاقی لحاظ حذف شوی دی خو هیڅ برخه یې تحریف شوی او مسخ شوی نه ده .

زما لپاره دخوشالۍ ځای دی چې ددغه اثر په پښتو کړلو سره په عمومي دول دتاریخ ټولو علاقمندانو او په خاصه توگه پښتو او پښتنو ته د فرهنگی خدمت په لار کې یو وړوکی گام اوچتوم :

عبدالجبار ، نادر

خیرخانه مینه ، کابل

دسلواغه ۱۲-۱۳۶۶ ه.ش کال

# د مؤلف لنډه پیژندګلوي

ارنولډ فليچر په ۱۹۱۷ کې په شيکاګو کې زېږېدلی دی. ده خپله دلیسانس (B.A) شهادتنامه دلين فيلډ له پوهنځي ( Linfield ) څخه او دماستري (M.A) او دډاکتري (Ph.D) شهادتنامې يې د جنوبي کلفورنيا له پوهنتون څخه لاس ته راوړېدې چېرته چې هغه داستاد په حيث خدمت کړيدی. ښاغلی فليچر چې يو وخت په افغانستان کې په کابل کې دحبيبيې د ښوونځي ، مرستيال و اوس په لاس انجلس کې دويلې په پوهنځي کې دپوهنوال په حيث کار کوي. دی دآسيا په ټولنه کې د افغانستان دشورا غړی دی او دافغاني حکومت په غوښتنه په متحده ايالاتو کې د مشاور په توګه افغاني محصلينو ته لارښوونه کوي •. دی د ليونګ ورلډ هسټري ( Living World History ) يعنې د نړۍ دمعاصر تاريخ ګډ مؤلف دی چې په ۱۹۵۷ کې خپور شوېدی.

• دلته ددې خبرې يادونه په کار ده چې د افغاني حکومت نه مطلب اوسنی افغاني حکومت نه دی بلکې ترانقلاب د مخه افغاني حکومت دی. ده د سلطنتي رژيم په وخت کې افغاني محصلينو ته دمشاور په توګه لارښوونه کوله.

# سریزه

د توماس کار لایل دوینا له مخې یو بدمرغه ملت هغه دی چې ډیر زیات تا ریخ لري . ددغه تعریف په اساس افغانستان باید واقعاً بدمرغه وي. برسیره پردی ، هغوی چې ددی هیواد له پیښو ډك تاریخ یې ثبت کړی دی ډیر لږ دهغوی د وستا ن وو. دا ټول تاریخ لیکونکی زیاتره سیلانیان اویا دبرتانیې د اردو متقاعد افسران وو . لومړني دلي زیاتره لږ لیدلي، لږ پوهیدلي او ډیر څه یې اختراع کړی دی. وروستی دلي زیاتره دتیري او تجاوز دضمیمې په توگه خپله څیړنه ترسره کړې او په دی توگه یې د عینیت د څرگندولو لږ امکان درلود چې زیاتو کسانو یې خپله لیندده داسې را کښلې ده لکه دهغوی نیکونو چې په کریسی کې را کښلې وه .

ددغه کتاب هدف د یو انحرافي تصو یر سمو ل دی او مینه یې دیو ملت په توگه له ۱۷٤۷ نه تراوسه پوری دافغانستان له تاریخ سره ده. که څه هم دآسیا په تا ریخ کې ددغه سیمې اهمیت په ز رگونو کالو سابقه لري، دهغه د څپل شوو خلکو او نسکور شوو امپراتورو یو لړلید ته ژور ه پاملرنه ددغه اثر له حدودونه بهره ده . څر نگه چې دهیواد له پخوانی پس منظرسره څه آشنایي دمعاصر افغانستان دپیژندنې لپاره ضر وري ده، نوړو څیړکې دهغه دپخوانی تاریخلیکې کتنې ته وقف شوې دی . په همدی دلیل دافغان دنژادي گروپونو لنډه څیړنه هم پکې شامله ده. دغه دواړه څیړکې په ضروري توگه هرڅه دی، خو جامع نه دی. دافغانستان دپخوانی تاریخ او نژاد پیژندنې په باره کې ډیر کتابونه لیکل کیدای شي :

هغه څیړنه چې دا کتاب د هغې په اساس را منځته شوی دی په هغو دریو کلونو

کې تر سره شوی ده چې لیکوال دافغانستان دښوونې اوروزنې دو زارت له خوا استخدام شوی و او په ور پسې لیدنو کې چې دبیلا بیلو مؤسسو دسخاوت لـه املـه ممکنې شوی وی . زیاتره غیرافغانی منابع و پلټل شوی اوله دغو منابعو څخه دهند ددفتر دکتابتون (India Office Library) او دبرتانیې دموزیم ( British Museum) کلیکسیونونه خورا ارزښتناك ثابت شول . برسیره پردی ، لیکوال وکړی شول چې دافغانستان دښوونې اوروزنې او مطبوعاتو په وزارتونو او همدارنګـه دکابل په موزیم کې موجودی قلمي نسخې او مواد مطالعه کړی. دافغانستان دمعاصر تاریخ د برخې لپاره نژدی دتیرو شلو کالو د تړلو دولتي مشرانو سره خبری اتری خورا مهمې وی چې په دغو کې صدراعظمان لکـه سردار شاه محمود او محمد داود، د بهرنیو چارو وزیران سردار علي‌محمد او محمد هاشم میوندوال، عبدالستار شالیزی ، زلمي‌خان داکتر عبدالقیوم ، میرامان‌الدین انصاری او دځینو نورو یوه دله شامله وه چې د شمیر دزیاتوالی له املـه یې یادونه نه شي کیدای ؛ د دغوی د مهربانیو اوصمیمیت نه زوره منته کوم.

دغه کتاب په اساسی توګه له سیاسی تاریخاو په خاصه توګه د افغانستان له داخلی واقعاتو او دبهرنیو ځواکونو په مقابل کې د دغو په مقابل کې ددغو له عکس العمل سره اړه لری. دافغانستان په تاریخ کې دنورو هیوادونو په پرتلـه ټولنیزو او اقتصادي عواملو لږ اهمیت درلودلی دی، ځکـه چې نژدی له دیرش کاله مخکې پوری دغوی په نسبي توګه بې‌حرکته وو. په دی توګه دمونسټوارټ الفنسټون ( کابل‌سلطنت بیان) چې یوه نیمه پیړی دمخه لیکل شوی دی لا تر اوسه دشلمې پیړی په پیل کې دافغانی ټولنې په باب یو خورا منل شوی اثر دی. دغه حقیقت تر یوی اندازی دهغه‌لیکوال‌دنبوغ ننبه ده، خو په افغانستان کې دټولنیز او اقتصادی بد لون وروګام هم څرګند وی . که څه هم تیر دیرش کلونه داریانو ونکی دیناميزم دمنځ ته راتللو څرګند وی دی او دغه‌هیواد اوس هم په چټکې سره بد لون مومی :

شو

دمځنی ختیځ او یا مرکزی آسیا په باره کی دهر اثر په برخه کی یوه ناچاره ستونزه داده چی دعربی ، پارسی ، پښتو یا ترکی کلمو تلفظ په انګلیسی تورو ورکړل شی . ددغه ساحی لیکوالانو یو دسر تمبګی فردیت ساتلی دی او خپلو اسلافو ته یی لزه پاملرنـه کړی ده. البته په دغو ژبو کی یو شمیر اوازونه شته چی هیڅ انګلیسی معادل نه اری. لیکوال په دی برخه کی دکوم سیستماتیک حل کوښښ نه دی کړی او یوازی هغه کلمی یی کښلی دی چی دغه اوازونه پکښی دهغوی د تورو په خورا معمول تلفظ کی شامل دی او یا د معذرت په وړاندی کولو سره هغه ډول چی ده ته یی اواز ښکاره شوی لیکلی دی .

باید زما دښځی فیرن Fern دتشویق له امله دهغې ژوره منـنـه وشـی . لورین ایکاردت ( Lorraine Eckardt ) او شانون ستیک ( Shannon Stack ) دنسخی په مقابلـه کی زیاته مرسته کړی ، همـاغسی چی د کارنـل پوهنتون د مطبعی اډیټورانو ډیپارتمنت ( Editorial Department of Cornell University Press ) دا رنـګه مرسته کړی ده .

لیکوال دیر افغانان پیژنی چی دهغوی دوستی ته زیات ارزښت ورکوی. دغه کتاب هغوی او تولو هغو افغانانو ته په مینه اهدا کیږی چی میلمه پالنه دهغوی لپاره یوه کلتوری ضروری چاره ده، خو د هغوی تهذیب او مهربانی له دغه ضرورت نه اوښتی وه :

ARNOLD FLETCHER — Sherman Oaks, California April, 1965

زه یوساده اپریدلی هلک یم
دوطن له غرونو لری پروت یم
(پښتو ستاره)

# لومړی څپرکی

## څرګنه

دافغانستان نوم ډیر وبهرنیو ته دیوه لری پراته نامشهور اوزیاتره دیوه نا آشنا هیواد مانا لری ځکه چې دپارسی وروستاری ستان (کوریاوطن) ډیر زیات دهیواد نارښتینی اوافسانه یی ځایږ دنومونو په پرپی کې راځی. دافغانستان له پیښو دکی مخنیو (سابقو) اواوسنی اهمیت سره سره لږشمیر غربیان ددغه هیواد دموقعیت په برخه کې سم اودقیق معلومات لری او زیاتروته یې د دغه هیواد خلک او سیاست ناڅرګند دي.

دغه معاصر ابهام څه ناڅه دیوه دائمی جغرافیایی موقعیت په نتیجه کی منځ ته راغلي دی چې دسیاحت دعادي سرکړی نه دومره لیرې دی چې دفضایی سفر دپیل نه دمخه افغانستان ته تګګ ګران و. خو دغه وضع زیاتره دهیواد دولسی اوډیری دسیاسی موقف په نتیجه کې رامنځ ته شوې وه. ځکه چې افغانان (چې دڅوکې پرمخ دبل هرهیواد دخلکو په څیر په آزادی مین دي) ددوو تیرو ځواکونو سیالو قدرتونو (برتانوی هند او تزاری روسیه) ترمنځ راګیر شوي وو، ددې دوه ګړنو خطر و نرسره یې په دې تو ګه مقابله وکړه چې یوځو داږ دیوه په مقابل کې بوه زیاته غیر طبیعي ویره

ولري او بل خپلي پولي (سرحدونه) پرته د کوم اتفاقي گرځندوی څخه نورو ټولو پر مخ وتړي؛

دغه گوښه توب چې افغانستان ته یې د «گوښه گیرو سلطنت» نوم ورکړی، وبه ځای خبره وه. په ټولو نولسمه پیړۍ کې د بریتانیې او روسیې اجنټانو ددې لپاره ځانونه په افغاني غړ وتوا وغوندل یو کې پټ کړي یا په سرحدي بازارونو کې گرځیدل چې د جاسوسی، ورانکاری او سړی وژنی اعمال سرته ورسوی.

برتانوی رومانتیکو لیکوالو ته به بنیادی دغه فعالیتونه یو «ستره لوبه» ښکاریده؛ خو افغانانو ته یوه ډیره جدی موضوع وه او هره گړی دا امکان موجود و چې ملی خپلواکی له لاسه ورکړی. اصلاً د همدی دلیل له مخی و چې افغانانو بهرني سیلانیان افغانستان ته له راتگ څخه زړه تورن کول او د څو استثناآتو نه پرته یې بهر ته دخپلو اتباعو مسافرت بند کړی و. دغه سیاست تقریباً دیرش کاله پخوا پای ته ورسیده او هیواد همدا اوس پیل کړی دی له مغه گوښه توب څخه راووځي چې ددې سیاست لابدي نتیجه وه.

په حقیقت کې کومې سیمې چې دافغانستان ملت تشکیلوي داشیا په تاریخ کې یې زیات اهمیت درلودلی دی. دغه ځمکې دقوي امپراتورۍ په مرکز کې پرتې وې او کله کله دسیالو قوتونو ترمنځ یو دال و. دغه سیمه تل دتگ راتگ معبر پاتې شوي ده په کومه چې مهاجرین تللي دي او زیات یرغلونه چې دآسیا سیاسی جوړښت ته یې بڼه ورکړې ده له همدې لارې نه شوي دي.

په افغانستان کې چې کوم تاریخي شخصیتونه زیږیدلي یا اوسیدلي دي د هغو د نومونو لست اوږد دی یعنې شمیر یې زیات دی او ددې هیواد د زیاتو شکایتونو څخه یو مهم شکایت دا هم دی چې له دغو شخصیتونو څخه زیاتره یې معمولاً ایرانی ښودل شوي دي. په لست کې دزردشت، رخشانی (دلوی سکندر ناوې)، فردوسی سلطان محمود غزنوي، بایزید، انصاري، فرخي، خسرو او دجامي نومونه هم شته. گوډ تیمور د معاصر افغانستان په شمالی سرحدونو کې زیږیدلي دي، همدا

رنگه ابن سینا (او بسینا) چې د اسلام له ستر و فیلسوفانو څخه و هم د معاصر افغانستان په شمالي سرحدونو کې دنیاته راغلی دی .

له افغانستان سره دلچسپي په مؤرخ یا لرغون پېژندونکي پورې منحصر نه ده :
دغه هیواد دیو سره راتول شوي ملت په توګه د وه سوه پنځوس زره (۲۵۰۰۰۰) مربع میله مساحت لري او له دوو پېړیو نه زیات یې د یوه خپلواك یا نیمه خپلواك هیواد په څیر وجرد لاره. دغه هیواد د دوولسو او څوارلسو ملیونو ترمنځ نفوس لري چې خلک یې میړني او جنګیالي دي کوم چې په خپل عصر کې ایران او هندوستان له پاچاهانو ګمارلي دي. (۱) ]

دغه هیواد له شوروی اتحاد سره اووه سوه میله سرحد لري او د اشیاد اصلي لویې وچې دلاری په اوږدو کې دهند تر نیمې وچې پورې پروت دی. اوس افغاني حکومت د دغه هیواد د عصري کولو لپاره هر اړخیزه پروګرام تر لاس لاندی نیولی دی او په کومه اندازه چې دغه هیواد د یوه مسوول او دیموکراتیک حکومت د منځ ته راوستلو په لارکې کار کړی دی په اشیاکې بل هیڅ هیواد په دغه اندازه کار نه دی کړی:

د شکل له مخې افغانستان یو نامنظم څلورضلعي دي چې په شمالي معتدل له سیمه کې د شمالي عرض البلد د ۲۹ درجو او ۳۰ دقیقو او ۳۸ درجو او ۳۰ دقیقو او د ختیځ طول البلد ۶۸ درجو ۳۰ دقیقو او ۷۵ درجو ترمنځ پروت دی. د شمال له لوري له آسیایي روسیې مخصوصاً زیات د ازبکستان، تاجکستان او ترکمنستان جمهوریتونو سره سرحد لري:
لویدیځ او جنوب لویدیځ ته یې ایران او ایرانی بلوچستان واقع دي. ختیځ او جنوب ختیځې خواته یې پاکستان او پاکستانی بلوچستان واقع دي. په شمال ختیځ کې یې یوه جګه نری برخه تر چین پورې رسېږي څو دلو روالي او سرکونو دنشتوالي له کبله د دغو هیوادونو ترمنځ راکړه ورکړه نشته .

افغانستان د دغې لوړې مځکې ختیځه برخه تشکیلوی چې د سمندر (بحر) له سطحې نه جګه ده او جغرافیه پوهان هغه د ایران د لوړې سطحې په نامه پېژني . د دغه هیواد په شمال کې د آمو سیند خواته ، په ختیځ کې د سند د جلګې ( Ind usplain )

لو ړ ته او په جنوب کې د بلوچستان د دښتو خوا ته مخ ځوړ (مايل) کيږي. په يوه هيواد کې چې د ټولې ساحې درې پر پنځمه برخه يې غرنی ده د ډيرا غيز ناك فزيکي جوړښت يې هماغه د لويو غرونو غبرگه شوي لړی ده چې د هند وکش په مرغه نوم لري ٭ او افغانستان پر دوو برخو ويشي چې له شمال ختيځ نه تر جنوب ، لويديځ پورې تقريباً ٤٠ ميله اوږد والي لري (٢). هندوکش د هندوستان د متوس غرنی بام غربې برخه ده او که څه هم هندوکش تر خپل هملوله غرونو له لړيو يعنې د قراقرم ، پامير او د همالياد غرونو له لړيو څخه ټيټ دی خو بياهم په نړۍ کې يو له ډيرو لوړ و او اغيزمنو لړيو څخه ده ؛

هندوکش له ځوانو غرونو څخه چې په زياته اندازه گرنايټ ( granite ) يو ډول کلکه ډبره ده چې په ودانيو کې ترينه کار اخيستل کيږي (مترجم ) چې گنيس (gneiss) ( پړ ښه ) او کاني سليټ (micasIats) ورسره گډدي جوړ شوی دی ؛ د هندوکش ډيره پراخه برخه ونې نه لري او د غه حالت څه ناڅه دورانکارو بې فکره انسانانو او وږ و بزو په واسطه منځ ته راغلی دی. د غرونو نصواری لغړی څو کې چې شنه آسمان ته پورته کيږی ، د افغانستان د زياتې طبيعي منظرې لپاره پس منظر جوړوي. همدارنگه په ډيرو لاړ و منځنی ختيځ او هند له لوړی اشيا څخه رابيلوی او د افغانستان په تاريخ کې زياته ستره او مهمې پيښې د دغو غرونو د هسکوار تفاعاتو په جنوب کې پيښې شوې دي. له هندوکش څخه ډيرې درې چې د اشياد تاريخ د زياتو پېښو شاهدي ور کوي تيرې شوی دي. له دغو درو څخه چې له ختيځ نه د لويديځ لوري ته امتدادلري ډيرې مهمې يې انجومن (Anjuman) خاواك ، پرانديف ( Parandev ) سالنگ کوشان ، چهاردر (Charder) ، خارزار ، شيبار ، حاجيگك او د آق رواط

---

٭ دليکوال خبره سمه نه ده ځکه چې «دهند» کلمه داوبو معنا لري او «کش» داوبو منبع او ذخيرې ته وايي. د هندوکش کلمه په اصل کې «هندوکس» وه او «هندوکوه» هم ورته وايي. څرنگه چې دهندوکش په کلمه کې څه ر کاکت پروت دی ، نو در کاکت دليری کولو په خا طر له «هندوکس» نه «هندوکش» جوړ شوی دی (مترجم)

(٢) بل مثال يې دهندوانی کلمه ده .

(Akrobat) درى تولې کږې وږې لارې دي چې دڅوکو او کمرونو ترمنځ نالې دي . (۳) دبوداً معبدونو زوار، دلوی سکندر دپلې پوځ کتارونه، دمغولو سپاره پوځونه، هند واريايان له خپلو ځارو يواو ويداگانوسره، ترکان، تاتاران او هونيان اوزبات هير شوي او لسونه تول په همدی لاروتللي دي. دوی دبې شميره کاروانونو چې دهندوستان ، پارس اوچين دسوداگری سامانونه يې و پل اوراو پل دتيريدلو شاهد دی اونن پر دغولارو باندې لاری گانی دافغانستان دسوداگری زيات صادرات اوواردات وړی اوراوړی .

څرنگه چې پردغولار وباندي دهر کال په ترڅ کې حتى لبکري هم تيريدلې شي، نودافغانستان دلرغوني ارزښت مهم او اساسي دليل همدغه لارې وې ؛ او پر هندوستان باندې تقريباً تول يرغاونه د همدغو لارو له لارې يا دهندوکش دغربي اړخ له شاوخوا لارو څخه شوی دي .

دلری هغه برخه چې دکابل ( دافغانستان پايتخت ) شمال ته پرته ده د باباغر نوميږي . ختيځ ته وړاندې شمالي څوکه يې دسپين غره اوغربي آخري برخه يې دپاروپاميزاد په نوم يادېږي . يونوم چې دلرغوني يونان جغرافيه پوهانو به دتول سيستم لپاره استعمالوه .

دنوروغرونو داريولو له جملې څخه چې غربيان يې دڅولسي دی افغانستان ته ددا شيا سوتزرلايند» لقب ورکړی ، ځينې دهندوکش څوکې او ځينې يې دمستقلو غرونو لړی دي .

يوه له دغومستقلو لړيو څخه دسليمان (سولومان) دغره لړی ده چې دشرقي سرحد سره موازي امتداد لري او دافغانستان غربي برخه دسند له ناوې نه بيلوي. په دغو غرونو کې چې شبايي دښتو او افغانانو چې ددې مات ښسب اينبودونکي دی اصلي تاتوبی وي ، ځيني دري نوتې دی چې په هغو کې دتوروالک ، يولان ، گومل توچی ، پيواړ او دخيبراووه ويشت ميلي دره چې دتصاوت کيسې لري شاملې دي. افغانستان وچ اقليم لري، داورښت اندازه يې په اوسط ډول تقريباً لسوانچوته

رسيږي ځکه نو دځمکو دخرو بولو لپاره پرخپلو سيندونو تکا لري چې يو شمير له هغو څخه له غرونو څخه سرچينه اخلي او دشمال ختيځ او جنوب خوا ته په شتاب بهيږي.

دآموسيند (لرغوني اوکسوس) دافغانستان اوشوروي اتحاد ترمنځ په سلهاو ميلوسرحد جوړوي. (٤) نور مهم سيندونه يې دکوکچې، هريرود، هلمند، ارغنداب مرغاب اوکابل سيندونه دي. په پسرلي کې تول لکه دسيلاوونو په شان بهيږي اوپه دوبي کې کله چې دافغاني کروندو لپاره ترينه اوبه اړول کيږي در ينکي په شان بهيږي يعنې په پسرلي کې ددغو سيندونو اوبه زياتيږي اوپه اوړي کې کميږي. دآمو دسيند له ځينو برخو څخه پرته هيڅ يو يې دبيړی چلولو وړ نه دي.

دافغانستان لږ شمير جهيلونه نظر اقتصادي اهميت نه بل کيفيت لري او هغه دا چې ډير عجيب دي. دشوروي اتحاد پولې ته نږدې دسرقل جهيل دبحر له سطحې نه شپاړس زره فټه لوړ والی لري چې اوږدوالی يې پنځلس ميله اوسور يې يوميل دی او دکال زيات وخت کنګل وي. بند اميرله يولړ کوچنيو جهيلونو څخه جوړ شوی دی او د باميانو درې چې دبابا په غرونو کې ده دلويديځ تقريباً په پنځوس ميلي کې پروت دی. هغه بند چې داجهيلونه يې منځ ته راوړي دی د کوم امير له خوا نه دی جوړ شوی بلکې دمعدني رسوباتو يو طبيعي جوړښت دی. دابنکلي جهيلونه دي او بايد هم دسيلا نيانو لپاره دسيل يو مهم ځای وی:

همدارنګه افغانستان سخره يې غرندی، لوړی سطحې اورسوبې درې اوپه شمال لويد يځ کې ځينې داګونه او په جنوب کې ځينې دښتې هم لري. که څه هم افغانستان ځيږاو کم جمعيته دی، خو طبيعي منظري يې زړه راښکونکې ښکلا لري. داوچتو غرونو څوکې، پان لرونکې غوندی ګانې اوسپيری نيغې اوارسرې غوندې ګانې چې دشنو وښوپه نريو پټيو سره ښکلې شوې دی يوه داسې منظره وړاندې کوي چې په ښکلا کې کې دنړی له هرې منظرې سره سيالي کولی شي او داهيله کيدای شي چې يو زيات شمير سيلانيان نوموړی هيوادته راجلب کړي.

که څه هم دافغانستان آب وهوا له ارتفاعاتو او دځايونو له موقعيتونو سره بدلون

مومی خو بیا هم هوا یې هر ځای ډیره وچه ده . له سمندر نه یې لرې والی سیمې د بحرونو له معتدلوونکې اغیزې څخه بې برخې کړې چې په نتیجه کې ژمی یې ډیر سوړ او دوبی سخت تودوي. خو له یو ځوځایو نو څخه پرته په نورو ځایو کې تودوخه دومره کمزورې کوونکې نه ده لکه څومره چې په مرطوب هند کې ده او دژمې دیخنی شدت دورځې له خوا دلمر په واسطه کمیږي :

داداری چارو دتنظیم په منظور افغانستان د ۱۹٦٤ کال دمارچ له میاشتې نه په دېخوا ویشتو (۲۹) حوزو چې دولسوالیو په نامه یادیږي ویشل شوې دی * :

خو تر کومه ځایه چې دافغانستان پر تاریخ باندې په جغرافیایي اغیزې پورې اړه لري دغه اختیاري تقسیمات تر هغو لویو او ځرګندو اتو برخو چې دافغانستان دپاچاهی قلمرو جوړوي لږ اهمیت لري چې دغه اته برخې په لاندې ډول دي :

باختریا، هندوکش، هزاره جات ، دارا کوزیا جلګه، کابلستان، دهر یرود وادی، جلال آباد یا ننګرهار او بدخشان . (٥)

باختریا (بلخ ) چې اکثراً دافغانی ترکستان په نامه یادیږي دهند و کش شمال ته واقع ده او د آمو سیند او دشوروی اتحاد تر سر حد پورې ځزیدلې ده دغه سیمه یوه ډیره پراخه او اوره جلګه ده چې یو وخت یې ګڼ شمیر نفوس او داوبو لګولو یو پراخ سیستم درلوده.

ځرنګه چې ددغې سیمې نیول تل دشمالی سیمو مالدارو خلکو طبیعی هدفونو ځوځوځاله ویجاړه کړونکې یرغلو نه باندې شوې دی. له دغو یرغلونو څخه ډیر ناوړه یې په دیارلسمه پیړی کې دمغلو چپا وو چې زیان یې هیڅکله په پوره توګه تلافی شوی نه دی. مزارشریف ددغې سیمې ډیر مهم ښار دی چې وایې: دبلخ دلرغونې ښار کنډو الو ته نږدې دحضرت علی کرم الله وجهه دمقبرې دځای په شاوخوا کې جوړ شوی دی . (٦)

* دلیکوال داخبره چې افغانستان پر(۲۹) حوزو چې دولسوالیو په نامه یادیږي ویشل شوی دی سمه نه ده ځکه چې ولسوالی دحوزې معنی نه لري، او هم دسیمې له پلوه ولسوالی یوه کوچنۍ سیمه ده او افغانستان په ۱۹٦٤ کال کې په ۲۹ حوزو نه بلکې په ۲۹ ولایتونو ویشل شوی دی. ( مترجم )

دهندوکش په باب مخکینی تشریحات ورکړل شوی دی. جنوب ته یی دهزاره جاب لویه لوړه سطحه ده چې دافغانستان په منځنی برخه کی پرته او دغرونو دیی شمیره خوړو وروړیو په واسطه قطع شوی ده.

د دې سپیرې ، لغړی اوبې جمعیته سیمې اوسیدونکی دخپل ژوندانه اړتیاوی په تنګو دروکې چې دژورو سیندونو په اوږدوکې پرتی دی په سختی سره پوره کوی.

دافغانستان په جنوب غربی برخه کې چې دارا کوزیاد جاګې په نامه یادیږې دکنډهار اوزمینداور نسبتاً حاصل خیزی سیمی دی. دغه سیمې چې دافغانستان دوچومیوو دصادراتو ستره منبع ده د هلمند او ارغنداب دسیندونو په واسطه خړوبیږی. جنوبی برخه یې دسیستان بې حاصله شګلنه صحرا ده چې ازخلک پکښې میشته دی که څه هم دزیاتو ښارونو او ښارګوټیو کنډوالی څرګندوی چې سیستان پخوا ازیات خړوبیده (۷).

کابلستان دیوشمیرهغو لوړو سطحو مجموعی نوم دی چې د کابل دښارچې دهیواد پایتخت دی پرشاوخوا راګرزیدلی دي.

دغه سطحې او پخپله کابل دبحر له سطحې نه تقریباً شپږزره فټه لوړوالی لری او آب اوهوایې صحې او معتدله ده. دغه تو له سیمه چې دکابل اویوشمیر نورو سیندونو په واسطه خړوبیږی حاصل خیزه ده او ګڼ شمیر نفوس لري. کابلستان دافغانستان دحکومت ، دکابل پوهنتون او دافغانستان دزیاتو صنایعو مرکز دی.

په لرې شمال ختیځ کې دبدخشان غرنی سیمه پرته ده چې زیاتره برخه یې ځنګلونه لري او دمارکوپولو په وخت کې یې دلعل دکانو نو یادونه شوې ده. واخان دافغانی سیمې یوه نښلوونکې اوږده تړانګه ده چې له سرحد سره لګیدلې ده. یوه داروونکې سیمه ده چې خلک دیراز دغې غرنی اویخچال لرونکی منطقی ته ورځی. دغه سیمه دوحشی پسونو په سبب چې او ویس پولی (Ovispoli) یې بولي مشهوره ده. دبدخشان جنوب ته دقطغن سیمه (منطقه) ده چې (یو وخت دیخارستان په نوم یا دیدله) او دافغانستان دپنبې زیاتره برخه په همدی ځای کې تولیدیږی.

ترکې یا بدخشانی آس چې دپیریو دپاره دلته روزل شوې دي یوحیوان دی چې په تیزی او زغم کې شهرت لری او دهمدی شهرت له امله وچې دچین امپراتور دخپل

لښکر دي سیمې ته راولېږل شول دې آسو نویوشمیر د چین د امپراتور دپاره راغوند کړي (۸) .

د هریرود واديچې دافغانستان په شمال لویدیځ کې پرته او د ایران تر پولې پورې غزیدلې ده یوه ډېره حاصل خېزه سیمه ده چې ډیر ستر ښار یې (هرات) یو وخت ښایي یو ملیون نفرس دراود چې تر اوسني نفوس یې چې شپېته یا اویا زره خلک دي ډیر زیات و. دلته غرونه د زمانې په تیریدلو سره کرار کرار په کردیو غونډیو بدلېږي چې پر سر یې د پسته ونې د تکو پټه ان تیت او پرک ولاړې دي او په بخو ازمانه کې یې پر هندوستان باندې ډیر غلګرو لپاره چې دغرونو له لارې له تیریدو څخه یې ده کوله ډیره ښه لاره وه. هرات د باختر یا (بلخ) په شان څو څو ځله وران شوی دی. جلال آباد یا ننګرهار چې (پخوانی نوم یې ګندهارا و) دافغانستان په ختیځ کې پاکستان ته مخامخ پروت دی. ننګرهار چې د مملکت تر زیاتره نورې برخې تیټ دي یو شمیر حاصل خیزې سیمې لري او آب او هوا یې څه ناڅه د هندوستان آب او هوا ته ورته ده چې په ژمی کې په زړه پورې خو په دوبي کې ډیره توده او لنده ده .

دافغانانو مطلق اکثریت کروندګر او بزګر پوونده دي او زیاتره له هغې څخه خپل ژوند د بزګرۍ او مالدارۍ له لارې تامینوي. که څه هم د هیواد له تولې ځمکې څخه تر لسمې برخې نه لږ زیاته ځمکه کرل کیږي خو نفوس یې چې نسبتاً لږ دی د غو کاختیو له بلا او لوږې څخه چې د دې هیواد ګاونډیان ور سره مخامخ دي ژغورلی او په دادې سره ویلی شو چې د آسیایي ژوند د معیارونو له مخې زیاتره افغانان په نس ښه ماړه دي. خو را مهم حاصلات یې غنم دي او دوی د افغاني خوړو اساسي برخه ده چې دغه افغاني متل یې را پیدا کړی دی: «تر ده دوډۍ او سړي او بده الله دوه نعمتونه دي». د معتدلو سیمو نور حبوبات او سبزیجات هم کرل کیږي او دغه هیواد دخپلو انګورو او خستو او نورو میوو له امله شهرت لري .

کلیوالي ژوند چې دافغانانو په اقتصادي کې اهمیت لري د ژوندانه یوه لاره ده چې کوچیان او هم مالدارنګه، میشته شوي کروندګر یې تعقیبوي او د خپلو اړتیاوو د پوره

کولو دپاره پسونه. څاروی یا اوزی هم ساتی. کروندګر زیاتره ددوبی په فصلونو کی له خپلو کلو او مالونو سره نیغ څرځایونو ته ځیږی او دژمی په فصلونو کی بیرته خپلو کورونو ته راپریوزی.

له پسه څخه تر زیاتی اندازی پوری دغه پو خوړو په حیث کار اخیستل کیږی او دپسه غوښه د افغانانو مهم او عمده خواړه دی؛ دغه او وښو دی او غوښه دکیفیت له پلوه ښه نه ده ځکه په کومو څرځایونو کی چی دوی پوول کیږی دغه لغړدی او دنسل داصلاح دپاره یی سمه توجه نه ده شوی. دلته دوه بوک لرونکی باختریا یی ډول. اوښان عام دی؛ همداسی یو بوک لرونکی اوښان او ددواړو ګډ نسل هم زیات لری. دهیواد دسوداګری زیاتره مال لا تراوسه پوری دهمدی اوښانو په وسیله له یوه ځایه بل ځای ته وړل کیږی او په تیره بیا زیاتره هغو سیمو ته چی دموټرلارنه لری.

افغانستان برسیره پر افغانی تازی چی اوس یی غربی تازی روزونکی ډیر خوښوی دهغی پشی • چی په ناسمه توګه پارسی پشی بلله شوی تاتو بی دی. دسپیانو نور مختلف نسلونه چی روزل یی په کوچیانو کی زیات رواج لری زیاتره غټ، بیراو ویرونکی دی چی لیوان او کله کله له بدمرغه بی آزاره مسافر هم تر ینه زیات ویریږی. خر لا تراوسه لاچاره افغانستان دزیاتو کارونو دسرته رسولو تکلیف ګالی؛ آسونه هم په تیره بیا په شمال کی زیات دي.

په افغانستان کی پرته له قبایلی سیمو څخه چیری چی دسړی تر کمیسه نه تو پکونه لږ ضرورنه دی ډول ډول زیات حیوانات موجود دی. یو ډول دغره ․ز، مارخور او پړانګ چی په وارو کی او سیږی په غرونو کی پیدا کیږی او پارسی هوسی په اوارو ځ․کو کی ژ․ښتی ډیری دی. یو لږ شمیر پړانګان لا تراوسه د آمو غاړی په نیزارونو او دبد خشان په ځنګلونو کی ګرځی.

لیوان په تیره بیا په ژمی کی درمه والاو وارمالد اروا پاره یوه ستونزه ده او دراپورونو پر اساس حتی ځینی وختونه دانسانانو لپاره ډیر خطر دی.

---

• داپشی په بلخی پوشی سره مشوره ده. (مترجم)

سورلنډی او ګیدړې دهیواد په هره برخه کی پیدا کیږی؛ کوږ په جنوبی افغانستان کی او ایږ دختیځ په ځنګلی برخو کی پیدا کیږي.

عادی افغان په زیاته اندازه دښکار لیوال دی خو لږ شمیر یی له ماهی ګیری سره مینه لری. په نتیجه کی لکه څنګه چی دآمو دسیند لوی کبان بی له اخلاله ژوند کړی همداسی ترووټ او سلمن په افغانی سیندونو کی آرامه دی .

داسی ښکاری چی د دی هیواد له بحر څخه لیروالی او آب وهوا ماران و ته نامساعده ده خو کله کله یو نیم کرایت (Krait) یا کفچه مار په ختیځ کې موندل کیږی.
حشری په تیره بیا مچان او میاشي په هماغه اندازه چی د آسیا په نورو ځایونو کی خلکو ته ضرر رسوی دلته یی هم رسوی.

دغه لنډه تشریح دافغانستان دزیاتی متنوع جغرافیې په برخه کی لکه څنګه چی ښایی کافی معلومات نه ورکوی خو ښایی دیوی سریزی په حیث په درد و خوری.
بی له کوم شک څخه دافغانانو تاریخ ددی هیواد دجغرافیایی موقعیت، توپوګرافی او اقلیم په واسطه سخت تراغیزې لاندی راغلی دی. ددی هیواد وظیفی ته دسفر دیوی مترى لارى په حیث پرومبی اشاره شوی ده.

(غالباً ددی هیواد غرنی سیمی او ددغو سیمو شدید اقلیمونو دافغانانو دکرکتر (Character) دهغو ارخونو په وده کی مرسته کړی ده چی دغه عبارت دی له: دآزادی سره مینه، قوم یا قبیلی ته وفا داری او د افغانانو غښتلیتوب چی ددغو خصوصیتونو له امله افغانانو دآسیا په تاریخ کی نظر وخپل شمیر ته زیات لوی نقش لرلی دی) (۹).

دهندوانو متل دی :
ای خدایانو! د کفچه مارله زهرو ه
دبیر له غابنو اودافغانانو له کسات نه
موو ژغوری .

# دوهم څپرکی
## خلک

افغانستان دنژادونو له پلوه تر زیاتی اندازی یو پټ رمز دی. دجغرافیایی جوړښت له نظره هم افغانستان ته چی په آسیا کی دتنګ راتنګ لارده یوشمیر سیلانیان راغلی دی لکه هندواریایان، ساکان، پارتیان ، پارسیان، کوشانیان، یونانیان، منګولیایان هونان، ترکان اونور چی د هغوی نومونه له اساطیر وڅخه ورک دی. دیر لـه د غو څخه زرتلونی سیلانیان وو؛ نوریی پـه افغانی غرونـو کی پاتی شول چـیری چی دمحلی اوسیدونکو سره دګډیدواو توافق حاصلولو اوزدی پروسی دلیکلو اسنادو دنشتوالی لامله دنژادونو دمنشأ لټونه تقریباً ناممکن ګرزوی؛ پرهانو پهدی وروستیو کلونو کی د افغانانو دنژادی ګروپونو پـه مطالعه پیل کړی د ی؛ خو لـه د غـو شیرنو څخه لاس ته راغلی شواهد اودلایل چی د هغو په رڼا کی دوینی ګروپونه اونژادونه معلومیدای شی لاهم ناکافی او په د ی ارتباط تاریخی منابـع نیمګړی او غیر قاطع دی. ځکه نو دافغانانو دنژاد سوال ترمرافقو نظریو مخالفی نظریی زیاتی راپیدا کړی دی :

سره له دی هم کومه څه چی د افغانانو دتاریخ دپوهیدلو دپاره کیږی د هغو مختلفو قومونو په برخه کی چی دافغان ملت تشکیلوی پوښه پرهه غواړی.د دغو

قومونو ترمنځ وفاداري او سيالداري له پخوانه موجودی وی او تر اوسه پوري ديوه مشکل په شکل پاتی دی. دمنځني ختيځ دګڼ شمير نژادلرونکو ترلنوشاګردانو (نژاد پوهانو ددی سيمي دقومی ترولنو دغړو ترمنځ هغه څه ته چی « نژادی شخصيت » بللی شوی دی اشاره کړی ده. دمثال په ډول، کارليتن کون (Carleton Coon) دنژادی شخصيت په باب خپله عقيده په دی ډول څرګند وی:

زه باور لرم چی دخلکو نژادی ګروپونه لز تر لزه په منځنی ختيځ کی دشخصيت معياری انواع لری ..... په معقولو حدودو کی دننه او داحتمالی تيروتونو په نظر کی نيولو سره ممکنه ده سړی داپيشګويی وکړی چی دمختلفو نژادونو خلک به په مختلفو حالاتو کی چی په هغو کی خارجيان هم برخه ولری، څه وکړی، او زما لپاره به دار يانتياو رخبرنه وی چی دتوارث او محيط مسالی به هم دخيلی وی چی هريو له دغو دواړو عواملو څخه به دتواکلي وجوهاتو له نظره يو دبل اغيزه محدودوی (۱):

دپروفيسر کون (Coon) دنظريي له مثلونه پرته چی په دی مساله کی نژادی تمايل برخه لری، داباياد ومنل شی چی سيلانيانو چی له يوی پيړی نه زيات وخت راپه دی خوا افغانستان ته راغلی دی دافغانانو ترمنځ دکړوړو ومختلف شکلونه ليدلی دی چی حتی دعين نژادی ګروپ دډلو ترمنځ يی ښکاره توپيرسره درلود.

په دی ډول دانګريزانو دجلب منصبدارانو ته چی دافغاني سرحد په قبايلو کی يی وظيفه سرته رسوله ممکنه شوه په دی برخه کی مفصلی لارښوونی ترلاسه کړی چی دکومو قبايلو څخه خلک ونيسی او کوم قبايل و نه نيسی.

دغه لارښوونی دانسان پيژندونکو يادرو حيات پوهانو دکار نتيجی نه وی خو ديوی پيړی تجربه يی منعکسه کړله:

که څه هم دافغانستان هرتبعه يو افغان دی، خو په يو ه تاريخي معنا دغه نوم په هغو خلکو پوری اړه لری چی دپښتنو يا پختنو يا دپټان په نامه ياديږی (۲) دغه خلک چی دپښتنو يا پختنو يا پټانانو په نومونو ياديږی په داسی يوه ژبه خبري کوی چی

پښتو یا پختو بلله کیږی چی دهندواروپایی ژبو په ایرانی گروپ* کې راځی او په دی توگه که څه هم پښتو دپارسی ، بلوڅي او کردی ژبوسره اړیکی لری خو له دغو ژبو څخه منځ نه ده راغلی . پښتو او پختو دعین ژبې دوی لهجې دی چی عمد تاً په یوه توری** کی چی په پښتو کی په صفیری شکل او په پختو کی په ستو نیز (حلقی) دول تلفظ کیږی ، یوه له بلی توپیر لری. دژبپوهنې ځینی معتبر لیکوال په دې عقیده دی چی پښتو اصلی بڼه او پختو یوه روستی تکامل موندلی شکل دی ؛ له دی امله دموضوع دڅرگندونې په خاطر او څرنگه چی درانیان دافغانستان مسلط قوم پښتو ژبی دی، دپښتو او پښتون کلمې به په ټول کتاب کې او حتی کله کله چې ومشکلې لهجې او دهغو ویونکو ته اشاره کیږی استعمال شي .

دافغان د کلمې اصل او معنا چی یو وخت دپښتون د کلمې مترادفه وه څرگنده نه ده پوله هغو کتابونو څخه چی لومړی یې دافغان کلمه ثبت کړی ده حدود العالم دی چی لیکوال یې معلوم نه دی او د(۹۸۰) میلادی په شاو خوا کی خپور شوی دی او دساوول «Saul» په برخه کی یو توسو ونکی مأخذ لری. ساوول «Saul» یو په زړه پوری کلی دی چې دغره دپاسه پروت دی او په هغه کی افغانان اوسیږی (۳) . دغه نوم دمحمد ابن احمد البیرونی په لیکنو کی چی د ۱۰۶۰ میلادی په حدودو کې یې ژوند کاوه بیا څرگندیږی. دی دیوی تبصری په ترڅ کی وایی، «دهندوستان په غربی سرحدی غرونو کی دافغانانو رازراز قبیلی ژوند کوی. (٤) ددغو تبصرو اتفاقي توپ دیرار یانو ونکی دی او داځکه چی افغانان (پښتانه) دافغانستان نیمایي نفوس تشکیلوی او ددی هیواد واك او اداره یې ددغه هیواد دپیل راهیسی په لاس کې وه. برسیره پردې ، البیرونی دسلطان محمود غزنوی په دربار کی چی لیکری یې

---

* دپوهاند عبدالشکور رشاد په قول ، دلته له ایرانی کلمې څخه اوسنی ایران مطلب نه دی بلکې دا د ژبو په ویش کی یوه اصطلاح ده چی دهند و اروپائی ژبو دیوه گروپ لپاره استعما لیږی، چی اسپتنه څخه رانیولی بیاد بدخشانو ترڅو کوپوری داوسنی ایران ، افغانستان اوماوراالنهر او خوارزم دیری ژبی احتوا کوی» (مترجم)

** په توری کی نه بلکی په یوه آواز کی توپیر لری .

زیاتره له پښتنو څخه جوړی شوی وی ژوند او لیکنی کولی . دیر احتمال لري چې دافغان نوم په‌ابتداکی یوازی دیوشمیر پښتني قبیلو لپاره استعمالیده او وروسته‌بیا دټولو له‌خوا غوره‌شوی وی. دافغان نوم‌هرومرو په نژدی وختونوکی‌منځ ته‌راغلی دی ځکه چې په ۱۸۰۹ م کال کی وپخپله افغانان دافغان له نوم‌سره‌یوازی دپارسی ژبی دلیکنو له لاری آشناشول . دوی پخپله خپل قوم ته پښتون وایی چی جمع‌یی پښتانه‌دی. »(۵) داسی بریښي چی که‌څه‌هم دپښتون نوم دیره لرغوني مخنیه (سابقه) لری خوحتی په لرغونو آثاروکی هم ددی نوم یادونه دیره لږه شوی ده :

هیرودوت (Herodotus) څوځایه دپکتریك ( Paktuike ) یاپکتویس ( Paktues ) نوم اخلی‌چی په‌یونان‌کی‌دزرکسز ( Xerxes ) په‌خدمت کې‌وواو پوستکی‌یی اغوستل اولیندی به یی له ځانه سره‌گرزوله. (٦) ځینی‌معتبرلیکوال‌فکرکوی‌چی‌دغه خلك پښتانه‌دی ،نوربیاپه‌دی برخه‌کې زیات باورنه لری . دپښتنوداتنوگرافی دنیمگړتیا خبره دزیاتونوروافغانی نژادی‌گروپونوپه برخه‌کی‌هم‌په برابره‌توگه‌صدق کوی.

پښتانه دخپل روایت له‌مخی‌په فلسطین‌کی‌دساوول ( Saul ) پاچادسلطنت په‌دوره کی منځ‌ته‌راغلی‌دی اوادعاکوی‌چه‌مونږ دساوول(Saul ) له پښته‌یواودغه‌دیوه‌زوی چی ایرمیا(Irmia) جرمیا(Jermiah) نومیږی اودیوه لمسی چې افغانا(Afghana) نومیږی‌اولاده یو.(۷) هغوی په دی عقیده‌دی‌چی‌هغوی په‌اسرائیلوکی‌زیات‌شول چیری چې داود(ع) او سلیمان (ع) پر هغوی باندی‌زیات‌مهربان‌او چیری چې اخیرالذکر هغوی ته‌دنده‌ورکړه‌چی دمعبدساتنه‌وکړی او پرینږدی چی دحسودودیو انوله‌خوا ور باندی‌یرغلونه‌وشی .ددی‌دپاره چی‌سلیمان(ع) چی دپیریانو ،پریانو او دیوانو پاچاوله هغوی سره په دغه وظیفه کې مرسته کړی‌وی ، افغ نانوته یی پښتو ورزده کړه .دغه‌خبره دافغ نی‌روایاتوله‌مخی دحضرت‌محمد(ص) له‌خوا تائیدشوی ده اوښایی وویل شی‌چی پخپله دژبی‌ماهیت دی خبرې ته یوځه اعتبار ورکړی دی.

په‌دی‌وخت‌کی‌یو بد کاره‌جادوگر بخت النصر ( Bukhtud - Nasir ) • نبوچاد

---

• داکلمه په متن کی «بختودنصر» راغلی ده چی‌سم شکل یی بخت النصردی چی په متن کی هم اصلاح شوی ده. (مترجم)

نزار (Nebuchadnezzar) راپيدا شو چې اسرائيلي قبيلې يې خورې ورې کړې او افغانان يې د زياتو سرزورو په حيث تاريخ ته لړي د شام او سوريې سيمو ته وليږل. هغوی له دې ځايه د غور غرونو ته چې په غربي افغانستان کې دي وليږدېدل؛ هغوی د لته ځای په ځای شول او سره ددې چې د هغوی شاوخوا يې شميره بت پرستانو نيولې وه خو دوی ديوه خدای پيروي کوله. دغه افسانه ورانده وايي چې د حضرت محمد (ص) په زمانه کې د افغانانو يو مشر قيس ( Qais ) يا کيش ( Kish ) مکې معظمې ته لاړ او سلام يې په زياتې علاقمندۍ ومانه او يو نوی نوم يې چې عبد الرشيد و تر لاسه کړ. هغه افغانستان ته راغی چې خپل قوم اسلام ته راواړوي او ټول اوسني پښتانه له هغه نه او د هغه د زامنو (سړبن اوغرغښت) او ديوی لور (بي بي متو) له کمنۍ څخه زيږېدلي دي.

د پښتنو په باب دغي خيالي تېجري په انګلستان کې د ويکتوريا (Victoria) د واکمنۍ په دوره کې کوم وخت چې د لسو ورک شوو قومونو سرنوشت ديوی عامې مسئلې په حيث د بالکان (بالقان) تر مسئلې کم اهميت نه درلود، ډېره دلچسپي راپيدا کړه. خو نني پوهان څرګندوي چې پښتو يوه هند واروپائي ژبه ده نه سامي او د هغې سامي کلمې د عربي څخه په ګډه شوې دي. د حضرت محمد (ص) د زمانې نه تر ډېر وروسته، کلمو نو پورې د (افغانا) يا (افغانانو) يا دو نه نه په عبري او نه په عربي اسنادو کې شوې ده؛ کله چې دا کلمې په عربي اسنادو کې څرګندېږي افغانان معمولاً د سليمانی په نوم ياديږي او سليمان دی مطلب ته اشاره ده چې دد وی ټاټوبي د سليمان د غرونو په لړی کې و نه د غور په غربي غرونو کې. هلدارنګه د اسلامي هېوادونو کې يو عمومي دود دی چې دوی له ځانه نسب نامه جوړوي او د خپلو قومونو د نسب لړی تر حضرت محمد (ص) يا د اسلام تر نورو پيغمبرانو پورې رسوي.

د پښتنو د اصل په باب لا تر اوسه پورې د نظر بشپړ توافق نشته.

افغاني پوهان اکثر آ پښتانه د لرغوني باختر يا حالک ګڼي او يو شمېر غير افغاني معتبر ليکوال په دې عقيده دي چې پښتانه په وروسته زمانه کې له شمال څخه راغلي دي. پښتانه غالباً يو وخت يوه کوچنۍ ټولنه وه چې د سليمان په غرونو کې متمرکزه وه. او وروسته

بیا مهاجرین ورسره یوځای شول اودهغوی ژبه اودودونه یی ومنل. دعربي جغرافیه پوهانو په لیکنو کی ځینی داسی شواهد شته چی غلزي چې نن دپښتنو یوله سترو قومونو څخه دی ، لبز ترلږه قسماً د خلاج ( Khalaj ) یا خلوك ( Khallukk ) څخه پیدا شوی دی چی مخینه یی اوغوز ترکانو (Oghuz Tu:k) یا یفتلی هونانوته رسیږی . (۸)

که څه هم هیڅ احصائیه اخیستل شوی نه ده خو په افغانستان کی دپښتنو شمیر تقریباً شپږ ملیونه خلك* یاددی هیوادتقریباً نیمایی نفوس اتکل شوی دی اوبرسیره پر دی تقریباً پنځه ملیونه پښتانه دافغانی سرحدپه ختیځ کې اوسیږی . دوی دهغه وخت راهیسی په افغانستان کی مسلط خلك دی چی دا خاوره دیوه هیواد په حیث منځته راغلی او په حقیقت کی په یو حساب دغه هیواد دپښتنو تخلیق دی. دننه په افغانستان کی دپښتنو زیات شمیر په ختیځ او جنوب کې متمرکز دی . که څه هم په دی وروستیو کلونو کی یو شمیر له هغو څخه دهندوکش په شمال کی میشته شوی دی. پرته له دی چی د پښتنو تیت وپرك والی په نظر کی ونیسو دغه خلك دنژادی شخصیت اودود دوارو له پلوه دیرسره ورته دی. پښتانه چی په قومونو (Tribes) خیلونو (Subtribes) او پښو ( Clans ) ویشل شوی دی مختلفی پلرګنې دی او معمولاً د نوموړنو په اخر کی ئی د I ، زای Zai او خیل Khel لاحقوپه زیا تونی سره دیوه نیکه په نوم یادیږی. دمثال په ډول: وزیری ، محمدزی یا سلیما نخیل . قوم یا پښې ته وفاداری له یوه ګروپ څخه تر بل ګروپ پوري توپیر کوي مګر معمولاً ډیره کلکه وي ؛ په عین وخت کې ټول پښتانه په خپل پښتنی هویت او اصلیت باندی زیات ویاړی :

---

* دا دلیکوال یوه تیروتنه ده. دافغانستان له تقریباً شپاړس ملیونو نفوس څخه له اتو ملیونو څخه زیات یی پښتانه دی چی فیصدی یی له پنځوسو څخه زیاته ده Harvy H.Smith, Donald W. Bernier Fredederica M. Bunge, Frances Chad Wick Rintz Rinn-sup shinn, Suzanne Teleki, "AREA HAND Book for AFHANISTAN" 1973, U.S Government Printing office. P.64 (مترجم)

دیوي احصایی له مخی چی په دې نژدې وختونو کی په یوه کتاب کی چی نوم یی « دتاریخ نفوس » دی خپره شوې ده ، د پښتو شمیر په سلو کی دوه پنځوس عشاریه ۹۸ ( ۵۲٫۹۸۰۰ ) یا ددې هیواد ترنیمایی زیات نفوس ښودل شوی دی . د سرمحقق مرستیال عبد الجبار نادر دغه مقاله ( پښتانه دبهرینو له نظره په «پښتوڅیړنی» نومی کتاب کی وګوری . د افغانستان دعلومو اکامی له خوا په ۱۳۶۷ کی چاپ شوی دی . ۲۶۸ مخ

پښتنو په تیره زمانه کی له سوداګری صنعت یا ښاری ژوند سره چندان مینه نه ده ښودلې. نن هغوی اکثراً میشته شوی بزګردی ؛ خو تقریباً یو ملیون یې کوچیان دی چې له خپلو تورو کیږدیو ، اوښانو او پسونو له رمو سره له یوه ځای نه بل ځای ته کډه کوی یا ځی. دغه کوچیان چې له ځان سره دسوداګری زیات مالونه وړی د میشته شوو خلکو له سیمو څخه دتیریدو په وخت کی له هغوی سره معامله کوی او دڅارویو محصولات له غلې سره تبادله کوی او همدارنګه د غیر پښتنو لپاره یوه ستونزه ده ځکه چې د هغوی مزاجونه بی ثباته دی او سخت مسلح ګرځی. یو شمیر یې داوښانوسوداګردی چې خپل مال دهیواد هغو برخوته باندی وړی چې په بله وسیله نه وړل کیږی.

له میشته شوو پښتنو څخه ډیر لږ یې مستاجر یا داسی بزګردي چې دځمکی له خاوند څخه دکار په مقابل کی دحاصل یوه معینه اندازه اخلی اودا ډول بزګرپه منځنی ختیځ کی عام دی . دوی اکثراً خپلې ځمکی لری خو یو شمیر یې ځمکه وال دی چې غیر پښتانه خلک د بزګر و یامزدورانو په حیث استخداموی او دا داسی یو مقام دی چې ښایی دپښتنو دآزادی اودشخصی ارزښت او وقاراحساس ته چې د پښتون دشخصیت ځانګړی ممیزات دی مرسته کړی وی .

پښتانـه د خپل لومـړی ثبت شوی پیدایښت راهیسی ، د سرکښو ، جنګیالیو ، لوټمارو او کسات اخیستونکو په حیث پیژندل شوی دی. ابن بطوطه (Ibn Batw ata) ( چې له پښتنو سره په ۳۳۳م کال کې مخامخ شو ) ویلی دی چې هغو ی « ز یا تره لاروهونکی وو. »(۹) یوه پیړی وروسته، ګوډ تیموردا خبره تائید کـړه ( یعـنی دا ړښتیاد قیصرله خوا یوتمجید و. ) د پښتنو ژبی نامتوشاعرخوشال خان ختلک خپل قوم ( پښتانه)«سخت زړی بدخواه او جګړه مار » توصیف کړل. (۱۰) ادام اولیر یوس (Adam Olea rius) په اووه لسمه پیړی کی دمتداولو اروپایی ناوړوتبصرو یوه لړی پیل کړه اوپښتنانه یـی « مغروره ، سپك خولی ، ظالم اوشډل وبلل. دوی غیرپښتانه په بل دلیل نه بلـکی یوازی په دی دلیل سپکول چې هغوی ولی پرته له کوم ضرورت نه دخپل ژوند په خطر اچو لو کی ددوی په شان بـی باك او بی پروانه دی. » (۱۱)

دغه ډول ځرګندونـی په تیره بیادنولسمی پیړی د برتانوی عسکرو او مامورینو

په‌خاطراتوکی ډیری زیاتې لیدل کیږی. خو په دغو اظهاراتو کی دحقیقت یوازی یوه ذره پرته ده. پښتانه بې له شك څخه جنګیالی او تیری کوونکی خلك ووچی تربګنیی او ډلی تپلې جوړ ولو ته‌متمایل دی او دا داسی صفات دی چی کیدای شی منطقاً په دغسی حالاتو کی متوقع و ګڼل شی. څرنګه چی پښتنو تل دپردیو دزورزیاتی اودفشاریا کوم ګوانښ چی دهغوی آزادی ورسره‌مخامخ شوی ده عکس العمل ښودلی دی، نو داهیله نشی کیدای چی دیر غلګرولیکنی اورا پور و ته‌دی زیات واقعیت څرګند کړی. مونسټ سټوارټ الفنسټن ( Mount stuart Elphin stone ) چی په ۱۸۰۹ کی افغانستان ته دبرتانوی‌لومړی رسمي هئیات مشری یی په غاړه‌درلوده په دی برخه کی مختلف نظر څرګند کړی دی. عالم اوژبپوه الفنسټن (Elphinstone) افغانـی‌سجیه داسی تشریح کړی ده چی اوس هم سمه اودرسته ده. ده ته افغانان » په آزادی‌مین، خپلو ملګروته وفادار، په خپلو متعلقینو باندی مهربان او زړه سوانـدی، میلمه پـال، زړه ور، غښتلی، اقتصادی، خوار یـکښ او احتیا ط کاره خلك معلوم شول ؛ دوی نسبت وخپلو ګاونډیوملتونوته درواغجن، غلط، چلی اوغولوونکی خلك نه دی. ( ۱۳ )

دبدن د جوړښت له پلوه پښتانه دګډ مدیترانه یی نوع څخه ښکاری چی دشمالی اروپا ( سکاندنویایـی‌هیوادونـو ) د خلـکو زیات جـسمی خصوصیات هم پکی لیدل کیږی، خو بیاهم په دی برخه کی دقطعی پریکړو لپاره بایـد نوروانتروپو میتریـکو (Anthro pometric)څیړنوته‌انتظار وباسو. داد ډاډ وړده چی ووایو دوی زیاتره غنم رنګه‌دی، اوږدی کګړی او نری‌تنی لری. زیاتره‌یی دغریی معیارونوله‌مخې ښکلی دی.(۱۳)

دویم لـوی قوم په افغانستان کې تاجك دی چې په ټول هیوادکـی خواره دی، خو زیاتره‌یی‌په شمال اوغرب کی متمرکز شوی دی. نه دوو ملیونو څخه تردروملیونو پوری تاجك په افغانستان کـی اوسیږی ؛ نوریـی په ایـران، د شوروی تاجکستان په جمهوریت او د چین د سینکیانګ ( Sinkiang ) په ایالت کی استوګنه لری. که څه هم ویل کیږی چی‌تاجك یوجدا قوم دی خونوی څیړنې څرګند وی چې دوی حقیقتاً یوشمیرقومونه دی چی پرته له‌نوم اوژبی‌څخه چې‌فارسی‌ده نورڅه‌یې‌مشترك نه دی او د استوګن ( غیرکوچی ) نفوسو په حیث ژوندکوی. هغه تاجك چې د هیواد په

لوید یخ کی استوګنه لری زیاتره‌دهر اتیانوپه نامه یادیږی اوغالباً هماغه ټجره لری
ګوم چې د ختیځ ایـران خلك یې لـری . هغه چې د هندوکش په شمال کې اوسیږی
معمولاً* په پار سیوانانو یا فار سیوانانو کی ( پارسی ویونـکو ) کی راځی ؛ دوی په
زیاته اندازه مغولی ګډ شوی نژاد څرګندوی اوغالباً دلرغونی ایران د اوسیدونـکو
له یوه ګروپ څخه چې د سارتیانو ( Sarts ) په نامه شهرت لری زیږیدلـی دی .
دغـه تاجلك چې‌شوروی نـژاد پیژنـدونـکو غرنـی تاجلك‌ګڼلی‌دی دسیمی پخوانـی
اوسیدونکی‌ښکاری اوښایی واقعاًهم ددې‌سیمې بومیان یااصلی‌خلك وی.

تاجلك د ځان یا د خپل اصل په برخـه کـی پرته له دغه روایت څخه چې دوی له
عربستان څخه راغلی دی اود دوی نوم دعربی کلمی « تا ج » څخه اخیستل شوی دی
چې‌یووخت دوی دحضرت‌محمد پیغمبرګانه‌وه، نور روایتونه‌نه‌لری. په‌حقیقت کی
تاجلك یوه عربی‌اصطلاح ده چې اصلاً* دیوه غیرعر ب مسلمان ښکارندوی‌وه، خوپه
څوار لسمه پیړی‌کې دغه اصطلاح دیوه‌استوګن فارسی ژبی‌مسلمان مانادرلوده چې
دغه تعریف اوس هم دتاجکو په برخه‌کی یو مناسب تعریف دی .

تاجلك قبایـلی‌خلك نه دی اونه داسی‌معلومیږی چې په‌خپل‌نژادی هویت دی زیات
وویاړی . ښایی ددی علت داوی چې دوی د دوو پیړیود پا ره د پښتونوتر تسلط لاندی
ژوندکړی دی. دوی زیاتره بزګردی اواکثراً استوګن بزګرو اویادکارګرانوپه حیث
کار کوی ؛ څوځینی یې په افغانی ښارونوکی په سوا دګری یانوروکسبو نوبوخت دی .
تاجلك پرتـه له هغو چې په کوهستان کې اوسی اودپښتنو په اندازه زړه ورګڼل کیږي،
جنګیالی نه دی.

د هغو لړو انتروپومیتریـکی ( Anthro Pometric ) څیړنوڅخه چې‌تراوسه پوری
دافغانستان د تاجکوپه برخه‌کې سرته رسیدلی دی څرګندیږی چې دوی کوچنی سرونه
لری او دسپین پوستی نژاد دالپ ( Alpine ) له څانګی څخه دی. هغوی غنم رنګه او
معمولاً* دپښتنو په شان جګګ نری دی خومخونه‌یی زیات بیضوی دی اوڅیری‌یی‌لړی
څرګندی دی . لـکه څنګه چې مخکې وویل شو ه زیات شمالی تاجلك مغولی ګډ جسمی

* د شمالی اروپا خلك سپین پوستی دی . اوږدی غاړی اوجګی ونی لری . ( مترجم )

خصوصیات او مشخصات څرگندوی . (۱٤) پښتنو او تاجکو د زیاتو پیړیو لپاره یوځای په روغه جوړه کې ژوند سره کړی دی . یوشمیرتاجك اوس لوړی دولتي څوکی لري او نورو یخوا دوزیرانو په حیث خدمت کړی دی چې د هغو له جملې څخه عبدالمجیدخان * دډیر وکلونو لپاره د ملي اقتصاد وزیر وسره له دی هم د دغو دوو قومونو ترمنځ نه واده او نه تړلنیز آمیزش زیات دی ، پرته له ښارونو څخه چې هلته قومي او نژادی اړیکی کمزوره شوی دی.

په شمالي افغانستان کې دشوروی دپولی او هندوکش ترمنځ تقریباً یو ملیون افغانان او سیږی چې ژبه یې د یورال ـ التایي ـ ( Ural-Altaic ) له کورنۍ څخه مشق شوی ده . له دغو افغانانو څخه زیات یې ازبك دی چې شمیر یې تقریباً ( ۸۰۰۰۰۰ ) ته رسیږی . ازبك اصلاً هغو ترکی قبیلوی خلکو ته ویل کیده چې دپنځلمی پیړی په نیمائی کې افغانستان ته راننوتل او یوله پخوانیو مشرانو څخه یې ازبك خان نومیده او دلوی چنگیزخان له اولادی څخه و. اوسنی از بك ددغو ترکو او مغلو او ایراني بزگرو یو مخلوط دی چې په دغه سیمه کې اوسید ل . څکه نو اوسني از بك یاخو مغولي جسمي خصوصیات او مشخصات لري یا دسپین پوستو نژاد نښې نښانې لري او یاهم ددی دواړو نژادونو څخه مختلطي څیری . دوی کوچني سری دی ، ژیړی سپین پخوني څیری لري ، دانګو هډوکی یې پراخه دی او کله کله یې سترگی چوړغی وی . دوی نسبت پښتنو یا تاجکو ته زیات منډلي او لنډ دی او څینې له هغو څخه ډیر چاغ دی چې پښتانه یاتاجك ډیر لږ داسې لیدل کیږی .

ازبکو د خپلو ترکی اسلافو قبیلوی او کوچیاني اړیکې پریښې دی اومشته شوی کروندگردی ، څو څینې یې موفق سوداگر او صنعتگردی. ددوی ژبه د ترکی ژبې یوشکل دی چې ظاهراً دمنځینو پیړیو له چغتائی ترکی څخه یې اشتقاق موندلی دی .

په افغانستان کې ازبك احتمالاً په ناحقه په لټۍ او سستۍ سره شهرت لري. هغوی په آزاده توگه له خپلو تاجکو گاونډیو سره واده کوی څو له پښتنو سره چې ازبك دڅان

---

* عبدالمجید خان زابلي تاجك نه دی بلکې تره کی دی . (مترجم)

سیال نه گڼي ډیراږ واده کوی خونه ازبك اونه تاجك دکوم جلدی تبعیض مورد واقع کېږی اونه ددغو دواړو قومونواو پښتنو ترمنځ کومه ریښتنی د ښمنی موجوده ده .

په افغانستان کی بل لوړی قوم ترکمن دی چی شمیریی تقریبا (۲۰۰۰۰۰) ته رسیږی او ز یاتره یی په شمال لو ید یځ کی استوگنه لـری . ز یاتره پوهان په دی عقیده دی چی دوی داوغوز ترکانـو( Oghuz Turks) کوم چی په یوو لسمه پیړی کې نوموړی سیمی ته را ننوتل له گنډی زیږیدلی دی، سره ددی چی ښایـی هغوی په خپل نژادی سابقه کی نورر گونه ولری. هغوی د غربی نوع په رازراز ترکي لهجو خبری کوی.

برخلاف داز یکو ترکمن لاتراوسه پوره پوونده اوقبیلوی کوچیان دی چی زیاتې مهمې قبیلې یې دسالور(Salor) ساریق ( Sarig ) او تیکی ( Tekke) قبیلې دی. هغوی له نورو افغا نانوسره لږ تماس لری او دافغانانو په تاریخ کې یې لږ اهمیت لرلی دی ، په حقیقت کې په زرگونو ترکمن په دې وروستیو وختونو کې دپناه وړونکوپه حیث له اشترا کیه شوروی څخه افغانستان ته راغلی دی. له بلی خوا هغوی دقره قل پسونو دروزونکو په حیث یو څرگندااقتصادی رول لری. چې دهغوی وړین پوستکی په قره قل استراخان یا ایرانی پسه سره شهرت لری اویو عمده او مهم صادرات دی : اوتـکی سری غالی «بخارائی غالی»یی یو بل مشهور محصول دی چې ترکمنی ښځی یی اوبی اورنگوی یی .(۱۵)

هـزاره گان د افغانستان یو د پاملـرنـی وړ ملیت دی چې د هغوی اصلی تاتوبی هـزاره جات یا هزارهستان د کابل لـو یـدیـځ ته د مرکزی غرونو یوه جگه لړی ده . دلته دهغوی شمیر تقریباً ۶۰۰۰۰۰ ته رسیږی او کوچنی ډلی یـی په بامیان دبابا دغره په لړی بدخشان کې اوسیږی . هزاره گان د خپلو مغولی څیرو په سبب په آسانی سره پیژندل کیږی چې دزیاتو خارجی سیلانیانو د کنجکاوی حس یې پارولی دی : په یوه هیوادکی چی مطلق ا کثریت دسپین پوستو د نژاد څخه دی د مغول نشین ددی سیمی دموجودیت داتوضیح چې دهغوی نیکونه دچنگیز خان عسکرو و تقریباً په هره څېرنه کې چی د افغـانستان پـه بـاب شوی ده شته او همدارنـگه د بریتانیکـا دایـرة المعـارف (Encyclopaedia Biitannica) په نیمه پاوری پاسوکی هم راغلی دی. خوهغه پلټونکی

چې دهزاره گانو په باب خیرني کوي د دغې فرضيې په ردولوکې متفق الرای دي .
د دې ادعـا په برخه کې چې چنګیز خان په نوموړې سیمه کې عسکر پرېښي دي کـوم شواهد نشته او هغه کوم دلیل نه درلوده چې داکاریې کړی وي حتی که دلیل یې هم درلـودای ، هیڅ احتمال یې نه لاره چې ده به د قشلې د پر ینبودلولپاره هزاره جات ټاکلی وای . یو په ښکاره د منلووړدلیل دادی چې دهزاره ګانو په نیکونوکې د مغولو عسکر چې په دیار لسمه او څوار لسمه پیړی کې د دې هیواد څخه تیرشول ، چغتایـي مها جرچې له شما ل ته را ښکته شول او مغولـي قو مونه چې په پنځلسمه پیړ ی کـې د جنوب نه هزاره جات ته را ننوتل اوغرنـي تاجکو ته یې ما ته ور کړهاوهلته یـې له تاجکوخلـکو سره ودونه وکړل هم شامل وو.
په هرحال ددغې فرضیې په منلوکې باید له احتیاط څخه کارواخیستل شي ځکه چې ځینې نښې نښانې هم ښیي چې د هزاره نو م د مغلوله راتـګ نه د مخه په دې هیوادکې استعمالیده اوښایي چې مغولي قوم به دمغولوله فتوحاتونه مخکې هم په هزاره جات کې موجودو. زیاتې څیړنې ښایي داخرګنده کړي چې د دغې سیمې لرغوني او ډېر زاړه اوسیدونکي ، دی نه هم پخوانی خلك وو.
دهزاره ګانو اصل هرڅه چې وي ، خودوی پهدودونوکې غرنیو تاجکو ته ورته دي که څههم دبدندجوړښت له پلوهله هغوی سره توپیر لري. هغوی داوسني منګولیادبو ریاتانو (Buri ats) په څیرزیزه توروینتان ، زیړی نصواری بخنی څیری ، کوچنی سرونه پلن مخونه ، دباړخوګانو برجسته هډوکی اوزیاتره چوغی سترګی لري .
هزاره ګان برخلاف د تاجکو پرقبیلو ویشل شوي دي چې له هغو څخه ډیری مهمې یې دبیسودو(Besud)، دایکونډي ،(Daikundi)پولادا( Polada ) دایزنګی( Daizangi) جاغوری ( Jaghu ri) اواو روزګانی( ruuzgani) قبیلې دي.تقریباټول یـې میشته شوي بزګردي اوپه یوه خاصه فارسي لهجه چې هزاره ګی نومیږي خبرې کوي . (١٦)
پهافغانستان کې لهعمده ملیتونوڅخه یوازې هزاره ګان داسلام شیعه مذهبهدي • اوپه

• د لیکوال دا خبره چې وایـې ټول هـزاره ګـا ن شیعه مذهبه دي سمه نه ده . ځکه چې په هزاره ګانو کې سني هم شته. دغیرخاني سیمې دهزارې پخل اوسیدونکي زیاتره سني دي. (ژباړونکی)

شیعه کی بیاائنا عشر یه (دولس اما میسان) دی چې دابر انسیا نو دا کثریت سره د عقایدو اشتراك لري.

په دې کې شك نشته چې دغه مذهبي اختلاف د هزاره گانو او دهغوی دگاونډیانو تر منځ په دښمنی کې چې ترشلمی پیړۍ پوری موجوده وه او دهغوی په ټولنیز او اقتصادی ټیټ موقف کې چې تراوسه پوری یې لر لی دی، مرسته کړې ده . ډیر احتمال لري چې دهغوی نژادی اختلاف که تر مذهبی توپیر زیات مهم نه و نو په هماغه اندازه خو یې مرسته کړې ده ځکه چې دکابل شیعه قزلباش دهغوی په ټولنیز ټیټ موقف کې اشتراك نه ور سره لري :

هزاره گان په جسمانی قوت او توان او د خواری او غر یبۍ په کارونو کی چې زیات ذهني مهارت نه غواړي شهرت لري . په زرگونو هزاره گان خپل سرحدی تیاتو بی د افغانی ښارونو په نیت پر یږدی او هلته دکسب گرو او اکثراً د کورنیو کارگرو په حیث گمارل کیږی .په پخوازمانه کې هغوی ته د نو کرو ... په حیث « تربل هر قوم » زیا ته ترجیح ورکو ل کیده او د ازبکو له برید ونو یې څخه سخت کړاوونه گاللي دی . (۱۷) یو شمیر هزاره گانو چې په هند وستان کې په برتا نوی لښکروکی شامل شول اثبا ت ته رسولی ده چې هغو ی زړه وراو داعتماد وړ عسکر دی او معمولاً مهندسی یونو ټولو ته ورکول کیدل .

دهزاره گانو شمال او لویدیځ ته یو قوم او سیږی چې د چهار ایماق (« څلو ر قبیلې ») په نامه یادیږی. دهغوی شمیر ددوه او د دري سووزو تر منځ اټکل کیږی او په جمشیدی (Jamshidi فیروز کوهی ( Firozkohi )، تیموری ( Timuri ) او تایمنی ( Taimani ) قبیلو و یشل شوي دی که څه هم تیموریان تل په چهار ایماق کې نه شاملیږی او یوقو م چې د هزاره په نامه یاد یږی هم کله کله له دی جملې څخه گڼل شوی دی. چهار ایماق زیاتره کوچیان یانیمه کوچیان دي چې دشمال کوچیان یې د مرکزي اسیا په ورته کیږدیو کې او د جنوب

یي په کیږدی دوله خیمو کې استوګنه لري . هغوی د فارسی په یوه لهجه چې د هراتي لهجې په نامه شهرت لري خبری کوی اوبر خلاف دهزاره جات د هزاره ګانو له چاسره چې هغوی ډیـره موده په نزاع کې ووسنیان دی. (۱۸)

لاهم بل ددلچسپی وړ ملیت په افغانستان کې کافران دی چې ا وس معمولاً نوران یاد نورستانیانوپه نامه یادیږی چې ښایـی یوللث له هغو څخه دنورستان په ختیځه سیمه کی اود سرحدنـه پوری خواپه چترال کې استوګنه ولری . په نولسمه پیړ ی کې څرګنده شوه چې یونااشنااو بیګانه خلك په دغه لـری او غرنی سیمه کې ژونـدکوی چې په رنګ ترخپلو ګاوند یانوسپین دی ؛ په پردی ژبه خبری کوی اوغیرمسلمان دی لـکه چې دکافر نوم چې د افغانانو له خواورته ورکـړ شوی دی، دا حقیقت ښیي :

دغه افسانـه یـی اتکل چې دپـورتنیو تفصیلاتـو په اثـر را پیدا شوی و اورود یارد کیپلنګ ( Rud YardKipling ) پـه خپل کتاب کـی« هغه سړی چـی پـاچـا بـه وی » ( The Man Who Wculd be King ) تائید کړی وداسی ګومان را منځ ته کړچی ښایی د کافـرانو نیکونه لرغونـي یونانیان یاممکن عیسو یان وی . ددغسی افسانـه یـی تیو ری په برخه کی د حقایقو د مونـد لولپاره یـوه زړه ور انګلیس سرجورج سکـات را برت سن ( Sir George Scoott Robert Son ) د نولسمی پیړی په پای کی دکافر انوسیمی ته لاړ او د خپلې کتنې په نتجیه کی یی دا حقیقت ومونـد چی دا خلك نه له یونانیانو اونه له عیسویانو سره کوم پیوند لری پرته له دی چې دهغوی په شان له شرابـو اوزوسره مینـه لـری. ډیـره مـوده لا نـه وه تیـره شوی چـی امیر عبدالـرحمن خان له درو خوا وو کافرستان ته لښکری ، لیږلی اوکافرانیی چی لا دمخه یی خپل نار ینتوب د مسلمانانو دسرونوپه راټولو سره اثبات ته رسولی ومطیع کړل. ډیر کافران داسلام دین ته راو ګرزول شول او دهغوی ټاټوبی نورستان «درڼاسیمه» ونومول شو.

نوران له دوو اساسی ډولونه متشکل دی چی یوه یی دتور پوستو اوبله یی دسپین پو ستو ډله ده اودغه دوی طبقې په خپلو منځوکی بیاپه یو شمیر وړو قبیلوو یشل شوی دی ، دهغوی ژبه دهندو اروپایی ژبو څخه دهندی ژبې (دهندو ایرانـی ژ بی یوه څانګه ده )

له څانګی څخه ده چی له دارد یك ( D ar dic ) ژ بی سره نژدی ارتباطری د هغوی مذهب دانیمیزم(Animism)* اوپولیتیزم (Polytheism)* یوترکیب دی چی د نیکونو عبا دت، دحیواناتو قربانی، لرګین بتان اودقبرونو تمثالونه پکښی شامل دی او اوس په افغانستان کې تقریباً له منځه تللی دی او په چترال کی د له منځه تللو په حال کی دی.
دهغوی په تولنیزو دودونوکی دپاتلیج * میلمستیاوی هم شاملی دی چی زیاتره د امریکی دشمال لویدیځ ساحلی قبیلو ومیلمستیاوته ورته دی او په هغوکی ټول غړی برخه اخلی.

نوران ( نورستانیان ) چې په کلیوکې اوسیږی اویو مختلف زراعتي او مالداری اقتصاد لری په غرنی ژوندکې ډیر تکیه دی. لږ ترلږه لهیوه جهته پخوانی آوازی رښتیاوی څکه چې هغوی اوپه تیره بیا دنورستانیولوړه طبقه دسپین پوستو ډیره قوی نښه لری اوپه زیاتروکی دشمالی اروپا( سکاند یناویایی هیوادونو)دخلکو جوتی څانګړتیا وی شکاری. نورستانیان کله‌کله سفرکوی او دهغوی لوی پروت ټولتوبی ته ندرتاً افغانانو ترهغه لاهم لږخارجیان ورځی.(۱۹). د قزلباشو دکوچنی‌خو مهمې افغانی دلې تقریباً ټول غړي دکابل په ښارکې اوسیږی. دهغوی اصل‌کوم سریا معمانه ده؛ نیکونه‌یی هغه عسکرووچی دفارسی فاتح نادرشاه افشارله خواد ۱۷۴۵م کال پهشاوخواکې پهښارکې پریښودل شول. دوی دخپل‌مشرپه شان ترکی نژاده وونه فارسی نژاده؛ قزلباش (سورسری) دحیدری سری خولی څخه اشتقاق مومی چی یووخت بـه پارسی عسکرو دحضرت علی (رض) په خاطر اوله شیعه مذهبی فرقی څخه دپیروی دځرګند ولوډپاره په سرکوله. افغانی امیرانوچی د دغی سره مرتبطی دلی اهمیت اوله پښتنی قبیلـوی وفا داریوڅخه دهغوی جدایی درك کړه، نویی د هغوی څخه کوږنی سپوږپوځ جوړ کړ اوپه دی توګه‌یی له مذهبی دښمنیوڅخه حمایه‌اوخوندی کړل. نن‌قزلباش‌تقریباً کاملاً ښاری

---

* انیمیزم(animism)یوه‌داسی عقیده ده چی‌وایی، روح د ژوند اساس‌دی. (مترجم)
* پددیروخد ایانوعقیده لرلوته پولیتیزم (Polytheism) وایی.(مترجم)
* پاتلیج(Potlatch)یودول میلمسیتاده چی په هغی‌کی دکلی یادهماغه سیمی ټول خلك ګډون کوی(مترجم)

اوزیاتره ښه تعلیم یافته دی اوزیاتره یې مهم دولتي منصبونه لري یا کسبکاره دي. دغه ملیتونه چې مخکې یې یادونه وشوه ستر افغاني ملیتونه دي خوزیات نور ملیتونه هم شته:

افغاني یهودلاتر اوسه په ښارونوکې او سیږی، که څه هم یوشمیر یې په دی وروستیو کلونوکې اسرائیل ته ستانه شریدی. ځینې هندوان اوسکان دخپلو پخوانیو د ښمنانو په منځ کې او سیږی چې زیاتره یې په جنوبي اوشرقي ښارگو تیو یاښارونوکې استوگنه لري. په شمالي افغانستان کې دعربو ښایسته زیات نفوس شته اوپه جنوب کې پروندو بلوڅان ژوند کوي. خو هیڅ یوه له دغو ملیتونو څخه پر افغاني چارو باندی زیاته اغیزه نه ده لرلې:

په مفصل ډول سره دافغاني کلتور او دودونو دبیانولو دپاره به زمونږ هره هڅه د دی اثر له ساحی څخه وتلی وی. خو په دغه کلتور کې ځینې مشخص اساسي اړخونه شته چې پر ته له هغو څخه به په افغاني تاریخ پوهیدل نا ممکن وی. دغه اړخونه عبارت دی له: مذهب، قبایلي تنظیم اودپښتني قوانینو له مجموعي څخه چې د «پښتونولی» په نامه یادیږی:

تقریباً ټول افغانان مسلمانان دی او اسلام دهیواد رسمي دین دی او اسلامی فقه لکه څنگه چې دابوحنیفه (رض) له خوا تفسیر شوی ده، دهیوادشرعي قانون دی:

په افغانستان کې دنړۍ داشیا دنورو څو ملیتیز و هیوادو په شان اسلام یو ستریو موټی کوونکی قوت دی. چې سرنی یې دافغاني فلکلور، ادبیاتو او دودونو بنسټ جوړوي.

له ټولو افغانانو څخه تقریباً په سلوکې اتیا سنیي دي چې د څلورو خلیفه گانو حقانیت مني چې هغوی دحضرت محمد(ص) جانشینان وو. له پاتي افغانانو څخه زیاتره شیعه اوپه شیعه کې بیادولس امامیان دی چې وایی چې حضرت ابوبکر صدیق (رض) حضرت عمر(رض) اوحضرت عثمان(رض) جعلکاران وو او دحضرت محمد (ص) روحاني صلاحیت دهغه زوم حضرت علي(کرم الله وجهه) ته انتقال شو او تر هغه وروسته داماماتو لړی یامذهبی پیشوایانو ته رسیدلی دی. هزاره گان* او همدا رنگه توری پښتانه داورکزیو ځینې پښې او د کابل قزلباشان شیعه مسلمانان دی:

---

*- دلیکوال داخبره چې وایي ټول هزاره گان شیعه دی سمه نه ده؛ ځکه چې په دوی کې سني هم شته. د مثال په ډول، د خیرخاني دغرو په لمنو کې پراته هزاره گان چې په هزاره بغل سره مشهوردی سني دی. (مترجم)

دغه عقیدوي اختلاف چې په کومه اندازه یې په اسلامي هیوادونو کې اختلاف را پیدا کړی دی په هماغه اندازه یې په لویدیځ کې دکاتولیکانو (Cathlics) او پروتستانتانو ترمنځ مخالفت پیدا کړی دی په افغانستان کې دیوه بیلوونکې قوت په حیث باقي پاتې دی، که څه هم هغه خونړي جګړي چې په نورو اسلامي هیوادونو کې یې منځ ته راوړي دي په افغانستان کې نه دي څنيې پیدا شوي. خو احتمال لري چې دي اختلاف د هغه خصومت سره مرسته کړي وي چې ګاونډیانو یې دهزاره ګانو سره لاره او پښتانه یې دي ته را کښلي وي چې دغه قوم دمریانو په حیث وساتي؛ څکه پښتانه برخلاف داز بکو د مریي ساتنې دودیو غیر اخلاقي عمل ګني.

پښتانه (افغانان) مخصوصاً په مذهب کې دمتعصبو اشخاصو به حیث پېژندل شوي دي او پرشمیر لیکوالو له کپلنګ ( Kipling ) نه نیولي بیا ترمیچنر ( Michener[r] ) پوري هغوي دکافرانو په مقابل کې ددښمن یاحتى جابر په حیث پېژندلي دي. پرته له شك څخه دهغوي یرغلونه پر بر یتانوي کار کوونکو باندې چې په افغاني سرحد ونو کې ځای په ځای شوي وو زیات اوز یا تره مهلك وو. برسیره پر دې، له شرقي قبایلو څخه دیر شمیر ملا یانو قدرت پورې خوت په دیني پرهه کې دومره نه ولکه په هغه استعداد کې چې لمسوونکې تبلیغونه بهیې کول اوپه شوراوولولوسره به یې هغه چاته دجنت وعده ورکوله چې د دین په لار کې شهید شي.

خو په واقعي توګه په مذهبي تعصب کې دافغانانو شهرت یوه ستره مبالغه ده. دعیسوي سیلا نیانو په قول په (۱۸۳۹) کې پر دې هیواد باندې دانګریزانو له لومړي یرغل نه دمخه افغانان دخورا یې تعصبه مسلمانانو څخه وو. چارلس میسن (Charles Masson) او الګزاندر برنز ( Alexander Burnes ) په مصئونیت سره په هیواد کې وګرځیدل جوماتونه لاړل، زیارتونه یې ولیدل او په عمومي دول ټول هغه امتیازات ور په برخه شول کوم چې به یوه مسلمان ته ورکول شوي وای. کله چې میسن ( Masson ) دروژې په میاشت کې په ربښاورځ دروژی خوړ لو په سبب دیوی سپین سري ښځې له خوا سرزنش شو، اوده

ورته وویل چې زه عیسوي یم ؛ ښځې نه یوازې معذرت غني وغوښت بلکې هغه ته یې نور ښه خواږه هم راوړل :

له ۱۸٤۲ کال نه وروسته ، دانګریزانو پر له پسې فشارونو دافغانستان مشرانو لمسول په داسې ضد و اقداماتو لاس پورې کړې چې له دین څخه دافغانانو دیومو تمې کیدولپاره کار اخیسته کیده او ددې مخینوی یې کاوه چې افغانان دانګریزانو دبډو یا وعدوته غاړه کښیږدي. دانګریزانو له خوادافغاني سیمې قبضه کول پرهغوی باندې دیوشمیر وژنې دقصدونو سبب شو چې ځینې له دغو قصدونو څخه به په بري سره سرته ورسیدل. رښتیادا چې دغه بریالیتوبونه چې دافغانانو په برخه شول دهیواد پالنې ثمره وه نه دمذهبي تعصب ثمره له دې حقیقت څخه څرګندیږي چې دانګریزانو ملکي یاغیر نظامي ما مورین هیڅکله نه دي وژل شوي ؛ رښتیا داچې دانګریزانو یومذهبي مبلغ څو کاله دافغانستان په ځینو غرونوکې وګرځیده چیرې چې دانګریزانو یومنصبدار به ځای پرځای وپشتل شوی وای.

دتیرو دیرشو کلونوپه موده کې زیات خارجیان افغانستان ته راغلي دي اود ۱۹٦۰ ۱۹۷۰ کلونو په لومړیو وختونوکې لږ ترلږه څلورزه خارجیانو په افغانستان کې ژوند کاوه چې یاد افغانستان دحکومت له خوا استخدام شوي وو یا خو یې دخارجي هیأتونو د غړو په حیث هلته استوګنه درلوده . له دغو خلکو څخه چې دیوڅوتنو څه سپکاوی شوی یااذیت شوی دی غیرمذهبي عوامل یې لرل . حقیقتاً داخبره به تقریباً په یقیني ډول سره صحیح وي چې بهرني سیلانیانو افغانانو ته زیات تاوانونه اړولي دي نه افغانانو هغوی ته.

دهندوستان دویش په وخت کې کله چې فرقه یي شخړو اوجنګونو د صوبه سرحد ګاونډي ولایت تباه کړ ، هیڅ یوسکڅ یا هندوسوداګر په افغانستان کې ونه ربړیده او هغوی چې تالیعمندوو او له هندوستان څخه یې ځانونه افغاني سرحد ته را ورسول پناه ورکړه شوه. او سره له دې چې افغانان د عربو له احساساتو سره داسرایلو په مقابل کې یوه عمومي همدردي لري ، افغاني یهودو ته کوم زیان نه دی رسیدلی او په داده زړه سره ژوند کوي او په عادي توګه خپل شغل تنظیموي :

له دغو څرګندونو څخه ښکاري چې د افغانانو دمذهبي عقیدې افسانه په واقعیت

کې پرځومره سست ښنسټ ولاړه ده. افغانـان طبعیتاً میلمه پال او صمیمي خلك دي او دیوه خارجي تقریباً هر ډول سلوك منلو ته چمتو دي؛ که څه هم بنایي دهغه وضع دافغانانو له دودونو یا مذهبي عقایدو سره زیات ټکرو خوري . دا په اصطلاح تعصب ښخوا تقریباً ټل دامپریالیستي تهدیدونکي قوت نمایندګانو ته متوجه و او د معاصرو « خپلواکۍ غوښتونکو » عملیاتو په پرتله معتدل و .

دادا مفهوم نه رسوي چې افغانان خپل دیني مسایل جدي نه نیسي. د اسلام نفوذ کوونکي او خپریدونکي خصلت دافغانانو د زیات شخصي او ټولنیز ژوندانه ښنسټ زدي او د ډیرو بیلا بیلو ملیتونو تر منځ د اتحاد اویووالي عامل دي . د افغانستان په کلیوالي اوزراعتي سیمو کې دسواد اندازه ټیټه ده تردې اندازې چې یوازې دکلي ملا په په لیکك او لوست پوهیږي ؛ هغه نه یوازې د کلي کوچنیانو ته درس ورکوي او په ودونو اوجنازو کې مذهبي دودونه پرځای کوي بلکې په شخړو کې منځګړی یاحکم هم دی. دا ربښتیا ده چې ځینې له دغو خلکو څخه نظر قرآن مجید ته له خرافاتو سره زیات بلد دي او دخپلو مقتدیانو نه استفاده کولو ته زیات مایل دي خو زیات نور یې په رښتوني توګه یعنې په اخلاص سره اسلام او د خیر کارونو ته وقف شوي دي، غریب ته پناه ورکوي اودسرکښو جذباتو دمخنیوونکي په حیث خدمت کوي.

قبیلې او قبیلوي نظام په افغانستان کې مهم دي په تیره بیا په پښتنو کې چې دهغوی قبیلې په جوړښت او دوفاداري په درجه کې چې هغوی یې غواړي یوه له بلې سره توپیر کوي مګر قوي او کله کله حتی په ملت کې قاطع قوتونه دي. ځینې له دغو قبیلو څخه لریې دي ـ د یوسفزو ، درانیانو اودغلزیو قبیلې هر یوه لږترلږه یو ملیون غړي لري ، او دنورو قبیلو د غړو شمیر له یوځو زرو څخه زیات نـه دی . له زیـاتو اصطلاحاتوڅخه چې دقبیلوفرعي ویشونـه څرګندوي څلور یې زیات مستعمل دي : ټولې قبیلې ته اولس یا قوم وایي. خیل تر قبیلې کښته دی او دقبیلې یو جز تشکیلوي چې غړي یې په هماغه یـوه سیمه کې او سیږي : په خپل پسې پښه ر اځي او پښه هم دخیل په نامه یادیږي چې غړي یې سره نږدې یوځای اوسیږي اواکثراً ګډ ملکیت

لري : تر ټولو کوچنی واحد کوریا کهول* دی چې غړي یې ټول سره خپلوان دي.

(۲۰) قبیلې ته دوفاداری درجه زیات توپیر کوی. دمثال په ډول : غلزي په قوم کې دننه دتر بګنیو او مخالفتونو په وسیله کمزوري شوی دی . له بلې خوا، درانیان که څه هم په یوشمیرخیلونو ویشل شوی دی او په یوی پراخې سیمې کې تیت او پرك دي، بخوا په دې بریالي وو چې په یوه ګډه داعیه کې سره یوموټی شي اودا یو له هغو عللو څخه دی چې دوی پر افغانستان باندې له هغه وخت نه چې دا خاوره دیوه ملت په حیث منځ ته راغلې ده تسلط ولري :

دیوی قبیلې مشران دخانانو یا ملکانو په حیث شهرت لري . دغه لقبونه چې قسماً میراثي دی کیدای شي برجسته افراد یې بې له دې چې کورنۍ یې په نظر کې ونیول شي لاس ته را وړي : په ځینو قبیلو کې د دغسې خانانو صلاحیت او قدرت زیات او په نو رو کې تقریباً هیڅ موجود نه وي؛ خو دا قدرت هیڅکله مطلق نه وي او دا به دهر خان لپاره هم غیر عادي او هم خطرناکه وي چې یوه داسې تلن لاره غوره کړي چې دهغه دقبیلې دخلکو داکثریت له خوا نه وي تائید شوی . زیاتره قومي پریکړې دجرګې له لارې سرته رسیږي چې کله کله له خانانو ، ملکانو او سپین ږیرو څخه جوړه شوي وي او کله کله تقریباً له ټولو نارینو و غړو څخه . ځینې قبیلې په‌تیره بیا په‌شرقي پښتنو کې‌تردې اندازې پورې دبرابري او مساوات غوښتونکې دي چې دجرګې له پریکړې سره اکثراً دیوه قبایلي له خوا چې دیوی‌لویې او قوی کورنۍ له خوا حمایه کیږي ، مخالفت کیږي .

یوشمیر غیر قبیله یې خلك چې دګاونډیانو په نامه یادیږي له قبیلو سره اوسیږي خو په دغه ارتباط په‌زیاته دقیقه‌توګه ګاونډیان دتابعینویاترسیوری لاندې‌کسانوپه معنی ترجمه کیدای شي . دغه خلك تیت ټولنیز موقف لري او په قومي پریکړه کې برخه

---

*- کوریا کهول‌یوه‌اصطلاح نه‌ده بلکې دوه سره جلااصطلاح ګانې‌دي چې دساختمان له‌پلوه یوله بلې‌څخه توپیرلري. په کور کې یوازې پلار، مورا‌وددوی اولاد وته شاملیږي اوپه‌کهول کې بیا ترنیکه‌پورې هم‌شاملیږي . (مترجم)

نه انحلی خو دخپلو کورر به گانو تر حمایی لاندی دی اوهر ډول تیری چی پر هغو باندی وشی په کلکه یی غچ اخیستل کیږی یا په ځینو حالاتو کی یی حتی تر دینه هم کلك غچ اخیستل کیږی چی که چیری هغوی دقبیلی غړی وای . په قبیلو او په کلی تو گه په ټول افغانستان کې زیات ارزښتناك واحد پراخه کورنۍ ده چې په هغې کی ټول هغه خپلوان شامليږی چې وینه یی سره شریکه یا دواده پر اساس سره خپل شوی دی . دتیوری له مخی تر ټولو مشر نارینه دکورنۍ مقتدر غړی دی خو په عمل کی دغه مقام ښایی دهر هغه سړی له خوا چی منل شوی نیاقت یا دریځ ولری، ونیول شی چی کله کله ښځه هم دغه مقام ته رسیږی. دننه په کورنـی کی شخړی او کرکی په تیره بیا د زیاتو ودونـو لامله او د متخاصمو نا سکه وروڼو ترمنځ له روابطو څخه را پیدا کیږی. خو دهرډول ضرورت په وخت کې دکورنی ټول غړی ټولنیز فشارلاندی راځی چی مرسته سره وکړی. په دی کې اقتصادی ارتیا شامله ده او له هغوافغانانو سره چی دناروغی ټپی کیدو یا دبل هر علت په نتیجه کې گټه نشی ترلاسه کولی ، په یقیني ډول دپراخی کورنی دشتمنو غړو له خوا مادی مرسته ورسره کیږی.

په دی کی شکځ نشته چی ددودونو مجموعه چی د« پښتنواله» یا دپښتنو دقانون په نامه یادیږی او په غیر پښتنو باندی ترپوی اندازی پوری اغیزه کوی ، د پښتنو افغانانو داخلاقی شخصیت قوی ترین تماکونکی دی. دغه قانون دری جلاحکمونه لري ننواتـی یا پناه غوښتل ، بدل یا غچ اخیستـل او میلمستیا. ننواتی له یو چا نه پنـاه او حمایت غوښتل دی چې بایـد هر چا ته ورکړل شی حتی دښمن ته هم . همدارنگـه دمنځگړیتوب غوښتنه کوی د یوه تیری کوونکی اوهغه چا تر منځ چی ده تیری پر کړی وی څو سولـه منځ ته را شي . دننواتی زښت ډیر جدی شکل دادی چی یوه ښځه خپل پرونی یوسړی ته واستوی او له هغه څخه دځان یا د خپلی کورنی لپاره دمرستی هیلـه کوی؛ ددغسی یوی غوښتنی ردول به تقریباً غیر قابل تصویر وی . دننواتی اهمیت مخ پرکمیدو دی، خو په قبایلو کی لا هم قوی دی ؛ دمثال په توگه په ۱۹۱۲ کال کی اپریدو چی دخیبر د دری عنعنوی ساتونـکی دی دیوه پاکستانی

دګروال د بدل اخیستلو په خاطر چې د خپلو عسکرو له خوا توقیف شوی و او هغه داپریدو یوه کوچنۍ کلۍ ته پناه را وړی وه دغه له اهمیت نه ډکـه لار دخه مودې لپاره بنده کړه .

بدل: غچ یا کسات اخیستل دی دځان یا دیوه چا دکورنۍ دیوه غړی دتپ یا سپکاوی لپاره ددغو مجازاتو ماهیت دقبایلو تر منځ سره توپیر لری په ځینو کی مجازات دپیسو دورکړی یا دسپین ږیرو دمنځګړتوب په واسطه فیصلـه کیږ ی او په نورو کی یوازی شخصی غچ اخیستل کفایت کوی. اتفا قآدغه اختلاف دقبایلی خلـکو له هوښیاری او پیچلیتوب سره متناسب نه دی . وزیر او مسود چی ښایی په قبایلی پښتنو کی ترټولو متشدد خلك وی، اکثراً په دی راضی دی چی دپیسو په اخیستلو اکتفا وکړی او په هره پیښه کی شخص مجرم د خپل قهر اوغضب مورد وګر ځوی . له بلی خوا اپریدی چی خورا هوښیاراو پیچلی خلك دی معمولاً په شخصی کسات اخیستلو ټینګار کـوی او په پیښه کی دمجرم دکورنۍ ټول غړی په مساوی ډول شامل ګڼی . شخصی بدل اخیستل او له هغه سره ملګری دوینو تویولو دښمنی په زیاتره ځایو کی رواج لری خو په ډیرو لږو ځایو کی دومره په دقیقه تو ګه عملی کیږی څومـره چی په پښتنو افغانانو کی سرته رسیږی. دا دود دپراخی کورنۍ دمفکوری په شان په هغو سیمو کی دحمایت او تحفظ دارتیا څخه را پیدا شو چیری چی دقانون چلونی نمایندګی موجودی نه وی او لا هم د لوټ مارسلوك په ورانډی د یوه خنډ په حیث عمل کوی. خو دا دود همدارنګـه تریګنیو او دښمینو ته لمن وهی چی ښایی نسلونه نسلونه دوام وکړی او دا چی پښتون اولس ولی سره نه یو مو ټی کیږی یوعلت یی همدغه دودوی که څه هم دا قو م په خپل قومی تشخص دومره ویاړی او فخر کوی . طبعاً چیری چی افغانی حکومت قانون او نظم بر قراره کړی دی هلته دغه دود سقوط کړی دی خو لا تراوسه پو ری دیوه حقیقت په حیث وجود لری چی افغانان په عمومی ډول حتی هغه چی ښاری او په تعلیم یافته طبقو پوری اړه لری سپکاوی ، ژوبلـه زیان او بی اعتنایی خورا جدی نیسی:

په ځینو قبایلو کې میلمستیا تقریباً یوه سپیڅلی دنده ده. دیوه افغان په نظر شخص او دمیلمه شتمنی مصئون دی او دمیلمه هوسایی او خوشالی دکور به لپاره دترجه مهم ټکی دی. دیر امکان لری چې افغانان دنړی تر ټولو زیات میلمه پال خلك وی؛ هیڅ یوه ته تریوه خسیس کور به زیات په بده ستر گه نه کتل کیږی او دبل په کور کی یوسړی میلمه کول په رښتیا سره یو اخلاقی سپکاوی دی. سخاو تمندانه میلمه پالنه چې په ټول افغانستان کی لیده کیږی دیوه ټولنیز حکم په توگه تقریباً مطلقیت لری. څرنگه چې په افغانستان کی دقبیلوی وفاداری ځای ملت پالنه نیسی « پښتونوالـه» وروورو لـه منځه ځی. سره له دی هم « پښتو نو اله » د افغانانو په کـړو وړو کی دیو قوی قوت په حیث پاتی ده او په دی دود کی غیر پښتانه چی د« پښتونولی » له قیوداتو نه وتلی دی او ښاری اوسیدونکی چی خپل قومی اړیکی یی پریښی دی دواړه شامل دی .

هیڅ مختصر لنډیز دافغانی دودونو دپیچلتیا موضوع په حقیقی توگه نشی څر گندولی دموضوع دکلی نتیجی په توگه ویلای شو چی دهندوستان، ایران او توران کلتورونه ټول تریوې اندازی پورې دافغانستان په کلتور کی منعکس شویدی. پر دی کلتور باندې دایران او منځنی ختیځ کلتورونه خورا زیاته اغیزه لری ؛ تریوې لږی اندازې پورې دهندوستان کلتور اوپه شمال کې دتورانیانو هم ترهغه لا لږه اغیزه ورباندې کړی ده. افغانانو، اوپه تیره بیا پښتنو پردی ټولو کلتورو باندی چې له نورونه یی اخیستی دی.» خپل خاص مهر لگولی دی څو داسی یو آسیایی هیواد منځ ته راوړی چې ساری یـې په جهان کې نشته . (۲۱)

ځمکه څېل د غرولمنی اوښپای لوړی سیمی
لری، داپراخه بیدیا ددی ده.ـ اترو اوبدا.

# دریم څپرکی

## لرغونی افغانستان

که څه هم دهندوکش دسیمو یعنی داوسني افغانستان ماقبل التاریخ تراوسه پوری تر ډیره حده نا معلوم دی، اوس په دی برخه کی دداد ورځیرنی پیل شوی دی . دا چی انسان دایران دلوړی سطحی په غربی برخه کی ډیر پخوا یعنی دتوزل شوی تیږی په دوره کی اوسیدلی دی په کافی اندازه ثابته شوی ده. ښایی په افغانی غونډیو او دروکی نوری پلټنی دتوزل شوی تیږی ددوری میشته شوني لکه دګاونډی ایران دتپه سیالک، تپه حصار اوباکون په شان را برسیره اوڅرګند کړی :

رښتیا هم ځینی معتبر لیکوال په دی عقیده دی چی ښایی دحیواناتو اهلی کونه او کرنه د ایران په لوړه سطحه کی پیل شوی وی . مواشی ، اوزی او پسونه ټول ددغو لوړو سیمو اصلی حیوانات وو اودشعر ابلیس په نوم یوډول غنم چی په روسیی ، المان ، شمالی او مرکزی امریکا کی شنه کیږی او اینکورن ( ein korn ) چی دا هم یوډول غنم دی ددغو دواړو څېل سری بیدیانی ( خو درو ) غر نی غنمو اصلی نمونی هلته موندل کیږی اوزیاتره دسمندر له سطحی نه د دوواو درو زرو فوټو لوړوالی ترمنځ لیدل کیږی:

یوشی چی دافغانانو دماضی په برخه کی سم او دداد ور دی هغه دادی چی خلك ددیر و وزر کلنیو دورو لپاره په اشیا کی د لوړو سطحو دپاسه او دشمالی شنلیو گر د چاپیر اوسیدلی دی. وخت په وخت دهغوی ډلو دنفوس د زیاتوالی، وچکالی یا نا څر گندو عواملو په وجه هجرت کړی دی . ځینی لویدیځ ته لیږدیدلی دی ، نور یی دآمو سیند له لاری څخه پر هندوکش را واوښتل یا یی دهندوکش لا ره پریښوده او دهندوکش دغربی ډدی څخه په را تاو یدو سره بالاخره دهندوستان حاصل خیزه میدان ته را ووتل . ددی جریان په برخه کی لږ معلومات تر لاسه شوی دی ؛ خو له عیسی (ع) نه دمخه ددویمی زر کلنی دو ری په وخت کی کو م خلك چی مونږ یی دهندو ، ار یایانو په نامه پیژنو له خپلو څارویو او سپیڅلو ویدا گانو ( Vedas ) سره دافغانستان دوادیگانو له لاری کډی و کړی . (۱) څه موده و ر وسته نو رقومونه چی ژ به یی عین ریښې لری هغه ځای ته را ننوتل چی اوس یی ایران بو لو او له هغو څخه مدیان( اهل ماد) او دهغوی څپلوان پارسیان هلته مشبته شول .

مدیانو چی د سیا گزارس ( Cyaxares ) او واخشترا ( Uvakhshatra ) ترمشرتابه لاندی یو قوی امپراتو ری جوړه کړه چی خپل پارسی تربرونه یی تر نفوذ لا ندی را وستل . دوی په ۶۱۲ ق . م کال کی کی نینوه ( Nineveh ) ورانه کړه او دوه کاله و روسته یی داسیر یا ( Assyria ) قدرت له منځه یوور . مدیان په خپل وارسره دپارسیانو له خوا له پښو واچول شول چې پاچاېي سیروس (Cyrus) ( لوی کوروش) و کوم چی تر ۵۵۰ق.م کال پو ری یوه پراخه سیمه چی په هغې کی افغانستان هم شامل و تر اداری لاندی درلوده . (۲)

له ښه مرغه د وروستیو مورخینو لپاره سیروس ( Cyrus ) او نور هخامنشی واکمنان علاقمندوو چی خپلی نیکمرغی دنورو تر مخ وشمیری او په دایمی شکل یې وساتی او دهوی په دبریښو لیکنو کی هغه لومړنی لیکنه هم شامله ده چی د افغانستان تاریخ یادونه پکښې شوې ده . په نقش رستم ( Naqsh-i-Rustam ) کی د لوی داریوش پر قبر، بیهستون اوبه سوسا کی دهغو سیمو یومونه لیکل شوی دی په کوم

چې دهخامنشي امپراتوری ویشل شوی وه . په دغو سیمو کی دهرایوا ( Haraiva )
یاداریا( Aria )(اوسنی هرات)هاورا وتیش(Haura vatish )یا آرا کوزیا (کندهار)،
سوگودو ( Sugudu ) یا سغدیا ( Soqdia ) ( دآمو اوسیرسیندونو ترمنځ سیمه ) ،
کوړا سمیا (Chorasmia) ( خیوا ) باکتریا( Bactria ) یاباختریش (Bakhtrish)
د ( هندوکش او آمو سین ترمنځ سیمه ) ساتګوش ( Thattagush ) یا سا تاجیډیا
( Sattagydia ) ( اوسنی هزاره جات) او گندهارا (دجلال آباد او پیښور وادیګانې)
شاملې وی :

باکتریا ( Bactria) او د هغې پایتخت باکترا ( Bactra ) ( اوسنی بلخ)
دهخا منشیانو یو له خورا مهمو و لایاتو څخه و. په همدې ځای کې چې هغه وخت
« دزرو ښارونو د میواد » په نامه یادیده چې زراتو شترا ( Zarathushtra ) یا زوروو
ستر ( Zoroa Ster ) ژوند کاوه او دمیلاد د مخه یې د شپږمې پیړی د نیمایی په
شاوخوا کې دویشتا سپه ( Vishtaspa ) ترحمایې لاندې تدریس کاوه چې لومړی
یوځپلواك پاچا و او وروسته یې بیادسیپروس ( Cyprus ) په امپراتوری کی دیوه والی
په حیث دنده سرته رسوله. (۳) او د هغې عسکرو په جمله کې چې دلری ( Hellas )
په مراتون ( Marathon ) کی جنګیدل د باکتریانو ( باختریانو ) عسکر هم وو چې
دسر پوښاك یې ترزیاتی اندازی مدیا نو ته ور ته وه . (٤)

ترمیلاد دمخه په ۳۳۱ کال کې دافغانستان سیمې دیوه انساني آسماني کاني دلمبې په
واسطه چې زیات دوام یې ونه کړ روښانه شوې . کله چې دمقدونیې سکندر داریوش
کودومنووس(Darius Codomannus)ته په ګاو گملا( Gaugamela ) کی ماته ورکړه،
دهغه لښکرو دپارسي لښکر اسنا دلاس ته راوړه. د لښکرو له فهرستونو او داحکامو
له مخې چې د داریوش ( Darius ) له خوا ورکړل شوی وو مونږ پوهیږو چې دهغه
(کینې اړخ لښکر ترزیاتی اندازی پوری د افغانستان له عسکرو څخه جوړ شوی وو
دکینې اړخ د پاې سپاره عسکر له باکتریا ( باختریا ) نه وو او هغه چې په مرکز کی
وو آرا کوزیان او غـرنی هندیان (محتملاً پښتانه ) وو .

سکندر ددی لپاره چې امپراتوری چې اوس دهغه وه ځوندی وساتی ، او د ختیځ لور ته مخ په وړاندی تلی او داوسنی هرات سیمی ته نږدی افغانستان ته داخل شو او وروسته بیا دجنوب له خوا تر سیستانه پوری پرمخ ولاړ ، دختیځ له خوا د اوسنی کندهار تر سیمی وړاندی ولاړ او دشمال له لوری دهندوکش ها خوا تر باکتریا پوری ورسید. بیا داوسنی کابل شاوخوا سیمی ته را ستون شو او دباکتریا دوالی لور رخشانه( Roxanne ) یې له ځانه سره د خپلی میرمنی په حیث را وستله او پس له هغی یې خپل لښکر دکابل سین په اوږدو کی هندوستان ته ولیږه او پخپله له یوه غوره شوی لښکرسره دکنړ وادی له لاری داوسنی سوات سیمی ته وخوځید ه: ددی سفر په برخه کی پرته له نکلونو او دذوالقرنین دلقب څخه په سیمه کی زیات معلومات نه دی ستا تل شوی چی( ددوه ښکرونو دخاوند) او د بختورمانا ورکوی. ممکننه ده چې دا نکلونه او نوموړی لقب دواړه یوازی داسلام دمنځته را تللو (ظهور) دوخته را وروسته وي.

یو وخت دروشان ( Roshan ) شغنان (Shignan) واخان ( wakhan ) ، چترال( Chitral ) او گلگت ( Gilgit) مشرانو ادعا درلوده چی هغه د دوی نیکه و، خو دا غالباً پرته دهغه دشهرت دستاینی څخه کوم زیاتی شی نه دی .

ترمیلاد دمخه په ۳۲۳ کال کی دسکندر مړینه دهغه دامپراتوری دپاره دمبارزې موجب وگرزیده چی ختیځه برخه یی دهغه دسپاره لښکر دکوماندان سلیوکوس نیکاتور ( Seleucus Nikator ) په لاس کی ولویده چی دسلیوکید ( Selencid ) دکورنی بنسټ یی کښیښود . تقریباً په همدغه زمانه کی په شمالی هندوستان کی د موریانو ( Marny an ) پیاوړی دولت چیمرکز یی پتنا ( Patna) وقوت مونده. له باکتریا ( Bactria ) سره چی دسلوکیدانو( Seleucids) په لاس کی وه، افغانستان دسلوکیدواو موریان دسیمی دیوځای کیدو نقطه وگرځیده .

سلوکیدانو په دی وخت کی دیوی تجربی دسرته رسولو هڅه وکړه. په زرگونو یونانی میشتیدونکی تشویقیدل یا خو ورته امر کیده چې دغه لری تاټي ته ور شی او

یونانی لښکری په چوڼیو کی ځای په ځای شوی چی د پر اخو جلگو کوچیا نو او دجنوب او دختیځ دموریانو په مقابل کی څارنه وکړی . دسپلیو کیدانو له نظره د غه پلان یوه ناکامی وه. یونانیان بریالی استعمارچیان‌وو مگـر دهغوی تمایل دبیلتو ن لپاره دلته دومره څرگندو څومره چی په اروپاکی و. ترمیلاددمخه د دریمی‌پیړی تر نیمایی پـوری دباکتریا سیلیوکـیـدی والی یعنـی دیـودوتوس ( Diodotus) دخـپلی خپلواکی ادعا کوله او دا یوه جگړه وه چی دهغه دزوی او خلف دویم دیودوتوس ( Diodotus ) له خوا یی دوام وموند. (۵)

دشمالی افغانستان خلك له یوې پیړۍ نه زیات دیوه خپلواك ایالت چی دیونان له خوا اداره کیده تابع وو چی معمولاً دباکتریا ( Bactria ) په نامه یـادیده او پـه موفقانه توگه یی دسیلیوکیدی هڅو په مقابل کې چی غوښتل بی بیا کنترول تر لاسه کړی ودریده. تر میلاد دمخه د۱۸۷ په شاوخوا کی باکتریا یی‌لښکروچی‌ددیمتریوس ( Demetrius ) پاچا له خوا رهنمایی کیدلی آریا ( Aria)، آراکوزیا ( Arachosia ) اوزرنـکا ( Zaranka) له خـپـلی خـاوری سره وتـړل . څلور کالـه وروسته یـی گندها را ( Gandhara ) له مـوریـانـو (Mauryans ) څـخـه و نیـولـه او لـه هـغـه لز وروسته دپټنا ( Patna ) پایتخت یوه لښکو ته چـی دباکـتریا یـی جـنرال‌میننډر ( Menandar ) له خوار رهنمایی‌کیده تسلیم شو :

د موریانو دوا کمنی په دوره کی هندی تاثیرات په جنوبی او شرقی افغانستان کی خپریدل چی په هغو کی بودایی دین هم شامل و او دآسوکا ( Asoka ) (۲۲۷-۲٦٤ ق.م) تقریباً له کلکی حمایی څخه برخو ردار و او آسوکـا ( Asoka ) د مـوریـانـو ترټولو ستر زمامدار و. دسمڅو په صومعو کی چی دوادیو په دیوالو کی کیندل شوی و په زرگونو بودایی راهبانو ځانونه‌دتنویرلپاره فکری پلټنی ته وقف کړی وو . بودایی دین پخوا له دی چی داسلام په واسطه له بیخه وایستل شی. دیری پیړی د افغانستان دعمده دین په حیث پاتی شو.

که څه هم تر ۱۷۰ ق.م پوری یوه پراخه سیمه چی په هغی کی شمالـی هندوستان

سیند ( Sind ) او افغانستان شامل وو دباکتریا په قبضه کی وه خو څومره ژر چی یې لاس ته را وړی هغومره چټک یې له لاسه ووته . دیمتروس شاوسر ( Chaucer ) په دغو الفاظو ستایلی و :

«لوی امیتریوس دهند ترلږ واك» احتمالاً ۱٦۷ ق.م په شاوخوا کی په یوه جګړه کی ووژل شو اوپه خاصی یونانی طریقی ، ددیمیتروس له مړینی وروسته یې امپراتوری په یوشمیر متخاصموایالتونو تجزیه شوه چی دشمال دکوچنیانو لپاره آسانه غنیمت و .

دکوچیانو دډلو خصلت چی باکتریا یې ور انه کړه لاتر اوسه پوری دمناقشی یوه موضوع ده ، که څه هم پخوانیو او اوسینو پوهانو دهغوی کوچیدنی فهرست کړی دی . لومړنی خلك چی دآمو له سین څخه دی خوا تـه را تیـر شول ساکـان (Sakas) وو . ساکان ظاهراً دسکیتی ( Scythian ) کوچیانـو یـوه پښه ده کـوم چـی په لرغونـو زمانو کی یې دیو راسیا ( Eurasia ) بیدیاګانی د هنګری (Hungary) له بیدیا څخه نیولی بیا تر منګولیا ( Mongolia ) پوری ترلاس لاندی وی .

باکتریا (Bactria ) ته دداخلیدو سره سم ساکانو (Sakas) د لویدیځ لور ته مخه کـړه خو د خپلوانو پارتیانو (Parthians ) په واسطه یې مخه ونیول شوه چې ایـران یـې نیولی اوهلته یې یوه پاچاهي جوړه کړې وه . ساکان چې د ځنډ سره مخامخ شوي ووختیځ لورته راوګرزیدل اویوه منطقه یې ونیوله چې تراوسه پورې د هغوی پـه نوم یادیـږي چې هغه دسیستان ( Sistan ) یاسکیستان (Sakistan) منطقه ده . لـه همدې ځایه دسکودزیاتوبیلـګوپراساس هغوی خپله واکمنی په جنوبـي افغانستان کې لږترلږه دغزني ترشمال پورې پراخه کړه اودمیلادي لومړ ی پیړ ی په شاوخوا کې کندهار اته راورسیدل .

داعقیده موجوده ده چې سا کانو تقریباً دیـو ې پیړ ی لپاره واکمنی کـریـده پخواله دې چې دپارتیانو ( Parthians ) له خواله پښوو غورځول شـي کـوم چـې دخپل قدرت معراج ته رسـ ـدلي وواوکوم چې ظاهراً دعیسوي سنې ترپیل لږوروسته له هماغه لارې نه راغلل چې رومبـی پخپله دسا کانو له خوا تعقیب شوې وه .

دپارتیانو Parthians ) دواکمنی موده هم لنده وه. د ۷۵ م په شاوخواکې
هغوی په افغانستان کې دیوه قدرت په حیث له شمال ته دیوې بلې ډلې په واسطه له
منځه یووړل شول چې هغه دیوه چي ( yueh - chi ) ډله او دساکانو لرغوني دښمنان وو.
وروسته له هغې چې دیوه - چي ډله دیوې بلې قوي ډلې هیونګ - نو(Hiung - nu)
له خوا ماته شوه، دغه وروستی ډله په کراره دلویدیځ او جنوب لورته آواره
شوه. هغوی د باکتریا په سرحد کې تم شول او په همدې ځای کې وچې کوجولا کډ
فیسز ( Kujula Kadpqises ) چې د پنځو قبایلي ډلو څخه دیوې ډلې مشرو، په ټولو ډلو
باندې تسلط وموند. دهغه قبیله چینایانو د ګیوئی - شنګ (Gui - shang) په نامه
پیژندله او تر دغه نامه لاندې یې یوه کورنۍ تشکیله کړه چې وروسته بیا رومیانو
(Romans) د کوشان د کورنۍ په نامه پیژندله.

کوجولا کډفیسز ( Kujula Kadphises ) په ټول شمالي افغانستان کې خپل
تسلط ټینګ کړ او د(۱۶۰م په شاوخوا کې یې ګندهارا له پارتیانو څخه ونیوله. زوی
یا لمسی یې ویما کډفیسز ( Wima Kadphises) په ټول افغانستان باندې تسلط وموند
او د کوشاني واکمنو بل او خورا مشهور ټولواک کنشکا د شمالي هندوستان زیاتره
برخه ونیوله. په داسې حال کې چې پارتیان زیاته کمزوري وه، د کنشکا ترمشرۍ
لاندې د کوشان پاچاهي بیا وړې او قوي شوه. نتیجه یې د روم (Rome) او آسیا (Asia )
ترمنځ دسوداګرۍ پراختیا وه ځکه په دې وخت کې دروم په مقابل کې د پارتیانو
دښمني دهغې لارې چې له اروپانه ترختیځ پورې رسیده دیندیدو باعث نه کیده.

داسې بریښي چې کنشکا په خپل پایتخت پروشاپورا « Purushapura » ( اوسنی
پیښور) کې بودایي دین منلی وي او دافغانستان ددروله لارې دغه دین خپور شوی
وي. په همدې وخت یعنې د. ۱۵ کال په شاوخوا کې وچې هنر په هغه سبک کې چې
یو وخت د ګریکو بودست (Greco - Buddist ) په نامه سره یادیده خواوس او په
زیاته صحیح معنی د ګندهارا (Gandharan) دسبک په نامه پیژندل کیږي پراختیا وموندله.
ځینې پوهان لاتر اوسه ددې عصر دمجسمو لپاره دالهام اخیستنې منبع ګریکو باختري

سلطنت ته رسوي ، خومتداول نظر دادی چی دغی اغیزی لـه رومـی سکندر یـی (RomanAlexandaria)څخه‌نشئت وکړ. په‌هرحال ، دغه‌سبکک له هینایانا(Hinayana) بودیزم څخه مهایانا ( Mahayana) بودیـزم ته یوانتقال څرگندوی او د دی پرځای چی بودا دیره ځیرك انسان په حیث وښودلشی دیوه معبود په حیث ښودلشوی دی اوددی سبکک زیاتې اوخورا ښکلی مجسمی په افغانستان کی په تیره بیا جلال آباد نه نژدی په هده کی موندل شوی دی .

دکوشانیانو دسقوطعلتونه نا څرگندی. تر کنشکا وروروسته ، د هغوی په پاچاهانو کـی و سیشکا ( Vasishka ) هوویشکـا ( Huvishka ) او واسو ویـدا ( Vasuveda ) شامل وو ؛ مگـر د ۲۳۰ م پـه شـاوخـو اکـی د هـغـوی آخـری پاچـا او لـه هغه سره په افغانستان کی دکوشانیانو قدرت دپارس دساسانی‌سلطنتی کورنـی‌له خوا پای ته ورسیده. دهخامنشیانو دزوال راهیسی پارسیان له رونقه لویدلی وو. دهغوی پاڅون دپارتیانـو دیـره پـارسی رعیت او ر دیشیر ( Ardishir ) لـه خوا رهنـمایـی کیده چی بغاوت یی وکړ او په قاطعانه ډول یی خپـل پخوانـی پاچاهان ۲۲۶ م کال کی په یوه جگړه کی چی په هورمز ( Hormus ) کی وشوه مات کړل . پس له هـغه اردیشیر ختیځ ته را وگرزیده؛ باکتریا ، آرا کوزیا او گندها راد‌ه‌نه په‌قلمرو کی را غلل. هلته ځینی شواهد شته چی هغه پر هند وسنان باندی یرغل وکړ او سرهند ( Sirhind ) ته ورسیـده؛ خو دتاریـخ‌فـرشتـه ( Ferishta ) پـه قـول هغـه دیـو مقدار زیاتی طلا ، جواهراتو او پیلانو په بدل کی چی دباج په حیث ور ته ورانـدی شول راضی شو شاته ولاړ شي او له هندوستان څخه لاس واخلی. (٦)

ساسانیانو تقریباً ددوو پیړیو لپاره په افغانستان کی قدرت درلود که څه هم ښایـی پارسیانو هلته دوړو کوشنی پاچاهانو پـه واسطـه چی ددغـوی رعیت ( Vassals ) گرزیدلی وو، سلطنت کاوه . پس له هغه ٤٢٥ م په شاوخوا کی یوه بله دنه دشمال نه لـوری را ښکـاره شوه.

داد لـه یو قـوم و چـی دیفتـلیا نو یا دو سپینو هونا نـو » ( WhiteHnns ) په

نامه یادیدل چی دهغوی تاریخچه تقریباً کاملا په تـوره لیکل شوی وه او دراتلونـکی
نسل دتنویر لپاره یی چندان نور نه وو پری ایښی.

یفتلیانلومړی دآوارانو (Avars) دتابعینواومتحدینو په حیث په زنگاریا (Zungaria)
کی څرگندیږی ، که څه هم چینایی منابع څرگندوی چی هغوی د چین په شمال کی
له کوم ځای څخه منځ ته را غلی دی . کله چی یفتلیان له آوارانو څخه را بیل شول ،
هغوی غربی لورته دآمو سین شمالی سیمو ته ولیږدیدل او پس له هغه دجنوب لور ته
یعنی هغه ځای ته چی اوس افغانستان دی را وگرزیدل.

په هغه سیمه کې دخپل کنترول تر پراخولو وروسته یې شمالـي هندوستان فتح
کړ او له یوه مرکز نه یې چې یا به هرات ته نږدې په بادغیس کې یا په بدخشان کې و
له پارسي ساسانیانو سره مکررې او اکثراً بریالۍ جگړې وکړې . په پای کې دپارسیانو
له خوا چې مشرې یـې دلومړي خسرو نو شیروان ( Khusrau Anushirvan ) په غاړه
وه او ترکان هم ورسره متحد وو مات شول او په څومره بیړه چې هغـوی د تاریخ
صحنې ته را ننوتې وو په هغو مره بیړه دتاریخ له صحنې څخه ووتل .(۷)

د۵۶۸ م په شاوخوا کې دیفتلیانو دا وروستنی ما ته د هندوکش په سیمه کی یو
تاریخی پړ اوښیی. له همدې ځایه یفتلیان، کوشانیان، ساکان او پارتیان ټولد قومونو
په حیث له منځه ولاړه او هیڅ افغان په داد سره ویلی نشې چې څو ك له هغو څخه
دهغه نیکونه وو. په بدخشان کې یوشمیر خلك ادعا کوي چې هغوی دیفتلیانو له پښته
دي که څه هم دا خبره چې ایا هغوی رشتیا دیفتلیانو له پښته دی یا نه لږ ترلږه د داد
وړ نه ده. نو نظر دهغوی شمیر ته هیڅ یو له دغو لرغونو قومونو څخه کاملا محوه
کیدای نشوای او پرته له کوم شکك څخه دزیاتو اوسنیو افغانانو نیکونه دي او ښایـي
حتی دغو ټولو نژادي ډلو نیکونه وي . په دغه دلیل د هغوی قومي او نژادي ترکیب
او د هغوی ژبنی اړیـکی تاریخ پوهانـو ته اهمیت لـري .

پارتیان او ساکان تقریباً په یقینی توگه دسکیتیانو دتنی څانگې او په تیره بیا د هغې
تنې څانگې دي چې غړي یې دجگزارتانو ( Jaxartes ) نه په هسکو سیمو کې پاتې

شول په داسې حال کې چې نور يې چې يوناني مورخينو ښه پيژندل دپانتيک( pontic (
پراخې ځلګو ته ليږديدل : دا په عمومي ډول منل شوي ده چې هغوی د سپين
(هندو اروپايي ) نسل څخه دي چې ژبه يې دايراني ژبو له کورنۍ څخه وه .

ديفتليانو او کوشانيانو دنژادي اصل په باب دنظر اختلاف همداسې دوام لري
ځينې پوهان ادعا کوی چې لږ تر لږ ه کوشانی واکمنان ترکاومغل ( Turco-Mongols)
وو خو غالبه نظريه داده چې هغوی دسيکتيانو ( Scythian ) لا يو ه بله ښاخه ده.
يفتليانو پرته له شک څخه ځانونه هونان(Huns ) ګڼل او دهماغه زمانې نورو
خلکو له خوا هم يفتليانو ګڼل کيدل ؛ برسيره پردې شوروي(لرغون پيژندونکو داسې
نتيجه لاس ته راوړې ده چې اوارا ن ( Avars ) له چا سره چې هغوي زياته
موده يوځای وو، زياتره مغولې نژا د وو. له بلې خوا دبيزانتين (Byzantine )
(ختيځ روم ) مورخ پروکوپيوس ( Procopius ) په خاصه توګه هغوي يوازنی هونان
ګڼلې دي چې سپين بدنونه او سپينې څيرې لري چې زشتې نه دي. (۸) د بليو دبليو
تارن( W.w.Tarn )غالباً په دي څرګندونه دموضوع حقيقت ته نژدې شوي و چې هره
ستره ډله به حتماً « يونژادی مخلوط » و .

ديفتليانو تر ورکيدو وروسته ، دافغانستان تاريخچه له هغو خلکو سره سروکار
لرې چې لاتراوسه پورې دڅرګندو واقعيتونو په حيث موجود دی. ځکه دا هيواد
له يوې پيړۍ نه زيات بيا دپارس دساسانيانو تر تسلط لاندې و . په داسې حال کې چې
ترکان هغو سيمو ته چې د آمو سين شمال ته پرتې دي خوځيدل او دا سيمې له هماغه
وخت را هيسې دترکستان په نامه شهرت لری . داسې ښکاري چې ساساني کنترول
ديوډول فيوداليزم له لارې تعميل شوې او د يو شمير ترکی کوشانې يا د يفتلی
کورنی په ورو پاچاهانو پورې متحصر و چې دهغوي واکمنې پر کوچنيو کوچنيو
قلمرونو باندی تقريباً کاملا مستقله وه :

ساساني قدرت بالاخره داسلام د نوي قدرت په واسطه ټوټه ټوټه شو کوم چې
عربي ملاتړ کوونکو يې خپل پيغمبر (ص) د دې وينا پيروی کوله چې د دين لپاره

شپه اوورځ هرلور ته جنګيدل تر نري او هرڅه چې په نړۍ کې موجود دي غوره دي.» تر ۶۳۷ م کال پورې د عربو جنرال سعد بن ابي وقاص خپلې لښکرې ساساني پايتخت ته چې ټيسفان ( tesphon ) کې وراهنمايي کړې وې ؛ څلور کاله وروسته د ساسانيانو وروستی ټولواك يزد يګر د( Yazdigird ) ته په نيهاوند ( Nihavand ) کې ما ته ورکړل شوه اودداريوش کادومينوس ( Dcerins Codommanus ) په شان يې خپل ژوند ديوه خاين په وسيله له لاسه ورکړ.

برعکس ددې ادعا چې اکثراً کيږي، اسلام په افغانستان کې په هغې چټکۍ سره خپور نشو په کومې سره چې په پارس ( Persia ) ا و دلويديځ خوا ته سيمو کې خپور شوی و او نه هم عربو پردې سيمه باندې اغيزناکه تسلط قايم کړ. دعربي ليکوالو په قول، تر لسمې پيړۍ پورې لا هم د افغانستان زيات خلك بت پرستان وو او لا هم دافغانستان زياته برخه دمحلي غير عربي سالارانو تر اداري لاندې وه (۹)

دعباسيانو دخلافت له زوال سره دعباسيانو د قلمرو په شرقي برخو کې خپلواك دولتونه را پيدا شول . له دغو څخه لومړی دطاهريانو دولت و چې په خراسان کې تاسيس شو چې دهرات اودمشهد شاوخوا سيمه وه . بله کورنۍ چې څرګنده شوه د صفاريانو کورنۍ وه چې په سيستان کې ديوه ياغي له خوا چې يعقوب ابن ليث صفار نوميده تاسيس شوه. تر ۹۰۰ .م پورې دصفاريانو او طاهريانو د دواړو کورنيو ځای بل سلطنت ونيولی و چې په ترکستان کې متمرکز او دساماني کورنۍ په لاس کې و.

دې کورنۍ تر يوې پيړۍ پورې نا قراره جلال درلوده چې ابو علي آل حسين ، ابن سينا هم ددې زمانې له نامتو شخصيتونو څخه دی . خو ساماني دولت په يوه طبقاتي ترکي سمندرګۍ کې تر يوې ايراني جزيرې څه زيات شی نه و او په ۹۹۹.م کې د الك خانانو ( Ilakkhans ) له خوا مضمحل شو چې د کاشغر د يويي غور ( Uighur ) ددولت مشران وو . (۱۰)

سامانيانو دخپلو لښکرو لپاره چې تربرې يې له کلتور سره زياته‌مينه درلوده ترکي مريان را جلبول. ځينې له دغو مريانو څخه آزاد شوي او دولتي مهم پستونه ورکړل

شوي وو چي زیاترو له هغو پوستونو څخه عسکری مهارت ایجا باوه . په ۹۵۰م کې یوترکي مامور چي آلپتگین ( Alptigin ) نو میده غزنې ته دوالي په حیث ولیږل شو. دا ښار تقریباً اتیا میله لـه کابـل څخه لـری دې او دسامانـي قلمرو جنوب ختیځ سرحد یې تیا کـه. دآلپتگین ځای بالاخره دهغه زوم سبکتگین ونیوه چي ادعا یې کولـه دیز دیگر ددساسانیانو دوروستي پاچا له پښته دي ، که څه هم د هغه تذکره لیکونکي سیاستاً لیکلی دي چې « حقیقت یوازې خدای ته معلوم دی .»

دسبکتگین نسب هرڅه چې وی ، هغه دلیاقت څښتن و چې دسامانیانو دیوه رعیت په حیث یې دوا کمنې له هر ډول حیلې او تظاهر څخه کا ملاً انکار وکړ او پس له شل کاله یې خپل تسلط دافغانستان ترز یاترو برخو پوري ورساوه اویوه کورنې یې مینځ ته راوړه چې دغزنویانو دسلسلې په نامه یادید لـه .[1] په هغه پسې یې زوی اسماعیل په ۹۹۷م کال کی منځ ته راغی او دوه کاله وروسته دهغه بل ډیرنامتو زوی محمود دافتدار پرمسند کښیناست.

سلطان محمود « بت شکن » چې د اسلام له پاچاهانو څخه یو زښت نومیالـی پاچاو پرهندوستان باندې یې داووه لسو بریالیو یرغلونو لارښوونه وکړه، خپل لقب اوپه څروروغنیمت یې لاس ته راوړاوپه همدې غنیمت یې خپل پایتخت ښکلی کړ. هغه پرځان باندې داسلام تول هوښیار او حکیـم اشخاص را غو نډ کړل او دهمدې ټولو ائك په امر فردوسی خپلـه شاهنامه ولیکله چې داسلام یوه لویه حماسه ده.

داسلام لرې خلیفه دویرې له مخې محمود ته دیمین الدولـه ( د دولت ښۍ بازو او دامیرالملت ( دمومنانو د مشر ) لقبونه ورکړل . هغه دخپل وخت تر ټولو زیر دست عسکر ی مشر و او پایتخت یې په غز نې کی په مرمر ینو قصرونو سره مجلل شو حال دا چې دایډوارد ( Edward ) او هرالډ ( Harold ) د زمانو لندن نظر و هغه پایتخت ته له یوې ختیځنی قریـی څخه زیات شی نه و. (۱۱)

غزنی چې د یوه جګړه مار ستر منصبدار دپاره یو پرتمین خود یوې امپراتوری دپایتخت دپاره دومره مناسب نه و، دسلطان محمود تر مړینې وروسته په ۱۰۳۰م کال کی له خپله قدرته ولویده.

دا ښارتريوی پيری وروسته، له غورسره په جگړه کې ونښت اوغوريوبل دولت و چې زر يې پراختيا وموندله اودغربی افغانستا ن په غرنيو سيمو کې منځ ته راغی .

ددې جگړې په نتيجه کې په ۱۱۴۹.م کې يوه ډيره ناوړه تباهي منځ ته راغله چې دغور پاچا علاوالدين ته يې دجهان سوزلقب ورکړ.

د غزني ځای غور ونيوه چې تر ۱۲۱۵.م کال پورې دستر قـوت په حيث په افغانستان کې پاتې شو او بيا وروستـه دمحمد شاه له خوا چې د آمـو د سيند لـه خوا خوارزم شايانو پاچا وفتح شو. غوريان ظاهراً يوايراني قوم او احتما لا تاجک وو * په داسې حال کې چې غزنويان ترکان وو که څه هم دهغوی لښکرې ترزياتې اندازې پورې له افغانانو څخه جوړې شوې وې . دغور ستره کارنامه دهندوستان په شمال کې وه چيرې چې معزالدين محمدغوري اودهغه جنرال قطب‌الدين ايبک د مسلمانانو سلطنت تاسيس کړ. ځکه نو په يوه معنی دا محوه شوی فاتح دپاکستان نيکه دی. (۱۲)

دغوريانو دپايتخت فيروز کوه موقعيت تر ډيرې مودې پورې معلوم نه وځو په دې وروستيو وختو کې په څه ډاډ سره تثبيت شوی دی .

خوارزم شاهان‌چې غوري واکمنی يې په افغا نستان کې پای ته ورسوله دسلجوقي ترکانو د امپراتوري پاتـې کسان وو. دوی دنـني خيـوی په و احه کی تا سيس شوی امپراتوری‌چې يووخت‌دخوارزم په نامه يادیدله دسلجوقی امپراتوري ډيوې بلې‌پاتې شوی برخې په مقابل کې‌چی پايتخت يی په مروه کی و بريالی‌شول اوهمدارنګه‌دخيتانو (Khitans) په مقابل کی‌چی اصلا له منچوريا (Manchuria) څخه وو اودکاراختيای (Karakhitai) په‌نامه‌يی‌په‌کاشغرکی‌پاچاهي‌درلوده‌هم‌غالب‌شول‌دا‌ځل‌نتيجه‌مه‌بيت‌و.

دخوارزم شاهانو امپراتوری دخپل معراج‌په وخت کی د چنګيز خان د مغو لی مور و دزيانو خرابکاريو او تباهيو په واسطه له منځه ولاړه . دې سور و چي له تورلو کوچي يرغلګرو‌څخه زيات وحشي چپاولګرو ودخوارزم شايانو لښکر محوه کـړ

---

* دا دليکوال يود تيرشتنه ده. دمرحوم لوی استاد حبيبی ، کهزاد ، عتيق‌الله پژواك او يو شمير نورو داخلی او بهرنی مورخينو په قول ، غوريان نه ظاهراً يو ايرانی قوم اونـه احتمالاً تاجك وو بلـکی نښتانه وو. »پښتو‌څيړنی« دعلوموا کادمی، ۱۳۶۷کال، ۱-۲-۳ مځونه وګوری .

دهغو ښارونه یې له یوه سره ویجاړ کړل او یوه ویرانه یې تر شا پرېښوده. ددلچسپۍ وړ ده چې په همدغه زمانه کې دخوارزم شایانو دلښکر یو آخري سر گردانه ټولۍ لري لویدیځلور ته ولاړه او نژدې وچې دبیت المقدس لرغونی ښار په کنډوالـه بدل کړي .

وروسته له هغه چې چنگیز خان دآمو سین دشمال خوا ته سیمې فتح کـړې ، باکتریا ته وخوځیده او هغه آبادي سیمې ته یې تردې اندازې پورې زیان ورسا وه چې دغه زیان هیڅکله جبران شوی نه دی .

وروسته له هغه چې دفاتح چنگیز گـران لمسی موتوکن ( Mutukin ) دبامیانـو تر دیوالونو لاندې ووژل شو ، په غضب شوي مغولو ټول خلک چې ددوې گردچاپیره پراته وو له منځه یوړل. له همدې ځایه یو مخکښ لښکر چې دیرش زره مغولـي سواره یې دراودل مخ په جنوب دغزني خوا ته چیرې چې دخوارزم شایانو دکورنۍ دآخرې پاچا زوی جلال الدین له افغانـي قبـایلي خلـکو څخـه یو پـوخ جـوړ کـړی و و خوځیدل. دلته مغول په غیر منتظره ډول مات شول. دا دهغوی په چټکو بریا لیتوبو نو کې یوه له ډیر لږ شمیر ماتو څخه یوه ماته وه.

دې ماتې خپلـه چنگیز خان صحنې ته راووست چیرې چې جلال الـدین د مغولي جنرال تحسین ځکـه ځان ته وکاته چې هغه ځان په دریاب کـې واچاوه او هندوستان ته وتښتیده. جلال الدین هلته اوپه پارس کې یورومانتیک ژوند ته دوام ورکړ.

چنگیز پخپله کله چې د مغولو دیوه روایت له مخې دیـوه یونیکـارن*(Unicorn) له خـوا ور تـه اخـطـار ورکـړل شـو چـې وړانـدې ولاړ نـشـي دسند( Indus ) سره تم شو؛ اوداداسې یوه پیښه وه چې که رښتیا وي نو هندوستان به په حقه سره دغه افسانه یې حیوان دخپل ملي نښان په حیث ځان ته ټاکلی وای .

دا خبره زیاتـه محتملـه ده چې چنگیز دهندوستان ددښتو تودوخې او د هغې اغیزې پر خپلو شمالي سورو باندې ویراوه چې دا کارونـه کړي. (۱۳)

افغانستان دیو څه مودې لپاره لږ تر لږه تش په نامه د مغولو تر تسلط لاندې پاتې

---

*- یونیکارن دآس په شان یوخیالي حیوان دی چې په تندې کې یو اوږد ښکر لري . (مترجم)

شو. په ۱۲۴۷ م کی دچنګیز یوه لمسی ( منګوخان ) (Mangu Khan) شمس‌الدین چې دغوریانو دنجباوو څخه و د هرات دوالي په حیث مقرر کړ چې په پارس کې دمغولو د اقتدار له زوال‌څخه یې استفاده وکړه او یوه نوې کورنی یې تاسیسه‌کړه. داکورنی‌چې دکرت ( kurt ) په نامه یادیده تقریباً یوه پیړی یې دهرات دشاوخوا په سیمو کې حکومت وکړ. (۱۴)

۱۳۳۶ کال دترکانو خورا لوی فاتح ګود تیمور منځ‌ته راووست. تیمور چې په ختیځ کې صاحب قــر آن بللل کیــده (Lord of the fortunate Conjuuction) د ګورکانو ( Gurkan ) چې دبر لاس ترکانـو ( Barlas Turks ) یوه پښه ده مشرو چې دآمو سین په شمال کې یې ژوند کاوه . ده دترکا نو دقبیلو لـه متحدکولو څخه وروسته په یوه دوره فتوحاتو لاس پورې کړ چې د چنګیزخان له فتوحاتو سره اندول وو. برخلاف دمغولو ، تیمور دهنر او کلتور سره دلچسپی درلوده که څه هم مسلماً ده هیڅکله نه دی پـریښي چې له هنر او ثقـافت سره دده دلچسپي د جنګ لپاره د هغه دجذباتو مانع وګرزی .

ده افغانستان‌له مشکلاتو سره فتح کړ. دلته دغرونو په منځ کـې دجنګ دیوه نابغه په حیث دهغه دنبوغ لپاره زمینه نه وه برابره او نا ممکنه وه چې پر ځینو قومونـو په تیره بیا پر کافرانو باندې بری‌وموم‌ي . په ۱۳۹۷ کال کې یې یو لمسی ( پیرمحمد ) په کابل کې دچارومسول وګرزاوه او خپلو فتوحاتو ته یې په هندوستان کې بې له تکلیفه پراختیا ورکړه او هندی لښکری یې په آسانی سره ماتی کړی او دهلی یې داسی وران کړ چې « ددوو میاشتو لپاره یوه مارغه هم وزرونه ښوراوه. »

وروسته له هغې تیمور را ستون شو چې خپل پایتختونه په سمرقند ا و بخارا کی په هغو ودانیو سره چې دهندي مریانوپه واسطـه جوړې شوې وې ښکـلې اودهغـوی دهیواد په غنایمو سره مجهز کړي. تیمور خپلـه توجه لویدیځ او شمال ته را واړولـه او خپلو فتوحاتو ته یې دوام ورکړ . دخپلې دوری په اوج کې یې بایزید ( Bayezid ) ته چې تر هغه وخته پوری دعثمانی ترکانو ( Ottoman Turks ) نه مغلوب کیدونکی

سلطان و، ماته ورکړه. تیمور په ۱٤۰٤ کال کې مړ شو اوخپله امپراتوري یې پیر محمد ته پرېښوده. (۱۵)

دخپلو مخکښینو دولتو په شان د پنځلسمې پېړی په پای کې دغه پراخ دولت د شهزاده نشینانو یو ګډ ود قلمرو ګرزیدلی و چې یو له بل سره یې شخړه کوله اوهر یو دتیمور دیوه اولاد په واسطه اداره کیده. ددغو توطئه ګـروخپلو انو له ډلی څخه په ۱٤۸۳ کال کی یو بل نابغه مشر د ظهیر الدین په نامه چې د با بر( زمری ) په نوم یی شهرت درلود را پیدا شو.

بایزید چې په څوارلسم نسل دچنګیزخان او همدارنګـه په پنځلسم نسل ګود تیمور ته رسیده دیوې مړدی لپاره داسې ښکاریده چې د تیمور یانو امپراتوري بیا سره یوموټی کړي ؛خو په پای کې دهغه دهڅو مخه دهغو کوچیانـو ګډوالو (مهاجرینو ) دوروستی ډلی له خوا ونیول‌ـه شوه چې له مرکـزی آسیا څخه راغلل. تر ۱۵۰۰ کال لږ څه دمخه ازبکانو چې‌یو ترکې قوم و ، جنوب لور ته د آموسین خوا ته لیږدیدل پیل کړه. په ۱۵۰۳ کال کی بابر چې ټول امیدونه یې له لاسه ورکړی وو دیو شمیر ملـګرو سره له هندوکش څخه را تیر شو او « ما بی له‌جنګ او بې له کوښښ څخه دربیع الثانی په اخری لسو ور ځو کی دلوی خدای په مرسته او مرحمت کابل او غزنی لاس ته را وستل او دهغوی خپلواکې سیمې چې ځان ته تابع کړلې. » (۱٦ )

له بابر سره کابل ته دبیګانه وو او جنګیالیو یوه ډلـه راغله چې د جنګ لیوال وو د دې لپاره چې دغه ډله برابره کړی او همدارنـګـه له دی سببه چې دده یوه نیکـه هم هم بلـه چاره نه درلوده، بابر د افغاني قبایلو اودخپلو پاتې شوو تیموری خپلوا نو په مقابل کې یو لړ جګړې وکړې په پای کې یې خپل جنګیالي هندوستان ته بوتلـل اوپـه ۱۵۲٦ کال کې یـې ددهلي سلطان ته چې دلودی قبیلې یو افغان و، ماته ورکړه. دهماغه کال داپریل‌دمیاشتی په ۱۵۲٦ کله چې دبابر په نامه‌ددهلي دپادشاه په حیث جامع جومات کې خطبه ولوستل شوه ، د یوې کورنی سلطنت پیل شو چې په نا سمه توګه دمغلو د کورنی‌په نامه یاده شوه.

بابر په ۱۵۳۰ کې مړ شو اودهغه دوصیت له مخې یې مړی بیر ته کابل ته را وړل شو او « دکابل د ښاوخوا په یوه ډیر په زړه پوری ځای کې » خاورو ته وسپارل شو داشیا ددغه فاتح مقبره لا تراوسه هلته شته اودغه لاندی ډیر لیک ور باندی پروت دی: یوپاچا دکوم له څیرې نه چې دخدای نور ځلیده، محمد ظهیرالدین بابرپادشاه و.

دمغولو کورنۍ دپارسي نه صفوي کورنۍ سره تقریباً په یوه زمانه کې په هندوستان کې را پیدا شوه؛ په حقیقت کې بابر اودصفوي کورنۍ بدخویه موسس شاه اسمعیل سره ښه پیژندل. دغه دوې کورنۍ دوې پیړی سره ګاوندیانې وې چې ستر پرمختګ یې په برخه شو او بیا یې تقریباً په عین وخت کې سقوط وکړ. په پارس کې دشیعه او دمغلو په دربار کې دسنی عقیدی دمخالفت سره سره بیا هم دهغوی تر منځ روابط نسبتاً ثابت وو. ددغې دوري په اوږدو کې افغانستان یوځل بیا دیوه مایل هیواد حیثیت درلود چې کابل د مغولو په لاس کې او هرات د صفویانو په لاس کې و ، اوکندهار د دواړو منځ په پړله کې پروت و چې کله به دیوه په لاس کې او کله به د بل په لاس کې و. دا ښار په ۱۵۹۵ کې دمغولي اکبر له خوا ونیول شو. په ۱۶۲۲ کې بیا دشاه عباس له خوا ونیول شو، په ۱۶۳۷ کې بیر ته شاه جهان ونیوه او ۱۶۴۹ کې بیا دپارسیانو په لاس ورغی.

دمغولو اوصفویانو دواکمنی ددغې دوري په ترڅ کې نوو قواوو په افغانستان کې جنبش پیل کړ او دا ځکه چې تر دي وخته پورې متخاصمو پښتنی قبیلو دلومړي ځل لپاره په امتحا نی توګه هڅې وکړی چې سره یو شي. په دغه لار کې لومړی قدم د یوسفزو له خوا په ۱۶۶۷ کې اوچت شو. دی کار ته په ۱۶۷۲ کې دا پریدو له خوا چې ختټک، شیراتیان او غلزی ورسره یوځای شوي وو او دیوره خپلواکی غوښتنه یې کوله دوام ورکړل شو. دوی په ګډه سره دمغلو یو شمیر لښکری محوکړی او د خپل « پاچا » اکمال خان ( AkmalKhan ) په نامه یې سکه ووهله. ربښتیا هم دوی پرته له وحدت نه دملی حاکمیت نور ټول صفات درلودل. همداچې دمغلو واکمن اورنګ زیب جګړه بس کړه اودوطن آبادی او اقتصاد ته متوجه شو، دغه نهضت دداخلی خیانتونو په یوی ګډودی کی له منځه ولاړ.

دپښتنو دتسلط بله څپه په کندهار کې منځته راغله چېرې چې دصفوي مخ په زوال اقتدار دګرجي شهزاده ( Georgian prince ) شهنواز ( دکار تلي یوولسم ګیورګي (Giorgi xlof kartli) په لاس کې و او دا هغه څوك دي چې افغانستان یې دشیطان دتخم او دخلکو تباه کوونکي په نامه یادوي . په ۱۷۰۹ کې غازي دمیرویس په مشرۍ چې دهوتکي کورنۍ مشر و له خپلو شما لي سنګرونو څخه راکښته شول والي او دچوښې لښکر یې ووژل او ښار یې ونیوه. تقریباً په همدغه وخت کې د پښتنو یوې بلې قبیلې ( ابدالیانو ) د هرات ښار ونیوه .

له دغو پیښو څخه د صفویانو کمزورتیا څرګنده وه. لږ وروسته دغلزو سور و لښکرو په پارس باندې یرغلونه پیل کړه ، خلك یې لوټول، مالونه یې چورول او یوازې دیوه سست مخالفت سره مخامخ کیدل. په یوې دغسې لښکر کښې دمیرویس زوی ( محمود) بې باکانه زړه ورتیا سره خپلې لښکرې په اصفهان کې دصفویانو دپایتخت تر دیوالونو پورې ورسولې . دلته حتی پخپله محمود هم حیرا ن شو چې چې بې آرادې اوعاجز شاه، سلطان حسین خپل تخت یرغل کوونکو ته تسلیم کړ .

په اصفهان کې دافغانانو د واکمنۍ موده لنډه وه . د غلزو شمیر لږ ؤ او له خپلو کورنیو څخه لرې پاته وو ؛ پارسي شیعه ګانو چې څومره له هغوی څخه د هغوی دعقیدې له امله کرکه کوله په هماغه آندازه یې دهغوی د ظلم له امله هم کرکه کوله. په پای کې دهغوی دمشر ( محمود ) زیاتیدونکې لیونتوب ددې سبب شو چې خپل خلك یې مړکړي او د هغه دتره زوی ( اشرف ) یې ځای ونیسي. دا نوی پاچا « متواضع او زړه ور » و مګر ورانۍ مخکې له مخه لا شوې و ؛ په ۱۷۳۰ کې په زرګان( Zargan ) کې له یوې ما تې څخه وروسته چې کوم غازي ژوندي پاتې شوي وو دبلوچستان په دښتو کې مړه شول .

نادر قلي نومې چې په تاریخ کې دنادر افشار په نامه شهرت لري دپا رسیانو دپخوانۍ حالت د اعادې اتل و. نادر چې پخوا یو داړه مار او په شما لي ایرا ن کې دترکانو دافشار دقبیلې دیوه شپون زوی و، دعسکر کیدو اودطهماسب میرزا دلښکر و

دقوماندان درجې ته دپورته‌کیدو په وسیله خپله دژوند رومبی دوره قانونی وګرزوله؛ طهماسب میرزا دهغه پادشاه زوی و چې پادشاهی تخت یې غلزیو ته پرینښی و . دافغانانو ترماتې وروسته ، نادر په چټکۍ سره شاهی جوغه دطهماسب له اوږو څخه خپلو اوږو ته منتقل کړه ځکه لکه چې دهغه تاریخ لیکونکې لیکلی دی « یوازینی زیارت په کوم کې چې هغه عبادت کاوه هغه دجاه طلبۍ زیارت و . »

ترپاچا کیدو وروسته، نادر یو لړ ځلانده جګړې چې ده ته یې دپارسی ناپیلون لقب ور په برخه کړ پیل کړی که څه هم په حقیقت کی ښایی بې ځایه نه وی چې ناپلیون دې فرانسوی نادر و بلل شی . کندهار او کابل په ۱۷۳۸ کې د ده په مقابل کې سقوط وکړ؛ پس له هغه دهندوستان لورته روان شو اوهلته یې په مضحکانه سهولت سره دمغولولوی لښکرته ما ته ورکړه. دی د هندوستان له منقولې سروت سره چې په هغه کې دتاووس تخت هم و، کور ته را وګرزیده او دلته یې دسندی امیرانو عثمانی ترکانو او دبخارا دازبکو په مقابل کې یو لړ نه ختمیدونکی بریالی جګړې پیل کړی . خو دی چې تل یوشکمن سری و داسی یوه ناروغی ور ته پیدا شوه چې تر لاس لاندې کسان و ځوروی او ځکه نو په ۱۷٤۷ کې د خپلو عسکری منصبدارانو ترتورو لاندې مړ شو ؛ دی دیوی داسی توطې قربا نی شو دکوم لپاره چې د ده خپله بې رحمی او سنګدلی ترزیاتی آندازې پوري مسوولـه وه . د نادر له مړینې څخه دافغانستان دهیواد قصه پیل کیږی . (۱۷)

دهندکانی مرغلری دی، سیندونه یی شراب
دی ، غرونه یی مشک دی مگر خلک یی
ساده‌گان دی.

(افغانی وینا)

# څلورم څپرکی

## احمد شاه بابا




دنادر شاه مرگ له کوم سره چې افغانستان دیوه‌هیواد په حیث پیل شو یوناوړه فال و. پارسی فاتح دمغولو تجزیه چټکه کړی ده؛ خو له خپل ټول لیاقت سره چې واکمنې یی پرې پوره شهادت ورکاوه ؛ دیوه نوی او قوی پارسی دولت په تأسیستو لو کی بریالی شوی نه و. برعکس دهغه په لښکر کې د ممتازو عسکرو ټولی او هغه کسان پر کومو چې ده ډیر باور درلوده، ترکمن او افغانان وو. دغه کار چې د هغه په ظلم کې یې زیاتی را ووست دده په مقابل کی دپارسیانو دکرکی یوبل علت و.

دنادردمرگ په وخت کی دشاه‌ممتازگارډ دسورو یوه ډله وه چی دافغانی قبیلی له ابدالیانو څخه جوړه شوی وه چې دهغه ددورې دپیل راهیسی یې د هغه خدمت په صداقت سره کړی و. دغو افغانانو دخپل مشر دقتل په اوریدو سره د نادر پر خیمه هجوم را وړ چې د هغه جسد ووینی. ظاهراً دافغانانو او پارسیانو تر منځ جگړه منځ ته راغلـه او تر هغه وخت پورې یې دوام وکړ چې افغانان جنگ څخنی جدا شول او پرخپلـو آسونـو د کـورِ خواتـه په بیړه ولاړل او ترشایـی پـرخپلو پخوانیو ملـگرو لعنت وایه.

کله چې ابدالیان له هرات څخه وړاندې ولاړل، د غه خبر یې خپور کړ او د ابدالیانو د او وقبیلو څخه یې وغوښتل چې په کندهار کې چې دهغوی په وړاندې پروت و سره را ټول شي . ځکه چې دوی دا خبره په ښرګند ډول درك کړی وه چې د ابدالیانو دګټو اودیره دولت دتشکیلولو لپاره ښه موقع په لاس ورغلی ده . ددوی قوی سیالانو ( غلزیو ) لا هم دخپلې ناوړې پارسی بـدې پیښې او هغه زیان چې هغوی ته د نادر شاه له خوا رسیدلی و تلافی کولـه . په هندوستان کی د ټوټه ټوټه کیدونکو مغولو یا په پارس کې دهرج ومرج نه کوم خطرنه و چې دوی ترینه و یریدلی وای. تر هغه او سینیز انظباط لاندې له خدمت کولو نه ور وسته چې د نا در له خوا په ټولو جګړو کې تعمیلیده ، ابدالیان په دې پوهید ل چې اوس نو د جنګګ دهنر استادان دی.

د هغوی مشرانو کندهار ته نږد ې د شیخ * سر خ په زیا رت کې غونډه وکړه چې یو پاچا وټاکی . دا یو آسانه کار نه و. څو ورځې داسې ښکاریده چې د پښتنو دهیواد پالنې احساسات به د قبیلوی حساد تونو په وسیله له منځه ولاړ شي ځکـه چې هریوه له مشرانو څخه غوښتنه چې خپل کاندید مخ ته بوزی مګـر راضی نه وو چې یو بل یوتائید کړی. اووه جرګی وشوی خو کومه پریکړه ونشوه . خو په اتمه جرګه کې یو مشهور ملنګګ صابر شاه جګګ شو او ویـې ویل، « ولې دا اوزدی خبرې کوئ؟ خدای احمدخان ترتاسو ټولو یوستر سړی پیدا کړی دی . دی د افغانی کورنیو له خورا معتبرو اونامتوکورنیوڅخه دی. په دی دلیل د خدای کـړه تائیدکړی . ځکه که دخدای کړو ته زیان ورسوی، نو په پر تاسو باندی به دخدای قهر اوغضب و شی.»

په نتیجه کی سردارانو درایو په اتفاق سره احمدخان د افغانانو دلومړی پاچا په حیث و ټاکـه. پس له هغه صابر شاه دخاورو یوه کو ټه جوړه کړه اوویـی ویـل، « داستا تخت دی .» دغنمو له پروړی څخه یې یـوه کوچـنی حلقـه و او بدله او داحمدخان پرسر یې کیښودلـه اووی ویل ، « داستاجوغه ده .» (۱)

---

* داشیخ سرخ نه بلکه شیرسرخ دی. ښایی داطباعتی غلطی اوسی نه معلوماتی.

احمدشاه دخپل تاجپوشي دمراسمو په وخت کې درویشت کلن و . پلار یې محمدزمان خان د سدوزویو چې د پوپلزیو اصلي پښه ده مشر و او کله چې احمد خان پیدا کیده ، ملتان ته شړل شوی و . احمدخان په څوارلس کلنی کی دنادر شا ه له خوا چې ددی ځوان افغان د استعداد څخه متاثرشوی اودشاهی گارد کپتان کړی یی ونیول شوی و.

احمد خان د ټولو ځانگړو وړتیا وو او د خپلی کورنی د حیثیت سره سره هم دسن له مخې چې افغانان ور ته درناوی لری ، ډیر کوچنی و چې پاچا و ټاکل شی.
که څه هم سدوزی دابدالیانو له ټولو پښو څخه معززه پښه وه ، نه د دوی شمیر زیات وو او نه د پوپلزیو چې دوی یې پـه راس کې وو او ټول شمیر یـې تقریباً شلو زرو ته ر سیده. بارکزی دابدالی خیلونو تر ټولو لوی خیل و؛ ځکـه نو څرنگه چې اساسی افغانی وفاداری تل نږدی واحد ته وی ، ترټولو مقتدر ابد الی سردار حاجی جمال خان وو چی دمحمد زیو یعنی دبارکزیو دلومړی پښی مشر و .

په حقیقت کې داحمد خان په ټاکنه کې دده تر خپل شخصیت او دده دکورنـی تر حیثیت پرته له شک څخه دده د خپلې قبیلې نسبی کمزورتیا لږ رول نـه درلـود ه . ابدالی مشران چې راضی وو یو داسی مشر ومنی چی بڼایی هغوی عظمت او قد رت ته ورسوی په دی راضی نه وو چی یو مستبد پاچا ومنی . دوی ددې لپـاره چې دخپل شخصي قدرت زیاته برخه له لاسه ورنکړی، احمد خان یې دپاچا پهحیث وټاکه. لنده دا چې دوی دمرکزی دولت پرځای یودول فیودالیزم را منځ ته کاوه .

له نیکـه مرغه داحمدخان شخصیت اوقابلیت دده دموقف کمزورتیا تلافی کوله.
همدارنگـه دغه ځوان پاچـا یو بختور سړی و : دده دتاجپوشی له مراسمو څخه لږ وروسته دمالیاتو یولوی کاروان له پنجاب څخه کندهار ته را ورسیده . د کاروان مشر تقی خان اختبیغی ( Tagi Akhtabeghi ) چی د نادر شاه یو لـه پارسیبان شوو ترکانو څخه و او د نادر شاه له مرگ څخه یـې هیڅ شی اوریـدلی نـه و، احمدشاه ژر له خزانی څخه بیغمه کړ. (۲) احمد شاه وکړای شول چې له دغه غنیمت څخه

روزل شوو عسکرو ته چې له ده سره یې د نادر شاه په لښکر کې خدمت کړی و ، معاش ورکړی. هغه همدارنګه له دغو پیسو څخه د عاقلا نه رشوتونو په شکل کار واخیست چې له مرکز څخه دلیری مشرانو شک لرې کړی .

پس له هغې څخه دی ځوان پاچا کوښښ وکړ چې خپل نوی هیواد په فارسی چوکات کې دافغانی مزاجاو دود سره سم تشکیل کړی. هغه ابدالی مشران په مهمو پستونو کې مقرر کړل او یوه سلطنتی شورا یې چې له اتو څورا مقتدر و ابدالــــی سرداران څخه جوړه شوی وه، تشکیله کړه اوله هغوسره یې په ټولو عمده مسایلو کی مشوره کوله او دهغوی مشورې یې معمولاً منلی .(۳) دهغه هدف داو چې داقرانو په منځ کې دلومړي پــه حیث حکومت وکړی او که څه هم په آسیا کی د دولت دغه مفکوره نادره وه، خو بریالی ثابته شوه .

قاعدتاً احمد شاه د ابدالیانـو پلوی کاوه او دی ته مایل و چې دسدوزیو له شاهی قوم سره دواجب الحرمت په حیث چلند وکړی. مګر همدارنګــه هغه د نورو پښتنی قبیلو په جلبولو کې هم محتاط و، او دهغوی دوفاداری په بدل کې به یې له هغوی سره دخپلوی پیشنهاد کاوه او هغوی ته به یې له خپلې قبیلې سره یوشان حقوق ورکول. عادی و چې د ابدالی قبیلوی نوم یــې په درانــی « مرغلین » بدل کړ په کوم سره چې دوی له هماغه وخت راهیسی یاد شوی دی . دخلکو په نظر ده دا کار ځکه وکړ چې یو خوب یــې لیدلــی و ، که څه هم ښایــی دغه نــوم له هغــو مرغلینو وا نـیو څخه اخیستل شوی وی چې د نادر شاه شاهی ګارډ په غوږ کول چې احمد یې مشرتوب په غاړه درلوده .

احمدشاه بابا دومره زیرک و چې‌دا درک کړی د قبیلو انفرادیت دومره قوی دی چې کوم واقعي مرکزي قدرت ته د ټینګیدو اجازه نه ورکوي . رښتیاهم دافغانستان دداخلي تاریخ ډیره برخه داحمد شاه له دورې څخه ترننه پورې د قبیلوي تنظیم په مقابل کې دمرکــزي دولت له جګړو څخه جوړه شوې ده. یو ځل چې ده یو نیمګړی افغاني دولت تاسیس کړ، دهغه داستحکام او ساتنی لپاره یې لارې چارې ولټولې :

احمدشاه بابا پوهیده چې دی دجنګ لپاره استعداد او یو داسې قوم لرې چې دغه دول استعداد ستایې. ده ته دخپلو ګاونډیو هیوادونو کمزورتیا اوښتمنی ور معلومه وه او ددې کار معقولیت ته ملتفت شو چې د خپل رعیت لا قراره انرجې دیوه بهرنې هدف خوا ته متوجه کړي. ده لومړی دشمال خوا ته دکابل دښار په لور حرکت وکړ. دلته نصیرخان ( Nasir khan ) چې یو پارسي اجیر سربازو د مړه شوی نا در شاه په نوم دوالي په حیث کار کاوه. نصیر مغلو او نادر دواړو ته په صداقت سره خدمت کړیو سره له دې چې تل یې معاش ناکافي و چې البته دا په هیڅ حال کومه مهمه مساله نه وه ـ او ده اوس دتسلیمیدو لپاره داحمد شاه بابا تقاضا رده کړه پر ځای یې دغلزو اوهزاره ګانو یو مخلوط لښکر برابر کړچې دښار دفاع وکړي.

مګر دنصیرخان لپاره دبدمرغۍ ځای و چې غلزیو او هزاره ګانو یو له بل څخه نسبت و درانیانو ته زیاته کرکه درلوده او له جنوب څخه دروزل شو یو عسکرو په مقابل کې یې ضعیف مقاومت ښکاره کړ. خو دکابل دپارسې قزلباشو چوڼۍ بله کیسه وه؛ مګر دوی هم په نسبي توګه مهذب درانیان دخپلو راتلونکو واکمنانو په حیث غوره وګڼل او ځکه نوله درانیو سره دبرابر حیثیت دلرلو دلوز نه وروسته هغوی ته تسلیم شول. نصیرخان دهندوستان خوا ته وتښتیده او د درانیو دیوې دلې سور و له خوا تعقیب شو چې دفراری دزیات شمیر حرم دښځو په نیولو کې بریا لې شول. کله چې نصیرخان ته خبر ورسید چې دهغه له ښځو او ماشومانو سره ښه چلند شوی دی بیرته را ستون شو او ځان یې احمد شاه بابا ته تسلیم کړ. پس له هغې افغاني لښکر پېښور پر ته لـه کوم مخالفت څخه ونیوه.

په دې وخت کې د مغلو لوی امپراتورې نزدې وه چې تجزیه شي. تر اورنګ زیب وروسته، مغولې شاهانود خپلو نیکونو عیاشیو ته دوام ورکاوه، مګر د هغو د اثراتو د مقاومت کولو قدرت یې له لاسه ور کړی و. پاچاهانو او دربریانوخپل زیات وخت او ابتکارنو یو او عجیب و غریب وار په وار زیاتیدونکو بدیو ته وقف کا وه او کله کله یې توطئې هم جوړولې ـ شیعه یې دسني په مقابل کې، پارسی دله یې دتورانیانو په مقابل کې یا ورور یې دورور په مقابل کې سره اچول.

دمغولو په دربار کې خائینانو احمد شاه بابا په دهلي کی له اوضاعو اوحالاتو څخه خبراوه. یو له دغو څخه دپنجاب مغولې والي شهنواز خان و. کله چې هغه افغانان پر هند باندی یرغل ته را وبلل، احمد شاه بابا دنو، اصرار ضرورت ونه لید.
د۱۷٤۸ کال په دسامبر کې یوافغانی لښکر چې اصلا[؟] له درانی شورا څخه جوړ شوی و له پیښور څخه په شتاب ووت او دلاهور خوا ته یی ودانګل. په عین حال کې شهنواز خان د یوه نا څرګنده علت له مخې خپل فکر بدل کړی وواو کله چې افغانان دچیناب (Chenab) سیند ته ورسیدل، دمغولو سره مخا مخ شول. دغه لښکرې دوه ورځې یو له بله سره وجنګیدلی ؛ په دریمه شپه افغانان په کراره د سیند برې خوا ته وخوځیدل ددښمن دلښکر پروا یې ونکړه او خپل هدف لاهور ته روان شول. لاهور پرته له مقاومت څخه ونیول شو ، خودې کار له یوه بیرحمانه او سخت چپاول څخه ونه ژغوره. دخلاصون لپاره تر لـږ کوښښ وروسته ، شهنواز خان دخپلو عسکرو سره چې مخ ته یی روان و، دهلي ته وتښتید.

په عین وخت کې د مغولو زوړ ( مسن ) امپراتور محمد شاه د مغولو عمده یا اصلی لښکر د خپل زوی ، یوه بل احمد شاه تر مشری لاندې ولیـږه چې لومړني مدافعین وژغوری. دوی دشهنواز خان له پا تی لښکرو سره سر هند ته ( Sirhind ) نژدې له افغانانو سره مخامخ شول. دلته د۱۷٤۸ کال دمارچ په ۱۱ ، افغانانو چې توړل شمیرې ددښمنو مغولو تر نیمایی لږ و تر هغه وخته بریالی وو چې یوه عسکر سهوأ باروتو ته اور واچاوه. دهغه څخه را پیدا شوی چاودنـه د دې سبب شوه چې داحمدشاه په سلو ګونو افغانان ووژل شوه او هغه یی دې ته اړ کړ چې خپل لښکر په شاه وتمبوی. هغه خپل لښکر په سمه توګه په شاتې بوته او مغول پسه هغوی پسې لاړ نشول.

دا یوازنی کامیابی وه چې محمد شاه یې له یو عمر ماتې وروسته خوشاله کړ، مګر دیره موده لا تیره شوې نه وه چې هغه مړ شو. زوی یې مغول احمد شاه چې څه نا څه ددغې فتحی په نتیجه کی دتاج او تخت خاوندګرزیدلی و تر خپل پلار کمزوری را ووت. د۱۷٤۹ کال په ژمی کې د افغانانو لښکر یو ځل بیا د سند څخـه

هغې خوا ته تير شول او دا ځل احمد شاه له خپلو باروتو سره له خاص احتياط څخه کار واخيست. د پنجاب نوی والي معين الملك چې له هغه سره جګړی ته ورووت د مرستی لپاره ډهلی ته يو څوك واستوه او ور ته امر وشو چې دروغې لپاره يرغلګرو ته پنجاب په بدل کې ور کړي :

احمد شاه چې په دې خبره قانع شوی و بيرته افغانستان ته را ستون شو او دپنجاب ولايت په تر لاسه کولو کې يې يو نفر هم له لاسه ورنکړ.

په ختيځ کې له دغې کاميابۍ نه وروسته افغاني پاچا دغرب لوري ته را وګرزيده. د ۱۷۵۰ کال په منی کې احمد شاه بابا له يوه لښکر سره چې تقريباً ۲۵۰۰۰ عسکر يې درلودل او په هغه کې دبلوڅو يو لښکر چې مشر يې نصير خان و هم شامل و ( نصيرخان دکابل دمعزول والي څخه بيل يو بل سړی و ) پرهرات باندې يې حمله وکړه. دغه ښار چيرې چې احمد خپل هلکتوب تيرکړی و تش په نامه سره دنادر شاه لمسی ( شاه رخ ) تر واك لاندې و کوم چې په مشهد کې له خپل پايتخت څخه يو کمزوری حکومت چې اساس يې اصلا دهغه دنيکه په شهرت اېښودل شوی و ، ساته. په هرات کې رښتني قدرت دسيستان ديو عربی مشر ( ميرعليم خان) په لاس کې و چې دهغه دوالي ( محمد اميرخان ) له خوا يې نيابت کيده .

همدې محمد اميرخان داحمد شاه دتسليميدو غوښتنې ته دښار د دروازو په تړلو سره ځواب ووايه. څرنګه چې افغاني لښکر کاملا له سپرو عسکرو څخه جوړ شوی و ، نو اوس په يوه مذبذب يا متر د دحالت کې وو ؛ ځکه احمد شاه که څه هم دجنګ دتدبير په برخه کې او دسپرو عسکرو دمخکښ په حيث ډير هوښيار و دکلابندی په حمله کې يې عملي تجربه نه درلوده . سره له دې هم دا دهغه نيکمرغی وه چې دښار د ساتنې زياتره عسکر درانيان وو او لجوج والي يې ژر تسليميدو ته تشويق کړ. احمد شاه تر دغې آسانې فتحې وروسته ، مشهد ته دحرکت کولو په وخت کې نوری کلاوی يا چوبې ګانې وليدلې چې داځلی د دښمنو پارسيانو له خوا ساتلې کيدلې.

افغانانو دشاه رخ له خوا دوفا داری ديوی پوچی ژمنې تر منلو وروسته ، نيشاپور

ته ستانه شول چې په هماغه وخت کې يوبډای او مهم ښار و. دلته نه يوازی له نورو ختهونو سره مخامخ شول بلکې تريخ اوسخت زمي يې هم ونيسد.

احمد شاه تر يوې آندازې په احمقانه توګه په يوی بې ګټې کلابندی باندی تينګار ګاوه ، په داسې حال کې چې دهغه افراد له لوز ی څخه هلاك کيدل او په شارو داګونو کې لړزيدل او دې حالت تر فبروری پورې دوام وکړ څو هغه کسانو چې له دغه لښکر څخه پاتې شوې وو بير ته د هرات پناه ګاه ته ځانونه ورسول :

احمدشاه دژمی پاتی برخه هلته واوسيده؛ له درانی قبايلی خلکو او شمال ته دچار ايماق له خلکو څخه يې يو نوی لښکر را جلب کړ او دهغه يې وکړه چې خپله کمزوری توپخانه ديوه سترتوب په جوړولو سره پياوړی کړی چې پره (٤٧٢) پونده ګولی يې ويشتله :

دا۱۷۵۱ کال د پسرلی په سر کې افغانی لښکر يو ځل بيا په نيشاپور باندی حمله وکړه چيرې چې ښاريان په دې کې دومره د مقاومت طرفدار ه نه وو ځکه چې حمله دپسرلی دکر او کروندی په وخت کې شوی وه . له بلې خوا د سترتوپ دغور هار له امله زيات يې زره شوی وو کوم چې يوه ګولی يې و يشتله او پس له هغه په فورآ چاودیدله. ښار په چټکی سره تسليم شو او په دې خبر نه وو چې افغانا ن يو ځل بيا داخنيکی ستونزو په منځ کې وو .

افغانې پاچاله نيشاپورنه بيرته مشهدته راغی . ده په خوشالی سر ه د خراسان ځمکه چې يووخت معموره وه پريښو دله ځکه چې دا ځای اوس دومره خراب شوی وچې څه نه ويکښې پاتې . مګرد شاه رخ کمزورتياجلب کړچې راضې وله خپله لوري دهرځه ژمنه وکړي څوپه سوله کې پاتې شي اوسمدلاسه يې د توربد ( Torbad ) ، بخاز ( Bakhas ) اوخاف ( Khaff ) ولايتونه احمدشاه ته پريشودل اوورسره يې ژمنه وکړه چې دافغاني پاچاپه نوم سکه ووهي .

احمدشاه چې په دغه پريکړه سره دلښکر کښيوترهغې لرې قانع وچې د ده عظمت ته يې لزمرسته کړې وه دکندهار لپاره عمليات پيل کړل. احمدشاه دهرات څخه

ترروانیدودمخه یولښکردبیګي خان (Beghi Khan) تـرقومنده لانـدې د هندوکش شمال تـه ولیږه چیري چـې دې لښکرداز بکوپه تیت وپرك خان نشینو باندې حمله وکړه . په دې ډول میمنه ، اندخوی ، بلخ ، بامیان اوبدخشان ټول یوازې له لنډ مقامت وروسته ونیول شول . دوی مـوانقه وکړه چې احمدشاه ته وفـادارواوسیان ومني کوم چې په زیاتره مواردوکې هماغه خانان ووچې دمخه یې دغـه مالـونـه ترلاس لاندې وو. یوه په خاصه توګه مهمه فتحه هغـه وه چې دبدخشان داز بکو پرخان سلطان شاه باندې دحملې په نتیجه کې لاس ته ورغله ځکه چې ددې فتحې په نتیجه کې د حضرت محمد(ص) خرقـه دافغانانولاس تـه ورغلـه چې یو وخت دبخارااملاکیت و. دغه مبارکه خرقه ترننه پورې دافغانستان دخوراسپیڅلي یادګار په حیث پاتې ده اوپه کندهارکې په یوه خاص زیارت کې ایښودل شوې ده .

داحمدشاه دخراسان حمله یوه فرعي مسئاله وه ؛ افغاني لویې هیلې له پخوانه داوس په شان اصلاً د ختیځ لورته متوجهه شوې وې اود۱۷۵۱ کال لـه دیسامبر څخه پخوالا افغاني لښکربیرته په ګټور پنجاب کې و. ددغه یرغل لپـاره د احمد شاه دلیل که حقیقتاً دلیل ته ضرورت موجود وي دا و چې هغه مالیه چې ده تـه دروميني ترون پراساس وعده ورکړل شوې وه ،ورکړل شوې نه وه .

داځل افـغانـان له ستونـزوسره مخامخ شول . د مغولوقوماندان معین الملک د خپل زمان اومکان له یوڅورهبرانوڅخه وکوم چې جرأت اوعزم یـې درلود او څلورمیاشتې یـې دلاهورپه ښارکې دفاع وکړه. په داسې حال کې چې ناروغۍ او لوږې ښارلوټاوه ، کلابندۍ دوام وموند اوافغانانوله ښارڅخه دباندې سیمه لوټ کړه. کله چې بالاخره لاهورتسلیم شو ، احمد شاه دهلي ته یوهیئت واستوه او دنورو یرغلونو په تهدید سره یې دپنجاب دانتقال غوښتنه وکړه .

مغلول شاه ته جرأت اونه وسایل درلودل چې مخالفت وکړی اود۱۷۵۲ کال په اپریل کې یې په رسمي ډول داحمد شاه غوښتنې ته غاړه کیښوده . پـه عین حال کې دافغانانودلښکریوټولي دیـوه دراني سردار(عبدالله خـان ) تـرمشرۍ لانـدې

کشمیر ته دشمال خواته تللی و، اوکله چې پنجاب افغانستان ته تسلیم شو، ده
دهغه ښکلي ولایت په نیولوکې کومه ستونزه ونه لیدله.

افغاني پادشاه څلور کاله نور په کندهار کې پاتې شو او کوښښ یې کاوه چې
یو مملکت تشکیل کړي چې په یوې امپراتورۍ بدل شوی و. دننه په افغانستان کې
قبیلې په هغه دولت سره تسلی شوې وې چې فتوحاتو ورپه برخه کړي و. او همدارنګه
دخپلو زړه وروافرادوله لاسه ورکولو په واسطه تریوې اندازې پورې کمزورې شوې
هم وې. البته دغه تلفات څومره چې د کولرا (Cholera) او پیچ (dysentery)
دناروغیو نتیجه وه هغومره ددښمن سره دجنګ لامله نه وورپیداشوي، اودانا
روغی هغه وخت په هردول عسکري لښکرکښیو کې حتماً راپیدا کیدلی.

په پنجاب کې افغاني پاچا هڅه ونه کړه چې په مستقیمه توګه سلطنت وکړي
یا پنجابیان سره یوځای کړي لکه څنګه چې پښتانه یې سره یوځای کړي وو.
ده خپل پخوانی رقیب معین الملک دوالي په حیث مقرر کړ او ترهغې چې شمال ته
دمالیاتو ورتلل دوام درلوده، دی راضي و.

کله چې معین الملک په ۱۷۵۳ کې مړشو ځای یې مغلاني بیګم چې یوه
دهغوله کونډوڅخه وه ونیوه، اوهغې چې په یوه اسلامي ملك یوداسې پست ترلاسه
کړی وحتماً به دفوق العاده استعداد خاونده یوه ښځه وه. مګرتر کومه ځایه پورې
چه په مغلوپورې یې اړه درلوده ددې جنس (ښځیتوب) یوآسانه هدف واوهغوی
چې هیڅکله دخپل زښت شتمن ولایت په له لاسه ورکولو راضي نه وو، په ۱۷۵۵ کې یې
پنجاب بیرته ونیوه اوددغه ځای ښځینه والي یې موقوفه کړه. دمرستې غوښتنې
لپاره د مغولاني بیګم په ځواب کې احمد شاه د ۱۷۵۶ کال په نوامبر کې بیرته
راستون شو؛ دا ځل یې پنجاب ته کومه اعتنا ونه کړه او مستقیماً یې ړردهلي
وروداننګل. مغولو مقاومت ونه کړ او ځکه نو تلفات منځ ته رانغلل، مګرپایتخت
د تیمورد وخت نه راوروسته خپل تر ټولو بدچوراولوټ ولیده. یوه میاشت
افغانان په کوڅو کې ګرځیدل او دطلااوښځو نه هرڅه چې به یې خوښ شو هغه به یې

انجیستل .احمدشاه چې په‌خپلو فکرونو کې وکوښښ یې ونه کړچې دغه ولجې بندې کړي او دا معلومه نه‌ده چې کـه چیرې کوښښ یې هم کـړی وای پـه‌دې برخه کې بـه موفق شوی وای که نه.

د یـوې مودې لـپـاره احمدشاه فکر کاوه چې دبابـر پـه‌شان د هـلي دخپلې امپراتورۍ مرکزوگرځوي.دمغول دشاه‌دوریرې سره داحمدشاه دزوی تیمور لپاره ترتیبات ونیول شوه اوافغاني پاچا دمحمدشاه یوه لوروکړه .داحمدشاه په نوم سکې ووهل شوې اودهلي په‌جوماتونو کې دده په‌نوم دامپراتور په حیث خطبه ولوستل شوه،خوکله چې دهندوستان دوبې دکولرا ساري ناروغی‌لهځانه سره راوړه چې دافغاني لښکر ډیر افراد یې ووژل اوځنگه چې احمدشاه دزیاترو افغانانوغوندې درك کړه‌چې د هندي تیټوسیمو مرطوبه تودوخه دزغم وړنـه‌ده خپل پلان‌ته‌یې تغییرورکړ اوفیصله‌یې وکړه‌چې افغانستان تـه ولاړشي اودهـلي نجیب الدوله ته‌چې داودهه(oudh ) مغولي‌نواب اودمغلو په‌دربار کې یوله کـه‌زورو حاکمانوڅخه و، پریږدي .

د احمدشاه یوولس کلن زوی تیمور میرزا اوله‌هغه سره یـو بارکـزی سردار جهان خان چې اصلي قدرت یې په‌لاس کې و، دپنجاب نائب الحکومه وټاکل شو. خو په‌دې وخت کې په هندوستان کې هرډول ثبات یو ناشونی کاره .دقدرت خلاچې د مغلو دسلطې له‌انفراض سره پاتې شوه نه‌یوازې یې افغاني یرغلونه منځ ته راوړه بلکې دهندوایزم د احیا لـپاره یې هم لارخلاصه کړه . پـه‌پنجاب کې د سکانو پیاوړي کیدل پیل شوه؛ کوزپه جنوب کې مرهتیانودشمال خواته توجهه راواړه‌وله. په دې وخت کې مرهتیانو په پونه(Poona) کې‌له‌خپل پایتخت څخه‌پر دکن بـانـدې کلـك کنترول درلـوده . دوی د خپل موسس شیواجي بهونسلې (ShivajiBhonle) په زمانه کې‌دساده‌داړه ماروپه‌حیث له خپلولاروڅخه‌پـه زیاتـه اندازه اوښتي وواووس یې دخپلومخکښانو(پاچاهانو)ترمشرۍ لاندې یوقوي‌او متجاوزدولت جوړکړی‌و. کله‌چې احمد شاه پـه ۱۷۵۷ کې افغانستان‌تـه راستون

شو، د مغولي اشرافو څوتنه ډهلي‌ته نږدې دمرهټې پرغلگرو دیوې دلې سره خبرې وکړې چې مشرېې رگهه ناتهه راودیشوا (دسکانودپاچا) یو ورور و اودې اشرافو ظاهراً نسبت و افغاني مسلمانونوته دمرهټې هندوانوواکمني غوره گڼله اویا بنایې محض شخصي هیلو اوجاه طلبیودې کارته هڅولي وي په هرحال دمرهټه وو لښکر دلاهور خواته پرمخ ولاړ، تیمورمیرزا او جهان خان یې له مملکت څخه وشړل اوآدینه بیگ خان یوله هغو مغولو څخه چې له دوی سره یې کار کړی ودپنجاب دوالي په‌حیث مقرر کړ. مرهټان دخپل معمولي چوت ( Chauth ) یاباج له‌تولولو څخه وروسته ډهلي‌ته راوگرزیدل او افغاني نائب السلطنه نجیب الدوله یې له‌هغه‌ځایه‌وشاړه.

احمدشاه ته ژرد نجیب الدوله اوجهان خان سواره استازي راو رسیدل او دهندوستان ستونزې یې ورته وویلې . احمدشاه‌لومړی استازي ته ځواب‌ورکړ، «زه سږکال په دې مملکت کې لتاړیم ځکه چې زماله یوې خونصیرخان سرکشي کړې ده په داسې حال کې چې دهرات درویش علي خان مې له بلې خواپه بلوا راپورته شوې دي . که د خدای رضاوي هرکله چې زه په دغه مملکت کې له جنجاله خلاص شوم ، بیرته به راستون شم اوستاسي معامله به حل کړم .» (٤)

ددرویش علي خان سرکشي یوه جزئي مسئاله‌وه‌اوژر حل شوه؛ خودنصیرخان تمردله هغې نه جدي مسئاله وه. نصیرخان دکلات خان اودبلوڅوسترمشرو.

دی یوزړه وراولایتي جنگیالی وچې سپروعسکرویې له اول څخه دافغاني لښکرپه مخکښیودلیگیو کې خدمت کړی و. خواوس «دجاه‌طلبۍ چړې دوفاداری مزې پریکړی و»؛ احمدشاه ته‌یې له وفاداری څخه ډډه کوله اوځان یې یو خپلواك واکمن اعلان کړی او دا داسې یوگام و چې یوه اندازه عدالت پکې و ځکه چې بلوڅ پښتانه نه وو.

احمدشاه علاقه‌مندنه وچې دبلوچستان دښتوته داخل شي یاپرغولوونکواونا داروبلوڅوباندې بریدوکړي ؛ مگردیوه فیودال واکمن په حیث مجبوروچې له وفاداری څخه هرسرغړوونکي ته جزاورکړي .

په همدې دلیل داحمدشاه دوزیرشاه ولي خان ترقوماندې لاندې ددرانیانودوه سپروعسکرویوه قوه‌واستول‌شوه چې دیاغیانوپه مقابل کې وجنګیږي .
نصیر خان چې کلونه کلونه یې د دغویرغلګرو په څنګ کې جنګ کړی و دهغوی تاثیرلاندې را نه غی . دی دلښکرو له یوې دلې سره چې له بلوڅي قبایلو څخه یې اخیستی وو له افغانانو سره په مستونګ ( Mastung ) کې چې تقریباً ۷۰ میله لرې دکلات شمال‌ته پروت دی ، مخامخ شواویوبشپړ بری‌یې ترلاسه کړ. دې فتحې احمدشاه اوافغاني عمده لښکر صحنې‌ته‌را وستل اوله دې سره نصیرخان دکلات دقلاګانوخواته پرشاولاړچې‌مخکې‌لا په‌ډیر احتیاط سره جوړې شوې‌وې. داحمد شاه له کمزوریوسره د نصیر نزدې معرفت له هغه سره زیاته مرسته وکړه ؛ افغاني لښکرودقلاګانوپه مخ کې‌په یوې شاړې سیمې کې دآذوقې لپاره په یوې‌بې ځایه‌پلټنې کې‌جوش‌واهه. په هغه‌ترون کې‌چې‌بالاخره پرې‌خبرې وشوې‌نصیرخان احمد شاه ته خپل‌دمتابعت قرارداد تجدید کړ اووې منله‌چې‌دخارجي حملولپاره لښکرې برابرې کړي اوافغانستان‌له حملې څخه وژغوري خوددې ترون شرط داو چې‌له‌هغوی‌څخه‌به دافغانستان‌په کورنیوجګړوکې کارنه‌اخیستل کیږي. همدارنګه نصیرخان‌دکلني‌باج له ورکړې‌څخه معاف‌شواودا داسې‌یوشرط وچې‌ښایي‌دهغه دتمرداصلي‌هدف و.
یوځل چې دغه داخلي ستونزې لیرې شوې ، احمدشاه یوځل بیاخپله توجه دهند وستان لورته راواړوله. احمدشاه ددې حقیقت‌په درک‌کونه چې دمرهټیانوپه مقابل کې‌جګړه به‌ترهرې جګړې چې ده تر هغه وخته کړې وه زیاته خطرناکه وي ، جهاد یعنې مقدسه جګړه‌یې اعلان کړه. یولوی‌لښکر دهغه تربیرغ لاندې دله‌دله را ټول شو. درانیان اوغلزي؛ دختیځ قبیلې؛ بلوڅان ، چارایماق اوقزلباش .
احمدشاه له‌یوه لښکرسره چې‌تخمیناً شپیته زره سواره اویوه پیاده پوځ سره چې له‌زرګونو غرنیوخلکوڅخه جوړشوی اوټول‌یې په ماشه‌یې ټوپکواوتور

سره مسلح وود ۱۷۵۹ کال په اگست کې له پیښور څخه دلاهور خوا ته هجوم یوور.
د ښارمر هټه قومندان شا باجي بهونسلي (Shabaji Bhonsle ) په چټکۍ سره پسه
شاوتمبیده اوله یوبل مرهټه جنرال داتاجي سند هیا(Dattaji Sindhia ) سره چې
په شوکارتل( Shukartal کې یې دمغولو یولښکرراچاپیر کړی: ویوځای شو.
د ۱۹٦٥ کال دجنوري په نهمه افغانان دجمنا څخه پورې وتل اوبریدیې وکړ.
له یوې توندې جگړې څخه وروسته په کومې کې چې داتاجي سیند هیاووژل شو،
مرهټیان جنوب لورته په شاشول څو دهلي ته نږدې مرهټیانـوله یوه بل لښکرسره
یوځای شي . دغه سره یوځای شوی لښکرمحض د دې دپاره بیرته راوگرزیدی
چې په یوه بله جگړه کې مات شي اوژوندي کسان یـې دکن ته وتښتي .
پیشوایادمرهټیانوواکمن کله چې فراریان راورسیدل سخت په قارشو، اوس
نودایوڅرگند حقیقت وچې یوازې افغانانو پرهندوستان باندې دمرهټیانودحاکمیت
مخه نیوله . دمرهټیانوتولومشرانوته خبرولیږل شوچې دیوه لوی جهاددپاره سره را
غونډشي اوپه زرگونوتکړه سوروخپل آسونه دغونډې له پاره راپوونده کړل .
سادا شیوراو( Sada Shiv Rao )چې دبهاو Bhao په نوم یې شهرت درلود،
اودمرهټیانوله دیرولایقواومغرور وجنرالانوڅخه ودلښکراصلي قومنده یې په لاس
کې وه که څه هم تش په نامه ددغه لښکرمشرویش واراو(VishvaRao)وچې دپیشوا
هلپارس کلن وارث و . دا سې اوازه وه چې دا هلـک به په دهلي کې د مغولو پر
تخت کښیني . دلښکروزښته مهمه بـرخه غـالـباً د هغوشپارس زره آزادو اوپـه
اروپايي طریقې سره مسلح اوروزل شویو ملگرویوه قطعه وه چې د ابراهیم خان
گاردي (Ibrahim Khan Gardi) تـرقومـنـدې لانـدې وه اوداسې یـومسلما ن
ماجراجویه سرباز و:
گاردي ( Gardi )دفرانسوي جنرال بوسي ( Bussy ) سره کارکړی واو
فرانسوي تمرینات او تکتیکونه یې په غورسره مطالعه کړي وو:
د هغه افـراد پلته ییزوتـوپکواوبرچو سره مسلح وواوښه تمرین یې کړی و :

ضمناً گاردي ( Gardi ) د یوه درغلي مسلمان په حیث مخصوصاً د احمدشاه
بابا او افغانانو له خوا د کرکې مورد واقع شوی و.

کله چې د مرهټیانو د یرغل خبر په سرعت سره د شمال خواته خپور شو
احمدشاه بابا د متحدینو په لټه کې شو. زیات شمیر مغول او روهیله له هغه سره یو
ځای شول چې په هغو کې شجاع الدوله او داودهه دیرش زره عسکر هم شامل وو.
بیا هم د متقابلو لښکرو اندازه یوازې اټکل کیدای شي ځکه چې که څه هم تاریخ
لیکونکي زیات وو، د هغوی لیکنې تر حسابي دقیقوالي زیاته استعاري ځان ښودنه
(خود نمایي) څرگندوي. هره خوا د جنگ کوونکو افرادو احتمالي شمیر تقریباً
(۸۰۰۰۰) و. البته د مرهټانو سره خورا زیات شمیر محارب کسان هم ملگري وو
چې په دې کې د عسکري منصبدارانو ښځې او ماشومان هم شامل وو؛ دا د مرهټیانو
د موسسی شیواجي بهونسلې له دود دستور څخه یو د پاملرنې وړ انحراف وچې
د مرهټې کمپ ته د ښځې راوستل یې داسې یو جرم گڼلی وچې جزایې مرگ و.

د مرهټیانو لښکر د شمال خواته د خوځیدو په وخت کې له هیڅ مقاومت سره
مخامخ نه شو که څه هم بهاو (Bhao) ځینې له خپلو هندو طرفدارانو څخه د خپلې
تکبر له امله د ځانه بیگانه کړل. د سورج مل ( Suraj Mal ) لوزماتونه او ډیر لږ
ژر وجټانو چې د مسلمانانو څخه یې کرکه لرله د مرهټیانو د پاره یوه جدي ضایعه
وه. د سورج مل دا تجویز چې مرهټیان دې په دې جنگ کې له خپلو عنعنوي
تکتیکونو څخه کار واخلي د بهاو له خوا په تحقیر امیزه ډول رد شو. د غې ردونې
سورج مل دې ته اړ کړ چې له خپلو جټانو سره له هغو څخه جدا شي او کله چې جدا
کیدل وې ویل چې که چیرې بهاو (Bhao) بریالی شو، ښایې چې جټان دې ته
اړ کړي چې د هغه لونگ ورومینځي .

مرهټیان چې ډهلي ته ورسیده د ډیلي ښاریې پرته له مقاومت څخه ونیوه. ځنگه
چې برسات کم شو، مرهټیان سرهند ( Sirhind ) ته وخوځیدل چیرې چې هغوی
د افغانانو د مخابرې سیستم ورپریکړ. د کونجپورا ( Kunj Pura ) په جنگې کلا کې

چې یو افغاني سنگر واودروهیلو (په هندوستان کې اوسیدونکي افغانان) له خوا سات‌ل کیده، دمرهټې توپونو دلښکر کوټ د یوا لونه ونړول اوله مد افعینو څخه یې یو نفرهم ژوندی پاتې نه شو. اولکه څنگه چې یوه وروستي تاریخ لیکونکي په زړه سوځونکې توگه سره لیکلي دي، احمدشاه بابا «خواشیني ښکاره کړه، خوهغوی ته چې ژوندي په لاسه ورکړی ووځه گته ونه رسیده.» په حقیقت کې د کونجپورا نیونه دمرهټیانو دتباهی موجب وگرزیده؛ ځکه کله چې دوی هغه خزانه چې په چوښې کې جمع شوې وه په خپل منځ کې سره ویشله افغانان له هغه مست سین نه پورې وتل چې تقریباً د ډیلي له شمال څخه شل میله لرې و اوځانونه یې مستقیماً دمرهټیانو د په شاتلنې کرښې ته مخامخ ځای په ځای کول. بهاو (Bhao) زرد پانیپټ کلي ته پناه یووړه اوهلته یې یوه لویه اوردوگاه واچوله چې د یوه شپیته فټیزه خندق په وسیله احاطه شوې وه. افغانانو د مرهټیانو څخه یوځو میله لیرې همداسې وکړه اودغه دوه حریف پوځونه ځای په ځای شول اود مراقبت سره انتظاریې پیل کړ. خوزرخرگنده شوه چې د وزود شپانه سورت مل (Suratmal) خبرې هسې چټې او بیهوده خبرې نه وې. د مرهټیانو د لښکراو دهغودار دوگاه ددوه سوه زروورسره کسانو زیرمې زرخلاصې شوې اودتاوون ناروغۍ په اردوگاه کې خپره‌شوه. خو افغانان په ښه‌حالت کې وو؛ له‌دوی سره غیرمحارب افراد لږ وو اود احمدشاه بابا د زیار او زحمت له برکته چې هره ورځ یې پنځوس میله پرآس لاروهله دوی وکړای‌شول چې د آذوقې مو ندلو له‌پاره دمرهټیانو د کوښښونو مخه ونیسي.

ددوا ړ ولښکرو ترمنځ دپریکړې له‌پاره زیاتې خبرې اترې چې هریو له هغوی څخه پوهیده چې ماتې به د تباهۍ مانا ولري د روهیله افغانانو دمشر (نجیب الدوله) د عدم ائتلاف له امله نورې هم اوږدې‌شوې. ده دخپل هیواد د خرابۍ او د کونجپورا کې دده دعسکر ودقتل‌عام په خاطر له مرهټیانو څخه کرکه کوله. بالاخره بهاو (Bhao) د ۱۷٦۱ کال دجنورې په شپږمه حافظ رحمت خان ته چې دمنځگړي په حیث یې کار کاوه داسې ولیکل:

«زما دصبر کاسه ډکه شوې ده نور نو يوه ذره صبر او حوصله نشم کولی . که چيرې کوم کار سر ته رسيداى شي ، ويې کړه او که نه وي نو زر په ځر ګند ډول زما دليک ځواب راکړه ، ځکه چې وروسته له دې به نور د ليکلو او خبرو اترو لپاره وخت نه وي .»(٥)

د ١٧٦١ کال د جنوري د يارلسمه سهار وختي په تياره کې بهاو (Bhao) چې داوه يې ترسر تيرې شوې وې» د جنګ امر ورکړ . هر يوه له مرهتيانو څخه چې دوې ورځې يې خواړه نه درلود ل دخپل پټکي يوه شمله ځوړنده پرې ايښې وه او خپل مخ يې په زعفران لړلی و چې مطلب يې داوه چې يا فتح وکړي يا مړ شي . له خيمو نه چې هغوی ځنې راوتلي وو د دار شو وښځو او وار خطابې خوبه ماشومانو دژړا غږ ترغوږ کيده :

په اوله کې افغانان دمرهتيانو له خوځيدو څخه بې خبره وو . همداچې د احمد شاه باباڅارندويانو د اخبر راورساوه بې لـه دې چې د خوب جامې بـدلې کړي د باندې راووت ځو وګوري چې آيا مرهتيانو دحملې لور ته دپيشا کيدنې نقشه طرحه کـړې ده : کله چې سپيدې وچاودې ، دعسکري قوې اوزده قطارونه ليدل کيده او دکونجکو او د ډلونو غږ اوريدل کيده : په کراره سره يې اردوګاه له خوبه را پاڅوله او د جنګ بندوبست يې وکړ .

دغه دوه لښکرې د يوې جبهې په اوږدوکې چې نږدې اته ميله اوږده وه يوله بله سره مخامخ شوې : دمرهتې لښکر ښي اړخ له جګ نري نيزه بازانو څخه چې پرقوي يا بوګانو سپاره وو جوړ شوي و . په مرکز کې دخاص پـګا (Khas Paga) ښه په زغرو سمبال شوي سواره افراد وو . په کيڼ اړخ کې دابراهيم خان ګاردي پلي عسکرولاړ وو : دمرکز په شاکې دآم ديوې تورې ونې دښاخونو لاندې بهاو او ويش واس راو ( Vishvas Rao ) ديوه ستر پيل له شاڅخه ننداره کوله :

دافغاني لښکر دوه اړخه دروهيله او د مغولو سورو افرادو څخه جوړې شوی وو چې غرني قبايلي خلک وهم په تيت وپرک ډول په ګډ وو . دمرکـز قوه له دراني

سپورعسکرو شخه چي په غښتلیو ترکي آسونو باندې سپاره و وجوړه شوې وه .
احمدشاه بابا او دهغه اراکین تر شا ولاړ وو .
جنګ له لمر خرك څخه د مخه دابراهیم ګاردي له خوا په یوې حملې سره پیل شو
چې کله چې دمرهټې عسکرو لیکې په ریونده ډول رامخ ته کیدلې له هغونه لږ څه
په مخکې و . دهغه سربازانو دمغولو سواره افراد هغوی په جبهه کې په شا وتمبول ،
د توپونو دګولیو شلیکونه یې کول او په لنډ وحملو سره پرمخ تللې . دې کار
د افغانانو د ښي اړخ او دمرکز دلښکرو ترمنځ یوه خلا پیدا کړه . چیرې چې بهاو
سواره عسکر د جنګ لپاره ولیږل چې «هور هور ، هورې »نارې به یې وهلې افغاني
پوځې کتارمتزلزل شو او دیوې ګړۍ لپاره دافغانانو داعیه له لاسه تللې ښکاریده ،
خو دافغانانو قوماندان شاولي خان له خپل آس څخه توپ کړ او خپلو عسکرو ته یې
زغ کړ ، «زمادوستانو وطن مرلرې دی . چیرې تښتی ؟» دده دلارښوونې او
د احمدشاه بابا د چټک اقدام له برکته چې نوموړي صف ته یې هوساعسکر واستول ،
له ماتې څخه یې نجات وموند .
جګړه تول سهار په دوراني نښتوکې روانه وه ، چې دوزیو مرهټیانو قوت
په کمیدو پیل وکړ له هغه سره سم وار په وار کمیدلې . تقریباً دماسپښین په دوو بجو
احمدشاه بابا دافغاني لښکر تولو توپیانو ، سربازانو چې څانونه یې په ناروغي اچول
او له جنګ څخه یې ډډه کوله او دجنګ ملاتړ کوونکوته یو پیغام واستوه او امر یې
وکړ چې دجنګ میدان ته راشي که نه داعدام جزا به وویني . هغه له دغه ګډ لښکر
سره دمرهټیانو پر مرکز باندې یوه حمله پیل کړ ه په داسې حال کې چې درانې
سپور عسکرو د لښکر ښي لورونیوه جګړه له یوې ډراماتیکي چټکۍ سره پای ته
ورسیده . مانا داچې مرهټیان تښتیدل چې خپل ژوند وساتي او افغانان پسې راتلل
چې ترینه کسات واخلي . ویشی واس راودیوې اتفاقي ګولې په وسیله ووژل
شو او بهاو پریوه آس سپور شو او دشخړې دصحنې لورته یې پوند کړه چې دیوه
اتلې دمرګ په واسطه دخپلو تیروتنو تلافي وکړي .

په شاتمبیدنې اوماتې توله شپه دوام وکړ. افغانانوچې پر افغاني اسونو باندې سپاره وو په اسانۍ سره مرهټیان چې پریابوګانو سپاره وو ونیول .

حتی دکلي خلکو چې دمرهټیانو دباج دبدوخاطر ولسه امله مشتعل شوي وو په زړونو کې دهغوی دوژنې له پاره تلوسې راپیداشوې او په شاتمبیدونکی لښکرېې را ایسار کړ او وژل یې . (٦)

بل سهار دوخته افغانان دمرهټیانو کمپ تـه ورننوتل چیـرې چـې د هغـوی اشرافو کورنیو پنځه ویشت زره ښځو دځپلو نو یوخاوندانو لـه پاره انتظاروایست او چیرې چې پنځه سوه پیلان او په پنډونو دولت د افغانانولاسونوته ورغی.

دغه جګړه چې دپانیپت په ډګر کې دریمه جګړه وه په هندي فولـکلور کې د تورآم دونې دجګړې په نامه یادیږي او دتاریخ یـولـه قـاطعوجګړو څخه ګڼله شوې ده. ځینې مورخین په دې عقیده دي چې که چیرې مرهټانو جنګ ګټلی وای ، نبایي هغوی هندوستان تریوې واکمنۍ لاندې راوستلی وای چې پـه راتلونـکي وخت کې به یې دبریتانې له خوا دهندوستان فتحه ناممکنه ګرزولې وای . داسې پیښه شوه چې په پانیپت کې تر دغه مصیبت وروسته دپیشوا یانو قدرت هیڅکله ژوندی پاتې نشو او که څه هـم مرهټیانو یـو پـاڅـون تیرکړ ، هیڅکله یـې هغه قدرت بیالاس ته رانه وړ چې پخوا یې درلود . هرڅه اهمیت چـې نبا یـي جګړې درلودلی وي دمرهټیانو په تاریخ کې هیڅ شی نشته چې داځر ګنده کړي چې دوی د پخـوانـیـومغـولـواستـعـداد درلـــوده؛ دوی د نیستمنو داړه مـارانـو اولار وهونکو په حیث کار پیل کړاو په پای کې د شتمنو په حیث رامنځ ته شول چې په مساوي ډول دمسلمانو اودهندوانو له خوا کرکه ځنې کیدله.

له بلې خوا افغانانو په پانیپت کې له برم اوولجې نه پرته نور شی لاس ته را نه وړ چې دا دواړه دتاریخ په کتابونـو کې جـزئـي موضوعـات ګڼل کیږي . دجګړې دنتیجې سره دافغاني قدرت د سیلاو څپه راپیل شوه اوله دغه وخت نه وروسته افغانستان د یوه تدریجي زوال سره مخامخ کیدونکی و . په یوه معناله

دې جګړې سره دتاریخ دیوې دورې پای شروع شو که څه هم جنګ کوونکی دې حقیقت ته ملتفت نه وو. دابراهیم خان ګاردي د سرتیرو بریا لیتوب که څه هم دمرهتیانو دمصیبت له امله له نظره ورک شو په حقیقت کې یو شګوم و.

دسپرو عنعنوي فوق العاده حرکت، قدرت او چټکوالی دانضباط او باروتو په مقابل کې بې ګټې ثابت شو، د جګړې په ترڅ کې روزل شوي پلیو افرادو څرګنده کړه چې ترسپرو عسکرو ښه جنګ وکړي.

احمدشاه باباتر خپل بري وروسته د یوې لنډې مودې له پاره په هندوستان کې پاتې شو. دهغه افرادلیوال وو چې خپل دجنګ غنایم کورته یوسي او ددو بې رارسیدل هغه ته دیوې بدې پیښې ایلچي شو. له دې امله هغه یوګوډا ګی شهزاده (علي ګوهر) دمغولو پرتخت کښیناوه او پخپله افغانستان ته راستون شو.

حتی په هغه وخت کې چې افغانان او مرهتیان دقدرت د اخیستلو لپاره سره جنګیدل یوه نوې قدرت پیل کړی وچې ځان په پنجاب کې ښکاره کړي. دا قوت دسکانو دنظامی اومذهبی ورورګلوی قدرت و. سیکیزم چې اصلاً په پنځلسمه پیړۍ کې دګورونانک (GuruNanak) یو کوښښ وچې هندوایزم (Hinduiom) او اسلام (Islam) سره نږدې کړي د یوه کوچني اوسو له غوښتو نکي نهضت په حیث پیل شوی و. مګر دمغولو دوروستیوو اکمنا نو له خوا د مذهبي اشخاصو تعقیب او ځورونه د سیکیزم پیروان دې ته اړ کړل چې دهر ګوبند( Hargobind )تر مشرۍ لاندې په زیاتیدونکي ډول جنګجو یه شي. ددغه نهضت دخصوصیت بدلون دګورونانک دیوه لمسي ګورو ګوند سنګهه (GuruGovindSingh) له خوا بشپړ شو.

سیکیزم (Sikhism) چې لایقو اشخاصو یې لارښوونه کوله کله چې یو زیات شمیر جټان چې دپنجاب یو قوم دی اوپه هندوستان کې له خورا کلکو خلکو څخه وو دسیکانو په کتار کې ودریدل نو رهم پیاوړی شو. (۷) کله چې دمغولو قدرت له منځه لاړ، خالصه (Khalsa) دسکانو لښکرو، پنجاب کې داقتدار د لاس ته را وړلو لپاره وخوځیده.

جنګ له افغانانو سره چې دغه ګټور ولایت یې چې په جنګ کې یې ګټلی او خپله کانو ني سیمه یې ګڼله اوس حتمي شو.

همداچې په ۱۷٦۱ کې افغاني لښکر هندوستان ترک کړ، سکانو په حملاو پیل وکړ او ښار ګوتې یې یو په بل پسې چور کړل. سکان ددې لوتماریو په وخت کې له لږ مقاومت سره مخامخ کېدل او علاوتاً د محلي او سېدونکو له خوا داسې مرسته ور کول کېده چې دافغاني والیانو له قدرت څخه پوره نه وه چې دهغوی مخنیوی وکړي. د کال ترپایه پورې دپنجاب زیاته برخه د سکانو ترتسلط لاندې راغلې وه او احمدشاه بابا مجبوروچې یو ځل بیا ددرو نه تیرشي چې له سکانو سره مقابله وکړي. هغه له یوه لښکر سره چې کاملاً له سپرو عسکرو څخه جوړ شوی و لودیانې (Luddhiana) ته نژدې یې دخالصې پرسکانوناڅاپي بریدوکړ او یوه کلکه ماتې ورته ور کړه . له هغه وروسته یې په امرتسر (Amritsar) باندې هجوم یوړ چې د سکانو مقدس ښار و او دلته افغاني عسکرو ته امروشوچې معبدونه وران کړي او مقدس ځایونه دغواګانو په وینو ککړ کړي اوداداسې یوعمل وچې دهندي شهزادګانو له خوا د افغاني مشرانو د احتجاجونو سره سره پرهغه باندې تینګار شوې وڅکه چې یوه تاریخ لیکونکي ددې یې حرمتي څخه دادول یادونه کړېده «هیڅ شی تر یوه محلي ښکاري سپي خوږ نه دی.» احمدشاه بابا په دې هیله چې پنجابیان پخلا کړي، ترهغه وروسته یو هندو کابلی مل (KabuliMal) ترشا پریښود چې د هغه په نوم حکومت وکړي .

کله چې احمد شاه باباافغانستان ته ر وګرځیده، سکان تربل هر وخت زیات بوخت وو او دهغوی شمیر دنویوجلبیانو له امله زیات شوی وچې غوښتل یې له مسلمانانو څخه خپل غچ واخلي چې پیړی پیړی له هغوی سره مخالف وو. دپنجاب ټول ښارونه لوټ شول، مسلمانان ووژل شول او جوماتونه خراب یا وران شول.

وروسته له هغه چې احمد شاه بابا د بلوڅو له مشر نصیرخان څخه وغوښتل چې له جنوب څخه بریدوکړي په ۱۷٦٤ کال کې راوګرځیده . افغانان بیافاتح وواو

احمدشاه بابا یو سلک الها سنګه (Alha Singh) د سرهند (Sirhind) د والي په حیث مقرر کړ. بیا څنګه چې افغانان ووتل، سکان بیا راښکاره شول او ظاهراً له هرې نوې ماتې سره تر پخوا پیاوړي معلومیدل. په ۱۷۶۶ کې چې احمدشاه بابا یو ځلې بیا هندوستان ته راستون شو او په داسې حال کې چې «له دغو بې شاتو مچیو سره» له جنګ کولو او هجوم وړلو څخه ستړی ستومانه وو او سکانو یو ځل بیا ماته وخوړه. مهمه نه وه چې هغوی له سکانو سره په مخا مخ جګړو کې څو ځلي فتحه کړې وه، افغانانو ونه شو کړای چې د سکانو مذهبي نهضت چې د پنجاب د زیاترو خلکو له خوا حمایه کیده له مینځه یوسي. بالاخره په ۱۷۶۹ کې احمد شاه بابا دیوه بل برید تیاری ونیو چې که چیرې شوی وای نو دا به پر هندوستان باندې دهغه لسمه حمله وای. خو دا ځلي هغه نا کام شو چې له سند څخه هاخوا پورې ولاړ شي. عسکرې له بې ګټې وسله والې نښتې څخه بیزار وو او پخپله پاچا ناروغ و. کوم پلانونه چې دیرغل لپاره طرحه شوي وو هغه لغوه شوه؛ پاچا خپل پایتخت ته چې په کندهار کې وو راستون شو.

په دې وخت کې احمدشاه بابا پنځوس کلن و. دی چې له یو عمر جنګ څخه وروسته خسته شوی و یوه شوچې وا کمنی یې حتماً زرپای ته رسیږي. د هغه پرپوزې باندې یو سرطاني غوښه (تومور) راپیدا شو. له کومې نه چې ده د یوې مودې لپاره کړاو زغملی و او هغه یې ناروغ پرېښی و. ده د ۱۷۷۲ کال په فبرورۍ کې د درانیانو د اشرافو په یوه جرګه کې خپل دویم زوی تیمور میرزا د خپل خلف په حیث وټاکه او د سلطنت چارې یې هغه ته وسپارلې. دی پس له هغه یوه اوږنۍ استراتیژي ته چې د سلیمان په غرو کې ولاړ چیرې چې دی د ۱۷۷۲ کال د اپریل په څوارلسمه وفات شو. د هغه مړی کندهار ته راوړل شو او په یوه مقبره کې چې د ښار په مرکز کې ده خاورو ته وسپارل شو. هغه کتیبه چې دده پرشناختې باندې کښل شوې ده داډول پیل کیږي: «دراني احمدشاه باباچې د لوړې مرتبې یو پاچا و د زمامدارۍ په چارو کې له سیروس (cyrus) سره برابرو.»

داحمدشاه بابا قصه يوه داسي قصه ده چې په هغې کې د يوه پلار شهرت د هغه د زامنو
پر اعمالو له امله زيانمن شوی دی. دی دا شيا په تاريخ کې يو له وتارلرونکو شخصيتونو
څخه ګڼل کيږي، يو څيرک عسکري قوماندان او د يوه هيواد موسس دی خو سره له
دې هم هغه په بهرنۍ نړۍ کې تقريباً نوم ورکی پاته شوی دی. احمدشاه بابا چې
د ټولو هغو صفاتو لرونکی و چې د يوې بريالۍ مشرۍ لپاره لازم دي داسې لږ نيمګړ
تياوې لرلې چې د زياتو اشيايي پاچاهانو سوانح يې داغي کړي دي. هغه يو سخت
مذهبي شخص و، په بې رحمۍ کې چې پر سکانو او هندوانو باندې د هغه حملو ښکاره
کړه ده محض د زماني دود او د خپلو مخالفينو عمل تعقيب کړ. دی د خپلو خلکو
په برخه کې مهربان او خير رسوونکی و، د مقام له غرور څخه ازاد او د يو زښت
ډير غريب له خوا ورسره تماس نيول کيدای شو. هغه د تعظيم لپاره غلامانه ټيټيدنه
چې په آسيا کې مانوسه وه له مينځه يووړه او پر ځای يې د لاس يو عادي سلام منځ
ته راوړ، جنايي قانون يې آسانه کړ او شل او شوټ کول يې د يوې جزا په حيث
منع کړل.

احمدشاه بابا د خپل سياسي او پوځي استعداد تر څنګ د يوه شاعر په حيث هم
استعداد درلود او د پوهي فلسفي او ادبياتو روزونکی و. د هغه شعر له هغه شعر سره
چې د داود ګڼل شوی دی څه ورته والی لري او دا و د يو بل جنګيالي پاچا و.

هغه پاچاهي چې احمد شاه بابا جوړه کړې وه او هغه ورته جلال او عظمت
ورکړی و سقوط و کړ. له دوه پيړی ګډوډيو څخه وروسته چې افغانستان تر اوسه
پورې د يوې پاچاهي په حيث پاته دی تر زياتې اندازې د يوه پاچا له برکته دي
چې هغه د لوی احمد شاه په نوم نه بلکې د (بابا) د ګران نسبت په نامه يادیږي. (۸)

... يو تاشكره زوى د پلار پر مخ يئوه ماته ده

... پر يئبو د لى يو عيب د ئى بحيرى كوبل يې يو درد.

... شهتسو متل ...

## پنځم څپرکی

## د سدوزو سقوط

... احمد شاه بابا ته اته زامن پاتې شول. تیمور میرزا د هغه ګران او منتخب ولیعهد په سن کې د هغه تر بل زوی سلیمان میرزا څخه کشر و. تیمور د خپل پلار د مرګ په وخت کې په هرات کې و. هغه سمدلاسه کندهار ته را روان شو او په لار کې خبر شو چې یوې ډلې سردارانو د شاه ولي خان په مشرۍ سلیمان د خپل کاندید په حیث ټاکلی و. ...

... د تیمور ... څخه د هغه د پلار ... قار ... او ... پاتې و ... جنګ ... چې شهزاده تیمور کندهار ته ورسیده د سلیمان پلویانو ... بیعت وکړ چې په هغوی کې ولي خان چې اوتر یې له سلیمان سره واده کړی و هم شامل و. لو ظاهره آیي د کوزنو احساس ته لېچلاړه ورسکړه چې دده پر قضاوت باندې اغیزه وکړي، د پاچاهي پښتانه د اتل له خوا د هغه له خپل عزم څخه ګرځیدلي د تیمور مخه ونه نیوله چې هغه اعدام نه کړي او دلیو د غښتې قاطع تصمیم و چې د سلیمان پاتې ملاتړي قانع کړل چې د هغوی داعیه ناکامه ده ... دوی له خپل کاندید سره هندوستان ته وتښتیدل او فراره شول.

... تیمور شاه چې نوي پاچاهي ته رسیدلی و په ۱۷۴۶ کې مشهد ته نږدې زیږدلی و هغه د خپل پلار د ګران زوی په حیث د افغاني پاچاهي په غیږ کې په غرور سره درزل

شوی او دو اده په وسیله له یو لړ ګاو نډیو کړ نیو سره متحد شوی و. هغه د احمد شاه بابا له شخصي جذابیت څخه تر زیاتې اندازې پورې برخور دار ه و؛ څو که څه هم دی یو زړه ور عسکر و په جنګیا بري کې یې لږه دلچسپي درلوده. هغه خپله زیاته انرجي خپل لوی حرم ته وقف کړې وه.

د پاچا په حیث د هغه له لومړیو اقداماتو څخه یو اقدام له کندهار څخه کابل ته دافغاني پایتخت رانقلول و. دغه، لیږ دیدنه اکثر آ د تیمور له خوا دیوې هڅې په حیث تفسیر شوې ده ګویا چې ده غو ښتل څان د درانیانو د قدرت له مرکز او دشاه ولي خان له خپلوانو څخه را لرې کړي؛ څو ددې کار لپاره نور ملحوظات هم موجود و. څرنګه چې کشمیر او پنجاب دافغانانو په لاس کې وو نو کابل نسبت و کندهار ته د سلطنت جغرافیایي مرکز ته نږدې و. همدارنګه په دوبي کې د کابل هوا نسبت و کندهار ته زیاته معتدله وه او پېښور دیوه ژمني پایتخت په حیث ښه هوا درلوده او نږدې و.

تیمور شاه په هغه حکومت کې چې د هغه د پلار له خوا تشکیل شوی ولږ بدلون نه راوستل. درانې سرداران و د قدرت په مقاماتو کې خپلو وظیفو ته دوام ورکړ او د جرګې سترو مشرانو هم دغسې امتیازات لرل. د کابل قزلباشان دشاهي ګارد په حیث انتخاب شول او تیمور محتاط و چې لښکر ته ښه او په خپل وخت معاش ورکړي دا داسې یو عمل و چې کله کله به دوروستنیو پاچاهانو له خوا ورته اعتنا نه کیدله.

که څه هم تیمور زیاتې جګړې لرلې، هغه د سکانو د پرله پسې تادا (تعدي) په نتیجه کې په ۱۷۷٤، ۱۷۸۰، ۱۷۸٥، او ۱۷۸۸ کلونو کې پنځه څلي پر هندوستان باندې بریدو کړ.

دهغه نوری جګړی د تهدید شو یو څمکه والو (vassals) مرستي غوښتني لامله سرته رسیدلي دي. یو افغاني لښکر درې څله خراسان ته لاړ چې دشاه رخ که زورې پاچاهي تقویه کړي. وروسته له هغه چې د کلهورا (kalhora) قبیلې سندي امیران د فتح علي تلپورا (FathAliTalpura) له خوا خلع شول یو بل لښکر سند ته ولیږل شول.

خو دلته د افغاني لښکر په شا تلو تیمور مجبور کړ چې د باج د یوې پوچې وعدې په بدل کې فتح علي د سند د امیر په حیث وپېژني .

تیمور شل کاله پاچاهي وکړه د کومې په موده کې چې یوازې دوه داخلي بغاوتونه منځ ته راغله چې د افغانستان د ټول تاریخ لپاره یې یو ریکارډ قایم کړی دی : یو له دغو بغاوتونو څخه دیوه درانی سردار عبدالخالق له خوا د بلوڅي پاچا نصیر خان په مرسته تنظیم شوی و چې په سختۍ سره غلی کړل شو. بل یې دیوې کودتا هڅه وه چې څو کنیو د صاحب زاده له خوا طرح شوې وه . دې یو عنین سړي و چې د شاهي ګارد قومندان او همدا رنګه یو مشهور ملا و. فیض الله خان هم په دې توطئه کې لاس درلود چې پېښور ته نږدې د خلیلو د قبیلې ملک و . د دغوي پلان دا و چې تیمور و وژني او پر ځای یې د دغه د فراري ورور سلیمان زوی سکندر میرزا کښېنوي. په تاکلې ورځ یو شمیر قبایلي خلیل ارګ ته چې په پېښور کې وو ورغلل او سخت کوښښ یې وکړ چې شاه ته ځانونه ورسوي. د دغوی پلان داسې شنډ شو چې تیمور په چټکۍ سره یوه برج ته و خوت او یوه او سپنیزه دروازه یې په ځان پسې کلکه کړه څو چې د ګارډ وفادار عناصر د دغه ژغورنې ته راشي. توطئه کوونکي غرونو ته وتښتېدل. فیض الله خان ته د بخښنې وعده ورکړه شوه او له غرونه راکښته شو خو دا وعده فوراً ماته شوه :

د احمدشاه بابا خاطرې چې د تیمور د سلطنت په دوره کې لاهم د سلطنت د تخت لپاره یوه قوي تکیه وه پر ته له شک څخه دا د خلي ناراميو مخه نیوله. د دغو شلو کلونو ارامۍ لپاره ښايي بل دلیل دا وي چې د افغانانو توان او تیری کول د بې پایه جګړو له مله چې د تیمور د پلار په مشرۍ سرته رسیدل پای ته رسیدلي وو.

تیمور د ۱۷۹۳ کال د مې د میاشتې په ۱۸ په کابل کې په داسې حالاتو کې ناڅاپه مړ شو چې دغه پرهیز ګاره د ښمنان دا پېښه د الله حکم وګڼي په داسې حال کې چې نورو دغه له زیاتو ښځو څخه یوه ښځه د دغه په مرګ تورنه کړه څو زیات احتمال لري چې د مرګ علت یې کولرا وه.

د تیمور شهرت دده په خپل هیواد کې زیات نه دی. څرنګه چې تیمور ونشو کړای د خپل پلار د پراختیا غوښتنې سیاست پرمخ بوزي نو افغاني تاریخ لیکونکي د هغه دغه ناکامي غندلي او د هغه نه خلاصیدونکي عیاشۍ ته بدوايي. بهرنیو لیکوالو دغه نظر په غیر انتقادي او نسبتاً غیر عادلانه توګه تائید کړی دی. که موضوع ته په واقعبینانه نظر وګورو تیمور شاه یو لایق او با حوصله پاچا و چې د سلطنت دوره یې تر بل هر افغاني پاچا له داخلي اختلافاتو څخه فارغه وه.

دده تر مشرۍ لاندې هیواد شل کاله په ارامۍ کې تیر کړل او که څه هم هغه ونشو کړای چې هیواد ته پرمختګ او ولچه راوړي چې پلار ته یې جلال ور په برخه کړی و، له دینه هم زیات ګټور تجارت او سوداګري په افغانستان کې پراخه وموندله. یو برتانوي صاحب منصب د ګرمن (vigne) چې د تیمور له مړینې څخه یې تقریباً پنځوس کاله وروسته افغانستان ته سفر وکړ داسې تبصره کړې ده: «د تیمور شاه د سلطنت دوره لا تراوسه پورې د کابل دیر زاړه اوسیدونکي د ښاغلې دورې په حیث په یادلري په کومه کې چې ښار له خپلې عصري سوکالۍ څخه برخوردار وه.» (۱)

تر کومه ځایه چې شکایتونه د تیمور په شهوت پرستۍ پورې اړه لري په دې کې هیڅ شک نشته چې هغه دیوه شاه په حیث خپل نفساني خواهشات په شوق او ذوق سره ترسره کول. له هغه نه بې شمیره اولادونه پاتې شول چې له هغو څخه شپږ دیرش یې له قانوني ښځو څخه وو. له دغو اولادونو څخه یو ویشت یې زامن وو چې د پلار د مرګ په وخت کې هر یوه ځانله د سلطنت دعوه وکړه.

له دغو زیاتو زامنو څخه درې تنه یې قوي کاندیدان وو چې همایون میرزا او محمود میرزا یې سکه وروڼه او محمد زمان میرزا یې ناسکه وروڼه وو. لومړی دوه یې د کندهار او هرات والیان وو او د سن له پلوه لومړی همایون میرزا او دویم محمود میرزا و. محمد زمان یې د سن له پلوه پنځم و خو د کابل د والي د خزانې په لاس کې لرلو او د شاهي ګارد د قومندان په حیث له هغه نه یو برجسته رقیب جوړ کړ.

اوپه داسې حال کې چې همايون اومحمود ديوې سدوزي شهزادګۍ زامن وواو دزمان موريوه يوسفزۍ وه - ددې خبرې مانا داوه چې زمان په ختيځ کې ملاتړ درلود اودهغه مخالفين په جنوب کې مرغوب وو. ددراني خيلو نوزښت قوي‌خپل بارکزي دي‌چې دهغوی موقف په دې‌مسابقه کې يومهم عامل و. کله چې پاينده خان دمحمدزيو مشرواوبناءدبارکزيو سرکرده دمحمدزمان خواته‌واوښت دهغه انتخاب يقيني شو. مختلف ناسکه وروڼه‌کوم چې کابل ته‌په بېړه تللي وو وروسته له‌دې‌چې څوورځې بندي شول اووچه دودې اواوبه‌يې غ‌ړاوه راضي شول چې له خپلو جاه‌طلبيو څه‌لاس‌واخلي؛ همايون‌ميرزا چې کوښښ يې کاوه ددرانيانو ملاتړ لاس‌ته راوړي‌ماته وخوړله اوبلوچستان‌ته وشړول‌شو په داسې‌حال کې چې‌محمود په‌هرات کې په‌بې طرفۍ کې پاتې شو خو دحالاتو مراقبت‌يې کاوه .

زمان شاه چې دخپل تاجپوشۍ دمراسمو په وخت کې درويشت کلن ودخپل پلار اونيکه ميرانه اولياقت درلود خو په‌ده کې دغه صفات ديوبې‌حده غروراوتکبر لامله زيانمن‌شوي‌وو. هغه تصميم نيولی وچې په مطلق صلاحيت سره حکومت وکړي اودفيودالي مشرانو واک پای‌ته ورسوي له‌ځاسره‌چې دهغه‌اسلافو غوره ګڼلې وه‌چې دعاقلانه روغې اورشوت‌له لارې چلند وکړي. دمرکزي قدرت دپراخو لولپاره‌دداسې‌يوه کوښښ کول ښايي يولابدي امرو . خودې کوښښ يوه جګړه پيل‌کړه چې څلويښت‌کاله‌يې دوام وکړاوداحمدشاه بابا دامپراتورۍ په‌رنګېدلو سره پای‌ته ورسيده.

دافغانانو «دمشکلاتو دغه عصر» په سياسې جوړښت کې داساسي کمزورتياوو نتيجه‌وه چې‌داحمدشاه بابا دجنګي بريالیتوبونو اودتيمورد‌حليمانه پاچاهۍ په‌واسطه له نظره پټې پاتې‌وې يوجدي نقص يې په افغانستان کې دارثيت نشوالی و. دانقص دزياتو‌ښځو کولو دودله امله لاپسې وخيم شو‌چې په ميرنيو افغانانو کې يې ټل‌يوشمېرناسکه‌وروڼه‌منځ‌ته راوړل‌کوم چې اکثراً دحرم دسياليو او مخالفتونو ترتأثير لاندې راتلل اوهريو معتقدوچې دهغه ادعادقدرت لپاره هغومره موجه ده څومره چې دهر بل‌يوه تقاضا پرځای‌ده.

بله کمزور تیا په افغانستان کې د پاچاهي د هر دول هیبت او حرمت نشتوالی او ذاتي انفرادیت (Individualism) وچې دیوې دغسې مفکورې د تینګیدو مخه یې نیوله. د قبایلي خانانو او ملکانو په نظر پاچا په هیڅ مفهوم سره یو لوړ انسان نه و؛ هغه فقط له نورو سره یو شان وچې دبخت یا دکورنۍ له لارې یې قدرت تر لاسه کړی و.

په یوه دغسې حالت کې سدوزیو چندان امید نه درلود افغانستان شاهي کورنۍ دې شي. ځکه چې دهر افغان اساسي وفاداري تل تر نورو کوچینو واحد ته وه، سدوزیو کرلې شول چې یو ازې دپړ پلزیو له پرله پسې ملاتړ څخه داده اوسي. له بلې خوا محمدزي ددرانیو دزیات قوي قوم (بارکزیو) ملاتړ څخه داده وو.

ځینې افغاني او بهرني لیکوالو پر سدزیو باندې دزعامت دنه لرلو له امله انتقاد کړی دی او هغوی یې کمزوره او مردد بللي دي. دغه تور غیر منصفانه دی. رښتیا هم که چیرې سدوزیو د مطلق واك له غوښتلو څخه پرته شاهي امتیازات قبول کړي وای، هغوی کولای شو ای چې ځانونه یې دخپل قوم او ددغه قوم دموسس په شهرت ساتلي وای. خودشاهي صلاحیت دپیاورې کولو کوښښ وچې دهغوی دسقوط موجبات یې برابر کړل.

د شاه‌زمان له پرتخت کښېناستلو نه وروسته، افغانستان څو کاله دداخلي جنګ له امله لهستونزو سره مخامخ شو چې کله به محمود او کله به همایون هغه وکړه چې کنترول لاس ته راوړي. خارجي ولایتونه چې تر اوسه پورې د افغانستان له خوا اداره کېدل دغو سرې وژونکو جنګونو تشویق کړل چې د افغانستان سره دخپلې وفادارۍ دختمولو لپاره تیت و پرك جنبشونه منځ ته راوړي، که چیرې له افغانستان څخه د شاه‌زمان وتل همیشه دهغه دناسکه ورو بولو له خوا د یوې بلې نوې حملې موجب نه ګرځیدلای چې دی به یې بیرته راګرځیدو ته مجبوره کاوه شنا یي هغوی به یې له کومه مشکله ددغو بغاوتونو چاره کړې وای. لېږو پاچاهانو د شاه‌زمان په اندازه دا دول ستومانه کوونکي واتنونه وهلي دي.

د خپلو اسلافو په شان دی هم دسکانو له خواچې په پنجاب کې یو ستر قدرت

گر ځیدلی وو ربرول شو. د هغوی دځپلو لپاره له یوشمیر ناکامو کوښښونو څخه وروسته، شاه‌زمان ددې مسألې لپاره په پنجاب کې دیره ځوان سکث مشر (رنجیت سنګث) دخپل والي په‌حیث دمقرري په وسیله دحل‌یوه لار پیداکړه - یوه قضاوتي تیروتنه چې د افسانه یي ډاکترفرانکستین( DFrankenstin ) له تیروتنې سره دمقایسې وړده سره‌له دې‌چې دا مفکوره دیوڅه وخت لپاره کاریګره ښکاریده؛ د پنجاب د موضوع نه وروسته چې ظاهراً خوندي ښکاریده شاه زمان بیرته افغانستان ته راستون شو چیرې چې دهغه موجودیت د رقیبانو وروستي حملې شنډې کړې. دهیوادله‌اوضاع سره چې‌ظاهراً مطمئن بریښیده پاچایه پلان چې دیره موده‌یې دهغه په باره کې فکر کړی وتر اجراًلاندې ونیوه.

داچې شاه‌زمان خپل‌موقف‌نه درسیدو لپاره‌تردیره‌حده دمحمد زیودمشر (پاینده محمد خان) مرهون و دیوه پاچا لپاره‌چې په هغه کې داحسان مننې‌تمایل دومره نه‌وي ،نوی‌یې سخت وربرا‌وه .نتیجه‌داشوه چې شاه‌زمان له‌مهمو څو کیو څخه د محمدزیو په‌لرې کولو پیل وکړچې د احمدشاه بابا دوخت راهیسې‌یې نیولې‌وې‌او دهغه ی پرځای‌یې‌دنوروقبیلومشران‌مقرر کړل .زیاتره‌له دغومشرانو څخه چې په هغو کې(وفادارخان)هم شامل‌واووزیرمقررشو،سدوزي وو.

دغواقداماتودنورودرانـي سردارانوبدګماني راوپاروله چې‌طبعاً دافغاني دولت په فیوډالي ماهیت باندې پوره خوښ وو . بالاخره یوه پټه ډ نده جوړه شوه چې داقدام اودیوه ممکن بغاوت په‌برخه کې فکروکړي .ددسیسې اطلاع چې په‌هغه کې پاینده خان،دقزلباشانو مشر محمدشریف خان،د نورزي درانیانو سلطان خان اود علي زي درانیانو رحیم‌خان شامل‌وو شاه ته دجاسوس‌له خوا راوړه شوه اوشاه سمدلاسه لاس په کارشو،تول‌دسیسه کاران ونیول‌شو ل‌اوپه بیړه اعدام شول .

که څه هم مشکله ده چې سړی پوه شي شاه‌زمان په دغسې‌حالاتو کې بل‌څه کولای شوای ، خودغه حرکت هغه ته دځودکشۍ حکم درلود . فتح خان چې

د پاینده خان له یوویشت زامنوڅخه تر ټولو مشر زوی وسمدلاسه پارس ته وتښتیده چیرې چې هغه، د بارکزیو د ملاتړ له وعدې سره محمود میرزا ولمسوه چې د سلطنت تخت لپاره یوبل کوښښ وکړي . گرشکک ته نژدې په سعادت کې (Saadut ) چې دبارکزیودقدرت مرکزوله دغه، دوه کسو سره بارکزي، علي زي او نورزائی قبایلي خلک یوځای شول . کندهار پرته له مقاومت څخه ونیول شواو یاغیانو د کابل خواته حرکت وکړ.

دلته دوی دشاهي لښکر سره مخامخ شول، مگر ددې لښکر قوماندان یونورزی مشرو چې دغه، پست یې د شاه زمان دتیرا یستنې لپاره منلی واو سمدلاسه یې خپل پوځ فتح خان او محمود میرزا ته پریښوده .په میدان پرېښودل شوی شاه دپیښور لورته وتښتیده، خوورو سته له هغه، چې یوه قبایلي مشرته یې پناه یوړه ،دهغه، تعقیب کونکوته و سپارل شو چې داکار دپناه ورکولو دافغاني دودیوه نادره ماتونه وه. ړوند کړه شوی او په کابل کې بندي شوي،دا پر زیدلی پاچاباالاخره غالباً د محمود په پټې مرستې سره و تښتید او بخارا ته ولاړ. دلته له هغه سره دازبکودامیرحیدر توري(Hyder Turi)له خوا ظالمانه چلند وشوچا چې دکوه نورالماس لاس ته را او ړلو هیله لرله چې شاه زمان په کابل کې دزندان دکوټې په دیوال کې خښ کړی و . شاه زمان یرځل بیا تښتي او داځل هرات ته ځي چیرې چې دهغه، نـاسکه ورور حاجي فیروزالدین والي و. که څه هم اخیرالذکر د محمود سکه وروړو، له فراري سره یې دمهرباني چلند و کړ او د محافظینو ترڅارنې لاندې یې هندوستان ته ولیږه چیرې چې هغه، پنځوس کاله دیره برتانوي جیره خور په حیث ژوندو کړ. دژوند په پای کې په خپل هیواد پسې غمگین و او په ژړا کې به یې ویل «کابل! کابل!» نسبت کابل ته کشمیر څه دی؟ زه به هیڅکله خپل هیوادبیاو نه وینم .»(۳)

د زمانې له لحاظه آسانه ده چې سړی د شاه زمان ددولت دمرکزي کولو او افغاني فیوډالیزم دپای ته رسولو د هڅې سره همدردي وکړي .دهغه ناکامي څو مره چې د حالاتو او پیښو له سببه وه په هماغه اندازه دقابلیت او توان دنه لرلو

نتیجه هم وه‌اوداديادوني ورده چې افغانان دهغه يادته دتیمورشاه‌ترهربل زوي زيات احترام لري .

په عین حال کې محمود شاه * پر مسند کېيناست او سمدلاسه يې څرګنده کړه چې هغه، په‌نظر کې نه‌لري چې دخپلو اسلافو تقلیدو کړي خو بالکل راضي‌وچې د مقتدر و مشرانو (خانانو) په همکاري‌سره واکمني‌و کړي. په‌دغو مشرانو کې ترټولو زياتو متنفذينو فتح خان بارکزي‌اوشیرمحمدخان بارکزي(دپخواني‌وزيرشاه‌ولي خان زوی)صلاحیت اوواك په‌خپلو مينځو کې سره وویشه په‌داسي‌حال کې چې محمود کرار کښيناست چې له سلطنتي‌امتیازاتو څخه خوندواخلي.

نوي‌حکومت ته يوازې جدي‌خطرد معزول شوي شاه‌زمان سکه وروريو ځوان سړی وچې شجاع الملك نوميده اودپېښور ښاريې اداره کاوه . له‌شرقي‌قبيلوسره دده دمور ارتباط دهغه‌دوروريه‌شان له ده‌نه‌يو متنفذسړی جوړ کړ . ديوه بل مزيت په توګه دشاهي خزانې يوه برخه دده په‌لاس کې وه چې له‌هغې څخه‌يې په‌آزاده توګه داپريدوي، مومندواويوسفزوڅخه ديوه لوی اوسرزوري لښکرپه راغونډولو کې کاراخيست . دی له دغو خلکو سره د خیبردرې له لارې دسلطنت دنیولو په نیت راوخوځیده . دهغه افرادسره(سرخ)رود ته نژدې د محمود له‌لښکرسره‌چې د فتح خان ترقوماند لاندې وه مخامخ شول . په جګړه کې چې پیښه شوه شرقي قبایلي خلك ترهغه وخته فاتح ووچې جګړه‌يې بس کړه څودخپل قوماندان خزانه لوټ کړي .

کومې ګډوډۍ چې دهغوی په ليکو (قطارونو) کې اوبې له‌شك څخه دشجاع الملك په فکر کې منځ‌ته راغله فتح خان‌ته موقع ورکړه‌چې خپل پوځ سره راټول کړي اومخالف پوځونه‌له‌میدانه وشړي. شجاع الملك په تيراباغ (Tirah Bagh) کې اړيدوته پناه يوړه اوفتح‌خان پېښورپرته‌له مقاومت څخه ونیوه .

دځه وخت‌لپاره‌شاه محمود ظاهرآ په‌سلطنت کې بې غمه اوپه‌امن کې و که څه‌هم

---

* دانوم محمودشاه نه‌بلکې شاه محمود دی . (مترجم)

دغلزیوله خوا یوه بلوا دخه اندیښنې سبب شوه. دغه قوي قبیله راضي وه چې ددرانیو لویې غوښتنه پر ته له مخالفت څخه ومني او په تیره بیا ددې سببه چې دولت دغلزیو دتماتو بې دکنټرولو لوهڅه ونه کړه او په حقیقت کې یې دهغوی قبیلې کاملاً په خپل حال پرېښودې :

خو په دې وخت کې دغلزیو یوې ډلې دعبدالرحیم ترمشرۍ لاندې چې دقهرمان میرویس له اولادې څخه و یو، بلوا جوړه کړه دکومې سقوط چې په ۱۸۰۲ کې لږ ترلږه قسماً دغلزیو دلو تماري دعمل له سببه وچې دخپلې قبیلې نورخپلوانه به یې لو تول .

په دې وخت کې په وضع کې هغه ناڅاپي یو بدلون منځ ته راغی چې کیدای شي چاته چې دافغانې چارودرقابتونو او پیچلتیاوو سره نا آشناوي زیات آریانوونکی وي. دغه وخت راهیسې دپښتنو اود کابل دقزلباشانو ترمنځ خر پر تیا موجوده وه چې دا ملام دسني ښاخ (چې دپښتنو له خوا یې نمایندگي کیدله) او شیعه ښاخ (چې دقزلباشانو له خوا یې نمایندگی کیدله) ترمنځ دذاتي مخالفت شخره راپیداشوې وه. څرنگه چې قزلباشانو کله کله دشاهي گارد په حیث له خپلې وقف څخه پر پښتنو باندې دجبر او غضب لپاره کار اخیسته دغه وضع نوره هم پسې وخیمه شوه. له دغې نارضایتي څخه دبارکزیو مشر شیرمحمد گټه واخیسته چې دفتح خان د مقرري څخه دوزیر په حیث په قار او دهغه شخصي دښمن و، که څه هم دمحمد زیو په حیث یې سره خپلوي درلوده.

شیرمحمد دکابل دلوی ملاسید احمد ترشادیوه ځوان پښتنون له اعدام څخه دیوه قزلباش دوژنې لپاره استفاده وکړه چې دکابل نا آرامه خلک راوپا روي . شاه محمود زرځان دکابل دبالاحصار ددیوالونو ترشا کلابند و مونډ. بلوا په داسې وخت کې وشوه چې فتح خان په کندهار کې واود کابل دبلوا مشرانو شجاع ته بلنه ورکړه چې کابل ته راشي او پر تخت کښیني .

ځوان شهزاده داپرید وپه منځ کې خپله مخفي گاه پرېښوده او کابل ته په چټکۍ سره راغی چیرې چې له هغه سره یاغیان او له کوهستان څخه یوشمیر رضا کاران یوځای شول .

یوځوورځې وروسته فتح خان له کندهار څخه را ورسید خولښکریې دښمن ته ورغی ځکه چې شیرمحمد هم یومحمدزي واو د بیلتون غوښتونکو قزلباشانو سره یې هیڅ همدردي نه درلوده. په هغه وخت کې چې شجاع په بریالیتوب سره کابل ته داخل شو، فتح خان له یوځو تنو ملاتړو سره د کندهار لور ته وخوځیده.

شامحمود چې د مخلوع پاچا هانو په لست کې نوی شاه ل شوی وسمدلاسه بندي شو که څه هم د شیرمحمد د تقاضا پر اساس چې کوښښ یې کاوه د بخت داو ښتنې په صورت کې ځان خوندي وساتي د هغه سترګی ونه ایستل شوې. په حقیقت کې شاه شجاع پرته له هغه مشر څخه چې شاه زمان یې تسلیم کړی وکسات وانخیست او کومه جزا چې هغه ته یې ورکړه یوداسې عمل وچې د تمولو افغانانو له خوا تائیدشو حتی خان نسبتاً په تحقیرامیزه شکل سره وبلل شو.

شاه شجاع له ۱۸۰۳ تر ۱۸۰۹ پورې دیوه داسې افغانستان واکمنی وکړه چې د دغوکورنیو جګړو له امله زیات خراب شوی و. د هغه د سلطنت دوره د نوو پیل کیدونکو بلواګانو او د دربار د توطئو له امله په دوامداره توګه یوه ناآرامه دوره وه. زیاتره له دغو بلواګانو څخه د فتح خان له خوا سرته رسیدلې چا ته چې پاچا جزاء ورکولی نشو ځکه اوس دغه سردار احتیاط کاوه چې ځان په سعادت کې چې د هغه د قبیلې سیمې مرکز و خوندي وساتي. یوه له دغو دسیسو څخه د دوست محمد له خوا دیوه جسورانه عمل په توګه سرته ورسیده چې د فتح خان په شلوو رښو کې تر تولو کشر و او شاه محمود ته یې زمینه مساعده کړه چې له زندان څخه ولیږي.

د شاه شجاع لپاره بله ستونزه هما غه لوییدونکی درزو چې د شاشجاع او د هغه د وزیر شیرمحمد تر منځ پیداشوی وچې ګمان یې کاوه پاچا خپل سلطنت د ده له برکته ترلاسه کړی اولیوال وچې شاهي قدرت لاس ته راولي. په ۱۸۰۸ کې د سیند په یوه جګړه کې چې شاه شجاع په هغې کې برخه درلوده شیرمحمد یوه کودتا وکړه چې ددې کودتا په نتیجه کې د هغه وراره قیصرمیرزا پر تخت کښیناست

خوداځل جاه طلبه بارکزیو د هغه قوت زیات اتکال کړ ؛ لښکریې دشاه شجاع دراستون شوي پوځ له خوا مات شو اوککري یې په یوه لکړه باندې دننه د کابل په بازارونوکې وګرځول شوه.

دغه عمل دشاه شجاع لپاره دپاینده خان تراعدام وشاه زمان ته کم مهلک نه وځکه په دواړه قضیو کې وژل شوی شخص دسلطنت لپاره اصلي پایه وه. د ۱۸۰۹ کال په پسرلي کې فتح خان دمحمود سره کندهارونیوه اودکابل په لورراوخوځیده .

شاه شجاع چې په دې وخت کې په ژمني پایتخت پېښورکې وپه بېړه دخیبرله لارې راغی اوګندملک ته نږدې له یاغي لښکروسره مخامخ شو. دلته فتح خان پوره بری ترلاسه کړاوشاه شجاع هندوستان ته وتښتیده. ددرې نورو کلونو په موده کې شاه شجاع دسلطنت دبیالاس ته راوړلو لپاره پرله پسې بې ځایه هلې ځلې وکړې خو حتی په شرقي قبیلوکې یې له خپلو پخوانیو پلویانو څخه هم مرسته ترلاسه نه کړه په ۱۸۱۳ کې هغه له کوښښ څخه لاس واخیست اوپه هندوستان کې لودیانا (Luddhiana) ته ولاړ چیرې چې له خپل وروشاه زمان سره یوځای شو اود بریتانیې په جیره باندې یې ژوند کاوه.

شامحمود چې په دې وخت کې بیاپاچاودسد وزیو یوه عنعنه تعقیب کړه : هغه په نیکمرغی کې دومره لټ شو څومره چې په بدمرغی کې فعال و، نه یې ددولت په ساتنه کې برخه اخیستله اونه یې دجنګ په ستونزوکې ونډه. شاه محمود د دولت چارې فتح خان ته دخپل وزیر په حیث وسپارلې اودمحمد زیو مشریې پر پښو دچې ددولت چارې بیله مخالفه سرته ورسوي اوخپله کرارکښیناست چې د حرم له سرګرمیو اودزیرمه تون له شرابو څخه خوند واخلي.

له بلې خوا فتح خان بې حده انرجي درلوده دی چې په ډیرو لحاظو یو عجیبه متناقض شخصیت و؛ یو لایق اداره چي اوجنرال وخو اکثراً دبې پروایي اوجذباتي اعمالو مرتکب ګرځیده. مودب ، مهربانه اوسخي فتح خان د دښمنانو په مقابل کې چې دده موقف ورته پیدا کړي وو بې تفاوته و؛ دزیاتو افغانانو په شان یې عادت درلود چې

له خپلوانو څخه طرفداري وکړي اودا يو داسې صفت وچې دهغه شل ورو ښيه چمتو او راضي ووچې هغه دغه عمل ته تشويق کړي. دبلوچستان تش په نامه واکمني په دې وروڼو کې درحم دل خان په برخه شوه ، کندهار پر دل خان ته وسپارل شوه د پيښور اداره د محمد خان په برخه شوه، د غزني چارې شير دل خان او د باميانو واکمني د کندل خان په برخه شوه. دوست محمد خان ته چې تر ټولو وروڼو کشر و دشاهي ګارد مسوولیت ورپه غاړه شو .

په ۱۸۱۱ دغه، تکړه وزير کشمير ته ديوه افغاني پوځ سره ولاړ چې دشاه شجاع د وزير شير محمد د زوی عطامحمد خان له خوا اداره کيده .په دغه حمله کې د سکانو راجا رنجيت سنګ له فتح خان سره مرسته وکړه چې داوخت په پنجاب کې خورا مقتدر سړی و او هيله يې لرله چې د کشمير نايب الحکومګې ورته ورکړل شي . که څه هم په دې هيله کې دسکانو راجا نامينده شو خو په حقيقت کې داد هغه د موفقې سياستمدارۍ په دوره کې يوازنۍ ماته وه . دابيرته لاس ته راويستل شوي ايالت دبارکزي وروڼو يوه بل ورور محمد عظيم خان ته وسپارل شو .له همدې وخت نه را په دې خوا رنجيت سنګ ديوه افغاني تابع په حيث دزمامدارۍ له ټولو ادعاګانو څخه لاس واخيست .

د يو څو کلونو لپاره داسې ښکاريده چې افغانستان د فتح خان تر اداره لاندې استحکام مونده لی وي . کاروانونه يو ځل بيا هندوستان او منځنۍ اشيا ته ګرزار کړ او رروان شول او دا هيلې ورسره وې چې هلته به پر ته له کوم خطر څخه ورسيږي؛ صنعت کاران او سوداګر بيا را پيداشول ،سوداګري او تجارت بيارونق وموند .

کله چې دغه اميد بخښونکې امنيت او استحکام زوال وموند او په افغانستان کې دداخلي ګډوډيو موجب وګرځيد ،علت يې لکه څنګه چې اکثر أصدق کړي څه ناڅه خارجي و .

پارس دافغانانو دروميو داخلي شخړو په ترڅ کې دغجرانو (قاجارانو) (kajars) تر مشرتابه لاندې چې په ۱۷۹۵ کې يې خپله سلطنتي کورنۍ تاسيس کړه

بهبود موندلی و. خراسان‌چې دمشهد ښارپکښې شامل‌وزردپارسیانو لاس‌ته‌ورغی وزوسته له‌هغه پارسي واکمنانو دهرات خواته پام‌راواړاوه‌چې په دې وخت کې د حاجي فیروزالدین له‌خوا اداره کیده اوحاجي فیروزالدین هماغه سړی وچې رانده شا زمان سره‌یې مرسته‌کړې‌وه‌چې‌ځان هندوستان ته ورسوي. حاجي فیروزالدین دشاه‌محمود سکه‌وروړچې‌عمدتاًیې له‌دین سره علاقه‌درلوده‌همداسې علاقمندوچې‌د قدرت په‌مقام کې‌وي .(٤)

هغه زړه نازړه د شاه‌محمود ملاتړ کړی‌وخو کوښښ یې کاوه چې‌ځان‌دهغو دښمنیو څخه‌گوښه‌وساتي چې د تیمورشاه زامنو ترمنځ راپیداشوې وې .

په ۱۸۰۵ کې یوپارسي لښکر دمحمدخان‌غجر ترقومندې‌لاندې په‌هرات‌باندې بریدوکړاوپس له هغې‌دجگړې‌دغلط تنظیم له امله په‌شا ولاړه چې دوروستنیو پارسي پوځونو له مشخصه صفاتو څخه و. سره لـه‌دې حاجي‌فیروزالدین ددې حملې له امله پوره تکان وخوړا ووې منله چې تهران ته څه کلنی باج ورکړي او په‌عین وخت کې‌دخراسان‌له‌قبیلو سره چې دپارسي تسلط په‌مقابل کې جنگیده کومک وکړي .

پارسي پاچا فتح علی‌شاه چې څوځله یې‌دروسانو له‌خوا په شرمونکې‌دول ماته‌خوړلې‌وه ددغې حرکت په‌واسطه وهڅول شوچې‌دهرات‌په مقابل کې یوبل پوځ واستوي اوپه‌دې توگه خپل‌بایللی‌حیثیت بیرته تریوه حده ترلاسه کړي .

په ۱۸۱٦ کې‌یوستر پوځ په‌مشهد کې‌راټول کړل‌شواودشاه‌دزوی حسین‌علي‌میرزا ترقومندې‌لاندې راغی . خوشاهي‌مشر په‌دې کار کې‌دومره‌ځنډوکړچې فتح خان وکړای شوچې پخوا له‌دې‌چې‌پارسیان را ورسیږي ټوله‌لارمزل وکړي اوله‌کابل څخه افغاني پوځ راورسوي .

دغوکومکي عسکروته دحاجي فیروزالدین هرکلی مغشوش و. کلـه چې هغه دزړه له‌کومې دفتح‌خان درناوی وکړخو عسکروته‌یې اجازه ورنه‌وکړه چې‌ښارته ننوځي، فتح خان‌ته څرگنده شوه‌چې حاجي داعتمادوړنـه دی. هغه لـه خپلې

معمولي بيړې څخه په استفادې سره والي بندي کړاو دهرات واکمني يې ترلاسه کړه. فتح خان غالباً حاجي فيروزالدين په حقه سره نيولی واو دومره دتد بيرڅښتن وچې له يوې افتخاري بدرګۍ سره يې کابل ته ولېږه. خو په دې وخت کې وزير يـ وه لهغو سهو وڅخه و کړه په کوموچې ده شهرت درلود. اودخپلې تير وتنې عواقب يې هيڅ په نظر کې ونه نيول؛ يعنې هغه ستره خزانه چې فيروزالدين پـه هرات کې کوټ کړې وه ونيوله او خپل کشر ورور دوست محمد خان يې دحاجي فيروزالدين حرمته دلاز ياتو غنايمو د پلټنې لپاره ولېږه.

دغه بې باکه عمل چې دافغاني ميعارونو له مخې زښت جدي ګڼل کيږي ښايي ددوست محمد په تشبث سره سرته رسيدلی وي چې په هماغه وخت کې پـه خپلو بارکزيو وروڼو کې تر ټولو زيات شلمل او بې باکه واو په ګرګک باندې مشهورو. په هر صورت، ځوان سردارکله يې چې ديوې نجلی مرصع ملاوستونی پرې کړ چې اتفاقاً دشاه محمود لـور او دوليعهد کـامران ميرزاخـوروه د خپلو لاربـوونـو اواوامر وله حدودونه ووت. (٥)

کله چې ددغه پېښې خبر په کابل کې خپور شو، دشاه زوی کامران يې سخت په قار کړچې لاړومبی د فتح خان شخصي دښمن واودهغه قدرت څخه سخت ربړيده چې دپلارلخي يې وزيرته اجازه ورکړې وه کار ځنې واخلي. کامران اتفاقاً يو داسې انسان وچې دڅانه خوښيده اوهغه ديوه معاصر په قول «برسيره پر بنګو او ترياکو د مشروبا تو سخت ليول و واو خپل ټول عمريې دځان پـه سينګار ولـوکـې اوهمدارنګه دهغو هلـکانو سره په، ملګرتيا کې تير اوه چې دهغه زيات خوښيدل.» (٦) که څه هم ښايي فتح خان يو دغسې رقيب ته هيڅ اهميت نه وای ورکړی خو هغه ونشو کړای پيشګوئي وکړي چې دافغاني اخلاقو څخه دهغه سرغړونه به پـه ښرابو کې دوب محمود باندې څه اغيزه وکړي. کله چې له کامران سره دهغه دزياتو زاريو په اساس په افغاني دربارکې دفتح خان نـوردښمنان يـوځای شـول، شاه محمود له غفلت نه رابيدار شو اودوزير دنيولو حکم يې صادرکړ. داوظيفه کامران

ته ورکړل شوه اونوموړی سمدلاسه دهرات خواته روان شو.

په عین وخت کی افغانانو پارسیانو ته په یوه عجیبه جګړه کی چی په یوه وخت کی ددواړو خوا اووله تېښتي سرپای ته ورسیده ماته ورکړې وه. افغانان چی مزل یې لنډوزرهرات ته ورسیدل اوویې لیدل چی څوك یې نه تعقیبوي، نو بیرته د جنګ ډګر ته راستانه شول په داسې حال کی چی پارسیان لیرې مشهد ته په بیړه تښتیدل. دغه شکمن بری چی دپارسیانو دسامان دنیولو له امله خرږ شوی و دفتح خان په ځان داده توب یې ترلوړترینې نقطې پورې ورساوه.

هغه هغو ملګروته چی ده ته یې دکامران دهدف خبر راوړ په ریشخند سره وویل: «مادوه ځاي شاه محمود پرتخت کښیناوه اودهغه ساطنت اوس زمادیوه خپل په لاس کی دی؛ ځکه نو کامران څوك دی چی ماته دزیان رسولو خوب ووینې؟» (۷) داخبره دیوې مهلکی لاپې ښکارندوی وه. کامران راورسیده اوفتح خان یې په احترام سره هرکلی وکړ. خو یو څوورځې وروسته فتح خان له شهزاده سره دیوه ملاقات لپاره وغوښتل شو، دکامران ساتونکو هغه ونیو اوهلته یې ړوند کړ.

داسې ویل کیږي په کوم خنجرچې دفتح خان سترګې وایستل شوې، هماغه خنجر داحمد شاه دسلطنتي کورنی په زړه کی هم ومنډل شو. دوزیر فتح خان شل وروڼه تراوسه لاآزاد اودلویو مهمو پستونو په راس کی واقع و؛ دوی زرخپلې شخصي جاه طلبی هیرې کړې اودسد وزیر په مقابل کی ټول سره یو لاس شول. شیر دل خان، پردل خان، او کندل خان چی ټول دیوې مور زامن وو (چاچی ښکاره د «دل» له وروستیارې سره مینه درلوده؛ دوه نور زامن یې رحیم دل اومیر دل خان وو) فوراً له هرات څخه دبارکزیو دمرکز سعادت خواته په بیړه لاړل اوهلته له دوي سره په زرګونو غیچ اخیستونکي قبایلي خلك یوځای شول.

دوست محمد خان چی دهغه عمل ستونزه راپید کړې وه دکابل خواته وخوځیده اودلته ده وکړای شو چی دخپلې مور قوم قزلباش دې ته تشویق کړي چی شاه محمود له ښاره وباسي.

وروسته له هغه، چې شاه محمود غزني ته وتښتېده، دلته کامران او له هرات څخه پاتې پوځ ورسره يو ځاى شو او د کابل خوا ته راروان شول. دلته دى د محمد اعظم خان تر قوماندې لاندې ديوه شورشي پوځ سره مخامخ شو چې په بارکزيو وروڼو کې دسن له پلوه دويم ورور و. جګړه يوه ماته وه؛ د شاه محمود پوځ بارکزيو ته و تښتېده او شاه محمود دېته مشکل سره ځان غزني ته ورساوه. دى حتى دلته، هم مصئون نه، و ځکه چې د محمد اعظم خان لښکر غزني ته نژدې کېده او چوبي د داد ورنه وه. په داسې حالت کې چې شاه محمود او کامران يو بل ته، بدويل دسدوزيو د هرات سنګر ته، وتښتېدل چېرې چې دوى پر وندفتح خان له ويرې ډکې بې رحمۍ سره مړ کړ. (۸)

داحمد شاه بابا د کورنى له سقوط سره افغانـي ملت غوښتنه تقريباً پاى ته ورسيده. شاه محمود او کامران په هرات کې حکومت کولو ته دوام ورکړ او څنګه چې قدرت دهغه په لاس کې و کامران له خپل پلار سره سپک سلوك وکړ ځکه چې يو وخت يـې هغه ديوې مياشتې لپاره له شرابو څخه بې برخې کړى و. وروسته لـه هغه چې شاه محمود په ۱۸۲۹ کې ديوې افواه له مخې دخپل زوى له خوا دزهرو په ورکولو سره مړ شو، کامران کورنى مثال تعقيب کړ يعنې ځان يې مخدره دوا ګانو او قوي مشروباتو ته، وقف کړ او دهرات واګې يې دخپل وزير يارمحمدخان په لاس کې ورکړې.

يارمحمدخان چې دالکوزي درانيانو مشر و ځان يې په ريښتينې توګه په اشيا کې تر ټولو شرير سړى باله او هم دارنګه يو خورا هوښيار شخص هم و. (۹) ده کامران تر ډېرې مودې پورې دعياشۍ په نشو کې ډوب اوله ځانه بې خبره وساته او زر دښار ټول واك وګرځيده او تر ۱۸۴۲ پورې کله چې کامران يې دچا په وسيله مړ کړ دسدوزيو دفرضي نوکر په حيث حکومت کاوه.

دبارکزيو وروڼو چې خپل يو الي يې تر موفقيت وروسته لــه لاسه ورکـړى وا و دهغوى تر منځ اختلاف را پيدا شوى و، ددغه اختلاف پـه نتيجه کې سدوزيـو دا قدرت تر لاسه کړ چې هرات په خپل لاس کې وساتي. دغـو وروڼـو هـر يـوه

ځانته دیوه جلا فر دپه حیث معمولاً په هغو سیمو کې چې دوی والیان ووقدرت
تر لاسه کړ چې په دې توګه افغانستان په یوشمیر کوچنیو ایالتونو باندې تجزیه شو.
کابل دمحمد اعظم خان په لاس کې و؛ دریو نورو وروڼو کندل، رحیم دل او پر دل
کندهار تر تسلط لاندې راوست؛ د نواب جبارخان کشمیر په لاس کې واوسلطان
محمدخان په پېښور کې حکومت کاوه. په رسمي توګه محمد اعظم خان دکورنۍ مشر؛
خونورو دهغه غوښتنو ته لږه توجه او دهیواد په هره خوا کې دبیلو خانانو او ملکانو
چې ځنګه یې خوښه وه هماغسې کول. تو له هغه سیمه چې یو وخت داحمد شاه بابا
په لاس کې او دافغانستان داصلي سرحدونو څخه دباندې پرته وه خپله وفاداري
اوتابعیت یې قطع کړ. په عین وخت کې سکانو درنجیت سنګ په مشرۍ د خپلو
پخوانیو افغانـي دښمنانو په سرحدونو باندې پر له پسې یرغلونه پیل کړل.
په دغه وخت کې چې دافغانستان بخت تر وروستۍ اندازې پورې کوته شوی
و، یو نوی رهبر قدرت ته ورسیده. دځیر انتیا ورخو داده چې دامشر دبارکزیو
وروڼو تر ټولو کشر ورور دوست محمدخان و چې د محمداعظم خان لپاره یې د
غزني دوالي په حیث خدمت کاوه او په ۱۸۲٤ کې یې دهغه تر مرګ وروسته دکابل
د تو الواك په حیث دهغه ځای ونیوه. هغه ظاهراً دخپلې ځوانۍ له دورې څخه
راوتلی و ځکه چې په مهارت او اعتدال سره یې حکومت کاوه. دده له ښو صفاتو څخه
یو هم دده جذاب او ممتاز شخصیت و چې دده یې زیات دوستان ورپه برخه کړل.
دغه متل چې «له دوست سره یوه خوږه خبره تر پیسو زیاته اغیزه لري.» هم دده
په مورد کې دی. یوه دښمن هغه په دې ډول توصیف کړی دی «یو داسې انسان چې
د هغه ځیر که احساس او طبیعي استعداد د هرډول اخلاق اوهر رنګه د سیسو سره
په مسلسله توګه مخامخ کیدو سره وده کړې ده.» (۱۰)

دوست محمد خان چې دخپلې کنټرول دپر اخولو لپاره یې کوښښ کاوه په کابل
غزني او جلال آباد کې یې د استحکام لپاره خپله توجه متمرکزه کړه. د سلطنت
تاج په ۱۸۳۷ کې په کابل کې دده پر سر باندې دیوه شاه په حیث نه بلکې دامیر
المومنین په حیث کښیښودل شو.

کله چې چاره دسرې دسر دپاسه وې

خدای یې په یادوي.

(افغاني متل)

# شپږم څپرکی

## دانګریزانو راتګ

په داسې حال کې چې افغانانو خپل دکړاوونو دوره تیروله، یونوی قدرت واك ته رسیدلی وچې په پای کې یې دهندوستان میدانونه ترخپل واك لاندې راوستل. دسوداګرې دیوه شرکت په حیث له یوه بې خونده پیل نه وروسته، دختیځ هندوستان برتانوي کمپنی په هغه ګډوډی کې راګیره شوه چې دمغولو دقدرت دزوال نه وروسته راپیداشوه.

ددې کمپنۍ داستاځو مهارت اودبوربونانو (Bourbons) غفلت کمپنۍ ته داتوان ورکړچې بنګال اوجنوبي هندوستان تر واك لاندې راولي اوپه ۱۷٦٤ کې دمیرقاسیم له ماتې وروسته یې پر ټول هندوستان باندې دلو یې غوښتنې لپاره دیوه زښت قوي رقیب په حیث پر یښوده.

انګریزانو دلرې پرتو افغانانو په برخه کې زیاتې کیسې اوریدلې وې اودهغوی دجنګي زړه ورتیا دراپورونو تراغیزې لاندې راغلي وو، خود احمد شاه بابا مړینې اودتیمورشاه راحت غوښتنې دهغوی اندیښنه له افغاني سپاره لښکرسره داحتمالي ټکرپه برخه کې لږه کړه. هغوی دفرانسې دانقلاب په واسطه په آزاد شوونه اتکلیدونکوځواکونو کې دناآرامی لپاره بل دلیل لیده اوپه تیره بیاد بوناپ

پارت په نامه دیوه پوځي نابغه د فعالیتونو په برخه کې چې وایي کله چې هغه د مصر ځواته خپل لښکر راهنمایي کاوه داسې ویلې دي «درهبري قدرت چې په مصر پورې اړه لري باید دهندوستان په اوږدو کې وي» . (۱)

تقریباً په عین وخت کې د فرانسوي ماجراغوښتونکو یوه څه بدنامه دله دهندي پاچاهانو په دربارونو باندې نازله شوې وه چې هر یوه یې له انګلیس نه په جدي توګه کرکه کوله اوترینه یې بیم درلوده اوپه فرانسوي شکل یې د خپلې کرکې دڅرګندولو استعداد درلود. دغسې یوې ډلې حتی دفرانسې له جزیرې ( Mauritius )څخه دټیپو سلطان دمیسور( Mysore ) پاچادربارته سفروکړ چیرې چې دې حیران اوخوشاله پاچاته یې دهمشهري ټیپو په حیث خطاب وکړ اوهغه ته یې (دبشر له حقوقو څخه ددفاع کولو) په لارکې دمرستې وعده ورکړه .

که څه هم دغوروستیو ونشو کړای چې انګریزان وویروي خو دناپلیون تهدید یوه بله مسأله وه. په چټکۍ سره یوپیغام په پارس کې دکمپنۍ استازي ته ولیږل شو چې هغه ته یې لارښوونه کوله دپارس درباروادار کړي . «چې شاه زمان دتل لپاره تر کنترول لاندې ونیسي څو چې هند ته یې دراتګ مخه ونیول شي.» (۲) درې لکه روپۍ هم پارسي دربارته واستول شوې چې اداري څرخونه پرې وڅرخوي - یوپیشنهاد چې نوروپیسوته اړتیالید له کیږي خودا پیشنهاد دلارډه ولیسلي ( Lord Wellesle y) له خوا ردشوی وکوم چې په معقوله توګه یې وویل «دپارس دټول پوځ لپاره دمالي مرستې پلان د حالاتوتر تقاضا ډیرپراخ اوزیات ګران دی.» (۳)

دپارس پاچافتح علي شاه وچې تریوې سلسلې بې اهمیته شاهي افرادو وروسته یوبې اهمیته مستبد پاچانه واویوله هغوکسانوڅخه وچې نه یوازې هرات بې یوله لاسه تللی پارسي ولایت ګاڼه بلکې دشاه زمان ناسکه ورورشاه محمود یې هم دیوه راضي برمتې په حیث له ځانه سره درلوده اودسیاسي نمایندګۍ پیشنهادیې نه مانه. له دې امله هغه له شاه محمود سره مرسته وکړه چې له یوه

کوچني پوځ سره پر افغانستان حمله وکړي او په ۱۷۹۹ او ۱۸۰۰ کلونو کې يې خراسان ته، لښکرې واستولې. د دغو لښکرو مخه د شاه زمان د نسبتاً زیاتو هڅو په وسیله ونیول شوه چې افغاني لښکریې اړو دسکانو او پارسیانو د تهدید ترمنځ بوخت خیتیځ او بیا لوېدیځ لورته ولاړشي.

په ۱۸۰۰ کال کې جګړن جان ملکم (John MalColm) د ختیځ هندوستان کمپنۍ د استازي په حيث تهران ته ولاړ چې په دې وخت کې له اسيايي دولتونو سره په معامله کې تقريباً خود مختاره وه. تر اژدو خبرو اترو وروسته چې د بډو په واسطه سرته ورسیدې، ملکم له پارس سره دوه تړونونه پای ته ورسول چې د (۱۸۰۰ کال په جنوري کې تصویب شول. یو له دغو قراردادونو څخه د سوداګرۍ تړون او بل یې یوه موافقتنامه وه چې د دې تړون پر اساس پارسیان باید د انګريزانو د مرستې په بدل کې پر هندوستان باندې د فرانسویانو د هرې حملې په مقابل کې ودریږي. په وروستي تړون کې دغه لاندې خبره زیاته شوې وه: که چیرې د افغانانو پاچا د هند د نیولو اراده ښکاره کړي، يو غرونه لړزوونکی پوځ به چې په ټولو جنګي وسایلو سره سمبال وي د مشهور راوسراوړي، او چت او په قوت کې ثابت (د پارس شاه) له هیواد څخه وګمارل شي چې اراده یې شنډه کړي او افغاني سیمې ویجاړې کړي او له هرې قوې څخه به کار واخیستل شي چې پورتنی ملت نابود او ذلیل کړي. (٤)

د انګريزانو ګټه د تړون په دغه شرط کې په مصر کې د ناپیلیون له پښه شاتلنې او په افغانستان کې له داخلي جنګونو سره کرار کرار کمه شوه. کله چې روسي د جورجيا (Georgia) شيريوان (Sheri wan) او قره باغ (karabugh) ولايتونه پخپله خاوره پورې ونښلول پارسي شاه د دې تړون ترشر ايطو لاندې مرسته وغوښته، خو انګريزانو انکار وکړ او څرګنده وله يې چې د هغوی ژمنه يوازې د فرانسويانو په برخه کې وه.

ځکه نو فتح علي شاه سمدلاسه له فرانسويانو سره تماس ونيوه چې هغو په خپل

وار پارس ته یو هیات ولیږه چې د سوداګرۍ دیوتړون په برخه کې خبرې اترې وکړي او همدارنګه یې جنرال ګاردانز (General Gardannes) د یوه استازي په حیث واستوه چې پر هندوستان باندې د فرانسویانو او پارسیانو د ګډ یرغل لپاره پلان طرح کړي. دغه کار دانګریزانو له خوا دیوه فوري عکس العمل موجب وګرځیده. جګړن ملکم یې (Captain Malcolm) (چې اوس د SirJohn په نامه یادیده) دختیځ هندوستان د کمپنۍ داستازي په حیث او سرهارفورډ جونز (Sir Harford Jones) یې د رسمي سفیر په توګه د انګلستان له درباره تهران ته ولیږل. په عین وخت کې یو سفارتي هیأت د سي . ټي متکاف (C.T.Mefcalfe) په مشرۍ د سکانو د رنجت سنګ دربار ته په بیړه لاړ او یوبل هیأت د مونټ ستوارټ الفنستن (Mountstuart Elphinstone) په مشرۍ پېښور ته سفر وکړ چېرې چې دغه وخت پاچاشاه شجاع خپل ژمنی دربار دایر کړی و. دا دافغانانو او انګریزا نو ترمنځ لومړنی رسمي تماس او یا په حقیقت کې دا فغانانو او اروپایي قدرت ترمنځ لومړنی تماس و.

له یولړ پیښو څخه وروسته چې د جونز (Jones او ملکم Malcolm) پر یوبل باندې دبرترۍ د کوښښونو په وسیله منځ ته راغلې د ۱۸۰۹ کال په مارچ (March) کې دلویې بریتانې او پارس ترمنځ یو مقدماتي تړون لا سلیك شو . د دې تړون د شرایطو له مخې دشاه او اروپایې قدرتونو ترمنځ پخوانی قرارداد ونه فسخه شول. ؛ هیڅ پوځ ته اجازه نه ورکول کیده چې د پارس له لارې دهندوستان خواته لاړشي؛ انګریزان باید چې دافغانانو او پارسیانو ترمنځ په جګړو کې بې طرفه پاتې شي او که چېرې یو اروپائي قد رت پر پارس باندې برید وکړي هغوی باید پارس ته وسله برابره کړ ه

دغه تړون د دویم الکساندر سزار او ناپلیون ترمنځ پرهغه تړون باندې چې په تیلست ((Tilsit) کې لاسلیك شو د پارسیانو د قارنتیجه وه چې پارسیانو یوازې ددې علامه ګڼله چې دهغوی قسم خوړلی ـ ملګري هغوی له پخوانی دښمن سره

يوځاى شوي دي. انگريزانو په سمه توگه دفرانسويانو اوروسانوترمنځ مسوافقه دځان (دانگريزانو) په مخالفت ديوه اقدام په حيث گڼله. واقعاً داد فرانسويانو يوهدف وچې روسان پارس ته يو لښکرولېږي څود فرانسويانودهغه لښکرسره يوځاشي چې دقسطنطنيې له لارې به رارسيږي اووروسته لههغه چې پارسي کومکي قواوې يې ومونديې په هندوستان باندې به بريد کوي .

دغه پلان پرمصرباندې د ناپليون دحملې په شان زياتره د تخيل پربنسټ ولاړونه دلښکرکښې دمسايلو دپوهې پربنسټ چې دې کارايجادولی. ناپليون ترخپل انگريزي دښمنانوچې فرد فرديې کلاسيك پوهان ووکمنه، ودلوی سکندر تاريخي يرغل يې په فکر کې درلود. هغه څه چې دواړوخواوو درك نشو کړای داوچې دپلي پوځ کتارونوچيرې چې «ستر پوځ» به توتې توتې شي، سفر کولای شو .

دانگليسانو اوپارسيانو دتړون له لاسليك څخه لږه موده وروسته، هغه هيأت چې مشري يې دمونت ستوارټ الفنستن په غاړه وه دپېښورپه ښارکې دشاه شجاع ژمني درباره، ورسيده. الفنستن دبرتانوي هند دماموريت دنولسمې پېړۍ نامتواوبرجسته کسانو دډلې يوځلانده ستوری وچې پرافغانانوباندې يې ښه اغيزه وکړه اوهغوی باالمقابل پرده باندې ډيراثراوکړ. دهغه «دکابل سلطنت بيان» چې دهغوپلټنو اوتحقيقاتو پربنسټ ليکل شوی دی چې ده دخپلې دندې په ترڅ کې تريوې نيمې پېړۍ وروسته لاتراوسه پورې دافغانستان او افغانانو په باره کې يوله زښت غوره آثارو څخه دی او دهغوی دميلمه پالنې اومودب والي هغه تصوير چې لادغه صفتونه دبهرنيوترډيروله خوا زيانمن شوي نه وو.

شاه شجاع راضي وله دغو خارجيانو سره معامله وکړي چې دهغوی له قدرت نه خبرو. په هغه تړون کې چې لاسليك شوافغانانوموافقه وکړه چې که فرانسويان پرهندوستان باندې بريدکوي دهغوی په مقابل کې ودريږي اوانگريزانو ومنله چې ديوې دغسې احتمالي حملې په صورت کې افغانانوته تولې ممکنې مرستې برابرې

کړي لکه څنګه چې ولیدل شول دغه تړون یوې مانا شي وشاه شجاع د کال تړ پای ته رسیدو دمخه وتښتیده .

تر واترلو ( waterloo ) وروسته ، په پارس او افغانستان کې د انګریزانو دلچسپي کرار کرار کمه شوه چې دا کار د پارس د پاچا دخپګان باعث شو. دغه پټ کله چې له پارس سره اړیکوله لندن څخه په هندوستان کې دانګریزانو مرکزي اداري ته انتقال وموندنو رهم زیانمن شو.

بر سیره پر دې دختیځ هندوستان دکمپنۍ په متجاوزانه توسعه کې د یو شمه مودې لپاره دپارس په خلیج کې هم ښه زیات فعالیتونه شامل ووچې په ظاهره کې یې دهغو زیاتوسمندري داړه مارو په لټه کې سرته رسول چې ددغه خلیج په اوبو کې به یې داړه ماري کوله . خو دپارس دخلیج سواحلوته بیخي نژدې ووچې ددې سواحلو دحکمرانانو داندیښنې باعث کیده.

دځینو دلایلوله مخې انګریزان دتزارۍ روسیې (Zarist Russia) د خطر په درک کولوکې پخوو که څه هم تزارۍ روسیې هم په دې وخت کې په خارج کې خپلې فعالیتونه په مصرانه توګه زیاتول. په نظري دول د روسیې او پارس ترمنځ اړیکې په ۱۸۱۳ کې دګلستان د تړون په وسیله ټینګې شوې وې خوسرحدي شخړې او پیښې واقع کیدلې او پسه ۱۸۲۵ کې روسي پوځیان دګو کچې (Gokcha) ولایت ونیوه چې په راتلوونکي کال کې دپارسیانو له خوا دجنګ داعلان موجب وګرځیده او دشاه مشرزوي عباس میرزا په مشرۍ پارسي پوځ په یوې حملې لاس پورې کړ.

وروسته له هغې چې پارسیان وپه یوله جګړه کې سخته ماته وخوړه ، له انګریزانو څخه یې مرسته وغوښتله خو دهغوی دغه غوښتنه ونه منل شوه . انګریزانو ادعا کوله چې د۱۸۰۹ کال تړون یوازې په هغه صورت کې دتطبیق وړدی چې پرپارسیانوباندې بریدوشي ، حال داچې په دغه مورد کې پارسیان پخپله تیري کوونکی دي . پارسیان چې دروسي وسلواوانضباط په مقابل کې

کمزوري وونـوتـرمنځ شووشرطو نو لاندې تسليم شول. دوی په ۱۸۲۸ کی د ترکمنچای (Turkmanchai) ترون لاسليک کړ چی دهغه لـه مخې يې دايريوان (Erivan) اونـا کشيوان (Nakshivan) سيمې روسانـوتـه پـريښودلـې اووی منله چی هغوی ته دجنګ تاوان ورکړي . له دې څخه لازياته موده نه وه تيره شوې چی دانګريزانو يوه استازي دګروال مکدونـالـد (Mac Donald) دپارسيانـو دپيسوله ارتياڅخه ګټه واخيسته چی ددغه تاوان دا داينې له امله نوره هم زياته شوي وه ، اود ۲۰۰۰۰۰ تمنو پيسو په بدل کی يې دانګريزانو اوپارسيا نو ترمنځ د ترون دهغه فقرې چی دانګريزانو دمرستې په باره کی وه دله منځه وړلولپاره هڅه وکړه . نقدې پيسې خوشايندې وې خو پارسيان وپوهيده چی ددې اقدام ترشا يوه داسې هيله موجوده ده چی انګريزغواړي له يوزړه نازړه ماڼګري څخه ځان خلاص کړي نو په خپګان اوکرکې سره پارسيانو يوځل بيا دروسانو خواته خپل تمايـل ښکاره کړ.(۵)

موسکوی (Muscovy) (دماسکو پخوانی نوم) چی مخ په وارندې روان و خو ښ وچی هغوی مه نون کړي ؛ روسانوزردپارس په دربارکی ګټه ګوښه جوړه کړه اودپارسيانو په جيبونو کی دروپيو پـرځای روبلونه ولـويدل. دپـارسيانـودتخت وارث عباس ميرزاپه خاص ډول دروسانـو طرفـدار شوی و او داپـوه عجيبه خبره ده که مونږ دهغه ماتې دروسانوله خواپه نظر کی ونـسـيو اوداچـی شاه پـه ختيځ کی ديوې لښکر کښې په فکر کی شوقسماً دده دلمسو نې اوهمدارنګه دروسانو دتاکيدله امله و. په هرصورت په دې وخت کـی د پارسيانوغرورته دتـرکانـو اوهمدارنګه روسانوله خواد پرلـه پسې ماتو په نتيجه کی صدمه رسيدلې وه اوديوه ويشل شوي افغانستان له خواهغوته دلږ کلک مخالفت امکان متصورو. پـه تيـره بياهرات دفتحې لپاره چمتوښکاريده ځکه چی هراتيانو په جنګياليتوب شهرت نه درلود اودښارسدوزي واکمنانو دفتح خان له وروڼو څخه په ختيځ کی دمرستې هيله نشوای کولای .

له همدې تحریك سره پارسیانو په څو جنګي عملیاتو لاس پورې کړ خو دهغوی دې څونو وضع خرابه او دماتېدو وړ وه او هر جسارت په یوه غمجنه ماته پای ته ورسید په ۱۸۳۳ کې د پراخې پیمانې جنګي عملیات چې دعباس میرزا دزوی محمد میرزا په مشرۍ پیل شوي وو دهغه دمرګ په واسطه متوقف شول. یو کال وروسته شاه په خپله زوی پسې دارالبقاته ولاړ او محمد میرزا په خپله د پاچا په صفت پر تخت کښیناست. دی چې تر خپل پلاره لا زروس دوسته نه و دیوه لایق روسي سفیر کونت سیمونیخ (Count Simonich) تر نفوذ لاندې واو د روسي پیسو په وسیله حمایه کېده .

تقریباً په همدې وخت کې انګریزان متوجه شول چې دفرانسې دپخواني خطر ځای یوه بل خطر نیولی وچې نهایي تر هغه زیات مهم ثابت شي . که څه هم دې فکر وروورو انکشاف موندہ «خو د ۱۸۳۷ کال په پای کې له روس څخه داری پر ته له کوم شك څخه دانګریزانو په نظر کې یو عمده عنصر و.»(٦) د انګریزانو دفکر ددغه بدلون سره دانګریزانو په اداره کې یو بدلون یو ځای منځ ته راغی . دلارډ ملبورن (Lord Melbourne) په کابینه کې پالمیرستن (Palmerston) په لندن کې دبهرنیو چارو وزیر مقرر شو او دهغه د کله کله بې سنجشه جنګ غوښتنې اغیزه زوره په آسیا کې څرګنده شوه. تقریباً په همدې وخت کې لارډ ویلیم کیونډیش بینتیك (Lord William Cavendish Bentick) دهندوستان دوالي په حیث استعفا وکړه. دهغه پر ځای جورج ایډن (George Eden) (چې وروسته یې بیا دلارډ او داکلینډ دارل لقب وګاټه) مقرر شو او داهغه سړی وچې دیوه وفادار وګ (Whig) (په اووه لسمه پېړۍ کې د انګلیس دخپلواکۍ غوښتونکي حزب غړی) په حیث یې شل کاله دیوه نابرجسته غړي په توګه په پارلمان کې خدمت کړی واو دهغه دغه مقرري یا دهغه دوفاداري اوخدمت له امله یا خو د هغه د تره لارډ منټو (Lord Minto) له برکته وه .

داکلینډ (Auckland) په باره که زیات لیکلي نظریات معمولاً یوه قوي پارتیزانې (ګوندي) بڼه درلوده. منتهادی دخپل یوه معاصر په قول «یو وفادار

په گوندي سرې و، داصلاحاتو تینګک طرفدارا او په کافي اندازه یو سیاستمدار او په نورمالو حالاتو کې یوزیار کښ اونه ستړې کیدونکې مامور و؛ خو هغه په ځان باندې ویسا نه لرله، دعمل او جدیت په چارو کې یې تجربې، متردد او له ختیځ څخه بالکل بې خبره وه. (۷)

کله چې آکلینډ هندوستان ته راورسیده او دهندوستان په باره کې دروسانو د پلانونو څخه داریده، افغانستان لاهم ویشلی افغانستان و. خودوست محمد خان په کابل کې خپل موقف پیاوړی کاوه او دخیالي سلطنتي تخت لپاره دخلکو په نظر یو تکړه کاندید وګڼل شو هم په دې برخه کې دهغه دځومخه دسکانوله خواد پرله پسې زیاتیدونکې فشار په وسیله نیوله کیده.

په عین حال کې په لودیانه کې تبعید شوي شاه شجاع په داسې تینګار سره او وطني کولې چې دانګریزانو سیاسي استازې کپتان کلاو دوید (Captainclaudwade) یې تراغیزې لاندې راوو ست کوم چې آکلینډ ته یې معلومات ورکړ چې فراري شاه شجاع به دروساتو دپلانونو د شنډولو لپاره تر دوست محمد خان یو غوره نفر وي چې دهغه په ځای ودرول شي. آکلینډ چې دوضع په برخه کې یې تقریباً هیڅ معلومات نه درلوده، راضي شو چې دشاه شجاع دتقاعد پیسې زیاتې کړي څو وکړای شي چې اجیر پوځ برابر کړي. په هندوستان کې د اجیرو عسکرو راټولول تل یو اسانه کار و، نو کله چې شاه شجاع یو دغسې پوځ راټول کړ؛

دسند (Sind) خواته یې مخه کړه چیرې چې هغه سندي امیرانو ته ماته ورکړه او . . . . . ۵ کلدارې یې له هغوی څخه راټولې کړې. * په دغو پیسو سره هغوی وکړای شو چې خپل لښکر زیات کړي او دبولان ددرې له لارې پر افغانستان باندې حمله وکړي.

---

* : په دغه جګړه کې یوځورا چاغ سندی مشر دیوې کښتۍ خواته چې په مال اندیشانه ترګه یې تهیه کړې وه ودانګل. دی چې نه یې شو کولای په کښتۍ کې سپورشي په داسې حال کې چې ستمیده وی ویل «دریش بګیر» چې وروسته له هغه دی او دغه جنګ دریش بګیر په نوم شهرت وموند.

بارکزي وروڼه دسدوزيو دبيا راستنيد" وڅخه وډ ارشول . اودايـوه داسې ارواح وه چې ښل کاله چوپه شوې وه، خوهغوی نسبت شاه شجاع ته د انګريزانو له ملاتړ څخه زيات داريده چې خلک لادمخه په خبر وو . دموهن لال په قول چې په کابل کې دانګريزانو جاسوس و، «داد کابل اوسيدونکو ته څرګنده وه چې له هغه سره دانګريزانو حکومت مرسته کوي له کومه چې هغوی زيات ويريدل. سردارانو چې په زړونو کی يې هيڅ ويره نه وه ويله تر هغه وخته چې بارکزي مشران ژوندي وي شاه شجاع هيڅکله نشی کولای چې په کابل کی خپل تخت وساتي.» (۸)

دشاه شجاع پوځ له پنجابي مسلمانانو څخه جوړ شوی وا و په هغه کی د پليو عسکرو يو کنډک چې په اروپايی طريقی سره روزل شوی و هم شامل واو دغه پوځ ديـوه اينګلوا يندين (انګليس ـ هندي) سرتيـري چـې کيمپبل (Campbell) نوميده تر قومنده لاندې و. تر زياتې اندازې دکيمپبل دلياقت لـه کبله وه چـې ـ کندل خان اودکندهاردراني پوځونه په يوه جګړه کی چې دخوجک په دره کی وشوه، مات شول چې وروسته له هغه شاه شجاع پـرمخ ولاړ او کند هـاريـې کلابند کړ .

په عين حال کی په کابل کی له دوست محمدنـه چې د سکا نو په مقابل کی يـې دخدمت لپاره يو پياوړی پوځ درلود ، له خپلو ورڼو څخه دکومک اوملا تړ لپاره هيجان اميزه غوښتنې کيدلې. دی چې د انګريزا نو دروپې څخه پـه تشويش کـی وويده، يې ولېکل چې دشاه شجاع په مقابل کی دهغه دحکومت دتعهداتو اندازه وپوښتي. ويلې په غير دوستانه توګه ځواب ورکړ چې انګريزان دشاه شجاع هڅو ته چې دسلطنت دبيالاس ته راوړلو لپاره يې کوي درضايت په سترګه ګوري. خو دفعالې مداخلې لپاره هيڅ پلانونه نه لـري.

داده خو لاهم اند يښمن دوست محمدخان په زور کی مارشونو سره دکندهـار خواته وخوځيده . دهغه پوځونه د جون June د مياشتې په لـومړيوورځو کی د شاه شجاع له لښکرو سره مخامخ شول او دڅوورځولپاره دواړه لښکرو په يوې بې

نظامي جګړې کې سره وجنګېدل او دغه جګړې چې يوشمېر زياتو پوځيانو ته لـه دوا ړو خوا و ځخه، بدي ورکړل شوې وې يو پيچلي شکل وموند . کله چې بالاخره دشاه شجاع پيسي خلاص شوې ، سدمه زيان هندوستان تـه وتښتېدل او خپل پوځ يې پرېښودچې له فاتحينوسره جوړ شي . دغې شرموونـکې جګړې ، هېڅ اغيزې درلودې . يوه له دغواغيزو څخه داوه چې لـه کابل څخه د وست محمدخان و ته لو رنجيت سنګك ته داموقع پـه لاس ورکړه چې مخ خوا ته حرکت وکړي او پېښور نيسي اوپه دې ډول دسکانوواکمني دخيبر ددرې ترخولې راورسوي . بل تا ثيريې داوچې د کيه پيلۍ عسکرو لومړني برياليتوب وښودلـه چې افغانان اوس نسبت داحمدشاه بابا و نختو نو ته لږسهمناك دي اودروزل شوو پليو عسکرو په مقابل کې دهغوی دسپرو عسکرو نا اغيزمنتوب ثابت شو .

دوست محمد خان دخپلې فتحې نه وروسته هڅه ونه کړه چې کندهار په خپل قلمرو کې ګډ کړي . دانبارېې چې د(دل) وروڼو ته پرېښود،نودسکا نو په مقابل کې خپلې جګړې ته راو ګرزيده اوداخل يې چې ديوه ستر اوپه نظريې تر ګه از- ميل شوي لښکر ملا تړو ر سره و ، هيله يې کوله چې سکان په شاوتمبوي او د سند (Indus) هاغې خواته يه يې وشړي .

کله چې افغاني لښکر دخيبر په دره کې روان و ، د رنجيت سنګك نمايندګانو سره مخامخ شوکوم چې ظاهراً د دې دپاره ليږل شوي ووچې داختلاف دحل په باره کې سره وغږېږي خو په حقيقت کې دهغوی هدف داوچې دعاقلانه بدلې ورکـوني څخه کارواخلي . دنمايندګانو پـه جمله کې يـوهـم جـوسياهـا رلـن ( JosiahHarlan ) نـامي لومـړني امريکا يـی و چې افغا نستان تـه داخل شي او نوموړي دوست محمدخان پـه درناوي سره خپل حضورته ومانه. هارلن( Harlan )

---

هارلن ( Harlan ) چې يو لـه بد ماشانـو څخه واوپه دې وخت کې په آسيا کې بې هدفه اوچتې ګرځيده په ۱۷۹۹ کې په فلادلفيا کې ( philadelphia )زيږيدلی و. له قانون سره د مشکلا تـو په وجه دامريکې له ترك کو لو څخه وروسته يې په پوره بيطرفی سره د آسيايی پاچها نـو خدمت کاو ه ، يوه دهغه له دندو څخه داوه چې ديوه جراح په حيث په برتانوی هندی پوځ کې کاروکـړي او دا يوه داسې دنده وه چې نه يې په هغې کې کوم معلومات درلودا ونه کومـه تجربه . هغه وروسته د داخلی جنګك په وخت کې دمتحده ايالاتو نو په لښکر کې دګروال شواويوپلان چې يې مخ ته بوتـه چې دامريکې جنوب غرب ته اوښتان راولی.

ددوست محمدخان میلمه پالنه داسې ادا کړه چې «دهغه وروړ سلطان محمدخان چې په ورورستیو وختو کې د پېښوردواکمنۍ څخه معزول شوی وتشویق کړ چې ناڅاپه له لسوزرو محافظینو سره په پسه ترغوني ماښام کی له کمپ څخه ولاړ شي. » (۹)

دوست محمدخان (که څه هم دغه دوه وروڼه په شخصي توګه سره برخلاف وو) چې د خپل ورور دغداری له امله نارامه شوی وکابل ته راستون شو او دیوه بل پوځ په راغونډولو یې پیل وکړ. په ۱۸۳۷ کی دغه لښکر چې ددوست محمد خان دمشرزوی محمداکبرخان ترقومنده لاندې و، دخیبرله لارې وخوځیده او سکانو ته یې په یوه جګړه کی چې په جمرود کې وشوه ماتې ورکړه په کومه کی چې دسکانو تر ټولو ماهر جنرال ووژل شو. سره له دې هم افغانانوله دې موقع څخه استفاده ونشو کړای او پېښوردسکانو په لاس کی پاتې شو.

دابایدڅرګنده شي چې افغانانو دپېښوراو دهغه دشاوخوا جلګې د لاسه تللو په برخه کی په دوو دلیلونو زیاته اندېښنه درلوده : یوداچې دغه ولایت غني واوبل داچې ددې ولایت پښتانه اوسیدونکي دهغوی دخپل قوت لپاره اساسي ارزښت درلود. له بلې خوا دسکانو تسلط تل کمزوری (ناپایدار) و. دانډوس (Indus) په غربي سیمه باندې دسکانو واکمني چې تر ډیره حده دارو پایې اجیر وافسرانو په واسطه دیوه روزل شوي پوځ او درنجیت سنګ دزیاتې څیر کې او بیداری په وسیله حمایه کیدله ، یوازې دوحشیانه فشاراو داردود پر له پسې زیار په واسطه ساتل کیده. پخپله رنجیت سنګ «پېښورد چړ وامیل باله چې هري سنګ دهغه په غاړه کې اچولی و.»

زیات احتمال یې درلوده چې یو ځل دوست محمد خان خپل سلطنت ټینګ کړی وای ، افغانانو دغه له لاسه ورکړې سیمه بیالاس ته راوړې وای . که چیرې اوضاع دانګریزانو دزیاتیدونکې دلچسپۍ په وسیله پېچلې شوې نه وای . دوست محمدخان چې په یوه حیرانوونکې طریقه دځینو برتانوی مشرانو اوپه تیره بیا ویډ (Wade) له خصومت څخه خبرو ، په ۱۸۳۶ کې یې آکلینډ (Auckland) ته یولیک واستوه چې دهغه لیک یوه برخه داده :

دا به تاسو جلالتمآب ته څرګنده وي چې د خير غوښتني او بشردوستی پر اصولو باندې باور درلودل چې دبريتانيې د دولت مشخصه ده ، زه خپل ځان او زموږ هيواد پر دغو اصولو خوراکلک ولاړ ګڼم . په دغه سيمه کې وروستی معاملې اوديې پروا اوتيرا يستلې شووسکانږ عملی اوله ټرون څخه دهغوی سرغړونه تاسو جلالتمآب ته ښه څرګنده ده . هرڅه چې ستاسو فکر ددې هيواد دچارود تصفيه کولولپاره مشوره درکوي ماته يې ووايې . (۱۰)

اکليند (Auckland) ته درو مياشتوپورې دليک ځواب ورنه کړاوپس له درې مياشتوپې يوازې دومره وليکل چې دی پلان لري چې دسوداګرۍ يو هيأت کابل ته وليږي . هغه خپل ليک په دې ډول سره پای ته رسولی و، «دا دبريتانيې ددولت عادت نه دی چې دنورو خپلواکو دولتونو په چاروکې لاس ووهی او رښتيا هم سمدلاسه څه نشم ويلی چې زما د دولت لاسوهنه به څنګه ستاسو په ګټه تمامه شي.» (۱۱)

دا کليند (Auckland) دفکر عمومي تمايل په همدې وخت کې څه ناڅه دهغه دتر لاس لاندې خلکو دسلامشورې اوقسماً له لندن څخه دلارښوونو دتر لاسه کولو په نتيجه کې مينځ ته راغلی و. حتی دوست محمدخان ته له ځواب ور کولو څخه دمخه دختيځ هندوستان کمپنۍ دمديره هيأت د سري کميټې له خوا اورته په لاندې ډول لارښوونه شوې وه .

«قضاوت وکړئ چې ددې دپاره چې نسبت پخواته په افغانستان کې د پيښو پر مختګ له نږدې څخه تر څارنې لاندې ونيول شي او دروسي نفوذ د پر مختګ مخه په يوه داسې سيمه کې ونيوله شي چې که يوځلي برقرار شو ... حتماً به زموږ داتحادونو پر نظام اواحتمالاً به ستاسې دخپلې سيمې پر ارامۍ باندې ناوړه اغيزه وکړي ، څه ګامونه مناسب دي ... چې واخيستل شي ... داچې تاسې له دغه مهم سوال سره څرنګه معامله کوئ اوهمدا رنګه کوم نور ګامونه چې تاسې ته مطلوب ښکاري اخلئ ستاسې دوراندیشۍ اودفيصلې قوت ته پريږدو که څيرې

تامين باورلري چې د دې دپاره چې دافغانستان په چارو کې په قاطع ډول ګه د مداخلې وخت رارسیدلی دئ » (۱۲)

دسلاکارانو دله له کوم شخصه چې آکلینډلا ربنو ونه تر لاسه کوله له دغو کسانو څخه جوړه شوې وه: هنري تورنز (Henry Torens)، جان کولوین (JohnColvin) ویلیم مکناټن (William Macnaghten) او کلاډوید (Claude Wade) دغه کسان په ځوانۍ اولیاقت، دژبې پر پوهیدلو او دهندوستان په چارو کې د زیاتو تجربو په ارلو کې سره یوشان وو. خو دافغانستان په باره کې یې لږ معلومات درلودل، او وید په شان یې دسکانو قوت تر حد زیات تخمیناوه اورنجیت سنګ یې تر اندازې زیات خیر او فیض رسوونکی ګاڼه.

دیو څه مودې لپاره انګریزانو د دوست محمد خان په دربار کې چارلس میسن (Charles Masson) په نامه یو جاسوس استخدام کړی وچې یو جعلي نماینده هم و. د غه فوق العاده شخصیت د ژبپوه، سکه پیژندونکي او څېره یو مخلوط وچې په دومره ډاډه زړه سره په توله منځنۍ آسیا کې ګرځیده چې په هایډ پارک (Hyde Park) یا په پیکاډیلي سرکس (Piccadilly Circus) کې ګرځي. هغه چې دوست محمد خان او افغا ني مشرانو یې زیات احترام کاوه، دافغانستان او ددې هیواد دچارو په باب تر بل هر بهرني زیات معلومات درلود.

که څه هم میسن (Masson) دا په ډاګه کړې وه چې دئ یو امریکایي دی خو په حقیقت کې دی تر یوه مستعار نامه لاندې یو انګریز و. هغه په خپل اصلي نامه چې جیمز لیویس (James Lewis) و، دبنګال په توپچي قواو کې خدمت کړی وا او وروسته بیا ځنې وتښتیده. داله بده مرغه آکلینډ ته څرګنده وه چې له دې امله دې ته حاضر نه وچې میسن ته دافغانستان په باب د یوه معلومات لرونکي شخص په حیث کوم ارزښت قایل شي.

یو بل برتانوي (با صلاحیته مقام) چې په ټولنیز لحاظ زیات د منلو ورو د سکاټلینډي شاعر دوروردو دیرش کلن دوراره زوی الکساندر برنس

(Alexander Burnes) و چي په هندي لښکر کښې جګړن او یو استعداد لرونکی ژبپوه
و. برنس په ۱۸۳۲ کې افغانستان او بخارا ته دیوه هیأت مشري په غاړه درلوده
او دخپل سفرپه، پاي کې چې ده کوم کتاب ولیکلی وپه خلکو کې یې یو هیجان رامنځ
ته کړی و. هغه زښت په زړه پورې او جذاب سړي وا و پر آکلینډ باندې یې کله چې
دوي دواړو په لندن کې یو له بل سره ولیدل او پخوا له دې چې آکلینډ دلندن څخه
هندوستان ته راشي خوراګټوره اغیزه کړې وه .
له بده مرغه برنس ( Burnes ) نورلږ خوشایند صفتونه درلودل. دی دیوه داسې
مزاج خاوند و چې کله به دخوشبیني او کله به دمایوسی حالاتو پرغلبه کوله او دیوې
داسې جاه طلبی احساس به یې کاوه چې دهغې له کبله یې له خپل ځان څخه دلوړو
کسانو په مقابل کی هیڅ ډول مخالفت نه ښوده حتی که په دې هم پوهیده چې
هغوی په غلطه روان دي. هغه په بیړه له خپل موقف څخه استفاده وکړه چه په
مختلفو اماتوري ماجراجو ییو باندې لاس پورې کړې کومې چې که دښځوار-
یانو ونکی شمر پکښې داخلی نه واې په هماغه زمان او مکان کې غیر معمولي نه وې.
میسن پرته له شکك څخه دبرنس په برخه کې حسود وخود خپلوورځینو یادښتونو
په کتابچه، کی یې په بدخلقي سره ولیکل « چې ما ونه منله « چې دخپلوورځنیو
مشهوروامرانو پیروي وکړم او خپل کورله تورستر ګو پیغلو څخه ډك کړم. (۱۳)
برنس د۱۸۳٦ په وروستیو وختونو کې دیوه هیأت په مشری کابل ته واستول
شو او په هغه هیأت کې دوه تنه برید منان چې نومونه یې لیچ(Leech) او وډ(Wood)
وو او یو داکتر چې نوم یې پرسیوال لارډ(Percival Lord) و، شامل وو. دادسوداګری
هیأت وچې آکلینډ په خپل هغه لیك کې چې امیر دوست محمد خان ته یې لیږلی
وله هغه څخه یادونه کړې وه او که څه هم په ظاهره کی د دغه هیأت هدف
دانګریزانو دسوداګری لپاره دسند څخه دګټې اخیستلو په باب دامکاناتو پلټل و،
خوپټ سیاسي مقصد یې څرګند و. هیأت په ۱۸۳۷ کې کابل ته راورسیده او په ښاند-
اره مراسمو سره یې هرکلی وشو .

په عین حال کې ، په لویدیځ کې پېښودهیأت ارزښت لاپسې زیاتاوه . د ډیر کال په موده کې په پارس باندې دانګریزانوا غیزه دومره لږه شوې وه چې پارسي پاچامحمدشاه په ټینګارسره وېلي چې هغه دهرات د نیولوتکل کړې دی . سره ددې چې انګریزانو پروانه لرله چې هرات د چاپه تصرف کې وي ، په دې ونه پوهیدل چې پارسیان روسانولمسولي وواوداسې یې فرض کړه چې د هغوی اراده پرهندوستان باندې دروسانو دیرغل لپاره لومړنی ګام و . ښایې چې روسانو به دغسې کوم شی په نظر کې نه درلوده ، که څه هم په ساحه کې دهغوی دنمایند ګانو رویې اکثراً دسنت پتېرسبورګ (St. Ptersburg) دماموریتونوله الفاظو سره تو پیر درلود . په هر حال ، د۱۸۳۷ کال په لومړیو وختونو کې پارسي شاه یارمحمدته چې په دې وخت کې یې په هرات کې قدرت په لاس کې ویو غوښتنې لیکلې وسپاره چې نوموړی ښاردپارسیانو کنټرول ومني . دغه خطر رد شو چې د هغه په نتیجه کې یولوی پارسي لښکر سره راغونډشو اوله یوڅه ځنډ څخه وروسته پردې هیواد باندې راوڅوځیده ، اوڅلورمیاشتې وروسته ، د۱۸۳۷ کال په نومبر ( November ) کې د هرات کلاګانوته راورسید .

په لندن اوهندوستان دواړو کې دپارسیانو اقدام او دانګریزانو داحتجاجونو په مقابل کې دمحمدشاه بې پروایي دیوخطر سبب شوه چې دزمانې دلیري لید له پلوه اوس کاملاً بې بنسټه بریښي . دمثال په توګه ، داسې فکر کیده چې پارسي پوځ دروسي افسرانوترقومنده لاندې و دا یوه بېځایه غلط فهمي وه ځکه چې که څه هم دوې فرقې دخارجي افسرانو جنرال بوروفسکی ( Boroffski ) اوجنرال سیمینو ( Semineau ) ترقومنده لاندې وي ، رومبنی یې حقیقتاً پولینډی اووروستنی یې فرانسوی و . جنرال سمسون خان( Sam Sounkhan )چې یوځل دښار(Sar) په پوځ کې دلګی مشرو ، یوازینی روسي افسروچې داسلام په دین مشرف شوی و .

دهرات کلابندي په فوق العاده ناقابلې سره سرته ورسیده چې په نولسمه پیړۍ کې د پارسیانو د پوځي فعالیتونو مشخصه ده . دیوه فرانسوي جنرال

جې . پي . فر یر (J.PF errier) په قول چې تر کلابندۍ لږ وروسته یې هرات ولید د هر پارسي جنرال دهاند اصلي هدف داو چې دپاتې کسانو د ډیر لږ بریالیتوب مخه ونیسي اودهغوی دقوماندان (حاجي میرزا آغازي) دکوښښ هدف داو، چې دده دنظامي اتل کیدوضرورت څخه ځان وژغوري .

له بلې خوا افغانانو ته په پوره قابلیت سره دیارمحمدخان لـه خوا الارښوونـه کیده چې دپارسیانو تر رارسیدو دمخه یـې دننه دښارپه دولسن میلۍکۍ تـول کلی ویجاړ کړي وو، اومدافعین یې دحکومتي جلادله خدماتـو څخه دپـرلـه پسي گټې اخیستلوله لارې تشویقول . (ددې خبرې ماناداده هرمدافع به چې نه جنگیده هغه به یې دخلکو په مخ کې واژه . مترجم ) څرنگه چې پارسیانو هم دا کمالاتوله مبتذل خدمت څخه سرغړولي و، دهغوی بدبخته عسکر زرشوتلی خوړلو ته اړشول .

دښارمـدافعین دیـوه برتانـوي افسر دویم بـریـدمن ایلډ ردایډوارډ پاتینجر (Eldred EdwardyPottinger) چې دبمبیـی و توپچي قواو وته منسوب وله حضور څخه نورهم زړه ورشوي ووچې دڅیړنې په یوه انفرادي رسالت یې لاس پـورې کړی اودآسونودیوه سوداگر په حیث یـې خپلې رښتینې ماهیت بـدل کړی وخو په دې ترگۍ سره یـې څوك نشو غولولی . دښارپـه دفـاع کې دپاتینجر رول اوس دبرتانوي فلکلوریوه برخه ده که څـه هم دایقیني نه ده چې ایاد«هرات » اتل ددغه ښار دپاره دومره مهم وڅومره چې هغه وروسته دانگریزانوپه نظر کې مهم شو . اوس افغانان کوم دلیل نه وینې چې دهغه دهڅرقدرو کړي اورخه‌ناك میسن (Masson) په هغه وخت کې فـکر کاوه چې « په دغه ځای کې جگـړه پرتـه لـه هغه هم په ښه توگه سرته رسیدلی شوه » .

په هر حال، پرته‌له شك څخه دهغه‌ګډون پرمدافعینوبانـدې روحي اغیزه درلـودههغه‌چې فکریـې کاوه دابه دانگریـزانو دملاتړیوه نښه وي .

کله چې دپارسیانودبرید خبر په هندوستان کې خپورشو، آکلینډ بـرنس تـه لارښوونه وکړه چې دهغه دسوداگرۍ هیأت یې په‌یوه څـرگنده سیاسـي هیأت

بدل کړاوسري معلومات ېي ورکړچي امير ته ېي ورسوي. اميرته بايد ويل شوي واى چي انګريزان «دخپل پخواني ملګري او کلك متحد رنجيت سنګ» په مقابل کي دهغه ملاتړ نشي کولاى اومشوره ېي ورکړه چي پارسي سياسي استاځى چي ويل کيده دکابل خواته راروان و، ونه مني. دغه پيغام په يوه داروونکي اعلام سره په دې دول پاى ته رسيده چي «که چيري هغه دهر استاځي اوهر پيشنهاد هر کلى وکړ، دکوم ځرګند هدف چي داوي چي حتى دهغه د خپلې آزادى په خطر کي لويدلوسره نارامي منځ ته راوړي، ممکنه نه ده چي دبرتانوي دولت صميمانه احساساتو ته زيان ونه رسيږي» (١٤)

ددغه ګواښ موجب انګريزانو ته دهغوى داستاځي موهن لال راپور وچي دوست محمد خان دروسي ځار (Czarof Russia) او دپارس شاه دواړو ته مکتوبونه ليکلي دي اوله هغوى څخه ېي دمرستي غوښتنه کړې ده. داراپورسم و په رښتيا چي استاځي پخپله دمکتوبو په ليکلو کي مرسته کړې وه. د آکليند اودهغه د سلاکارانو اشتباه داوه چي هغه ېي جدي وګڼل. لکه چي ميسن اوبرنس دواړو درك کوله امير صرف داهيله لرله چي انګريزان وپاروي چي په عمل لاس پوري کړي. دګواښ اوتهديد سياست له دښمنانو سره په معامله کولو کي په افغانستان کي معمول ولکه څنګه چي داسياست اکثرا په هغو هيوادو کي چي دسيالي کوونکوقوتونوله خوامحاط شوي وي دوددى چي بنايي په ځنوو ختونو کي هغوى ته ګټي ورسوي اوپه ځينو وختونو کي تباهي ورته راولي. برنس چي ځان غوښتنه (خودخواهي ورته ځنډګر زيدلي وه محتاط وچي دغه دول مشاهدات ديادښت په کتابچه کي پټ وساتي.

علاوتاً ځرنګه چي دغه سياسي استاځي ته پوره واك نه وور کړ شوي، امير دوست محمد خان حيران وچي دى پرته له دوستانه مشورې څخه بل څه چي زياته واقعي بڼه ولري ولي نه وړاندي کوي.

په دې وخت کي يونوى سرى کابل ته راورسيد. دى يو ځوان سرى وچي

دیوه قزاق - (Cossack) دویم برید من یونیفورم یې اغوستی واو له کندهار څخه پرسرك باندې راغلی واودایې ښودله‌چې دځار استاځی دی . هغه روسي نه بلکې پولینډی واونوم یې جین ویکتیویکز(Jeanwitiwics) و(چې نوم یې په مختلفو دولونو سره لکه‌ویلکو ویچ(Vilkovich ) ویکوویچ( Vikovich )ویتکاویچ(Vitkaviech) اوویتکاویتیچ (Vitkavitch) لیکل کیده. وروسته‌له هغه چې دی په ۱۸۲۳ کی دپولینډي وطن پالونکودیوې مخفي ډلې په جوړولو کي دلاس لرلوپه تورراورسلك ته وشړل‌شو، هغه پارسي اوترکي ژبې زده کړې ، له الکساندر روون هومبولدت ( Alexander Von Humboldt ) سره یې مننځنی آسیاته دهغه دلښکر کښیوپه طرح کولو کی مرسته وکړه او په قزاقانو کی ورته وظیفه ورکړه شوه . کله چې دی بالاخره په افغانستان کی له خپلې وظیفې څخه سنت پترسبورګ ته راستون شو، تودهر کلي ښې‌وشوه‌یوه اووني وروسته دهغه‌مړی‌چې په‌ګولی‌ویشتل‌شوی‌وموندل شواو اسنادیې ټول له مینځه‌تللي و. ددولت‌په قول دهغه مرګ‌یوه‌ځان وژنه (خودکشی) اودشکا کینوپه عقیده یوه قرباني وه . په افغانستان کې دهغه دواقعي‌مقصد‌ترلې بیلګې دده له وژنې سره سم له مینځه ولاړې . (۱۵)

افغانانو ته ممکنه ته ښکاریده چې یوسیاسي استاځی دې بې پیسو او بې مرستیالانو وي. په هر حال، دې پولینډي دوه مکتوبونه له‌ځانه سره‌لرل چې‌یو یې دځارله خوانه اوبل یې دپاریسي شاه له خوانه و. دادواړه بې ضرره لیکونه وو؛ شاه‌صرف دومره ویل چې ویتکیویکز (witiwics) دپارس له لارې دخپل راتګ په وخت کې خپل احترامونه‌وړاندې کړي‌دي . لومړي نیکولاس(Nichclas) امیر ته دادورکاوه چې په روسیه کی به دافغاني سوداګرو درناوی اوهر کلی وشي.

په برنس باندې ځار دسیاسي استاځی راتګ سره له دې چې افغانانو هغه‌په احتیاط سره استقبال کړ ، دخپګان یوڅپه راوستله چې د هغې دعلاج لپاره یې سر په یوه دستمال باندې وتاړه اوله یوی ورکونکومالګوڅخه یې کاروانخیست دڅپه پیښه دمیسن دسر ګرمي او ساتیری وسیله شوه ځکه چې هغه له د ې څخه

خبر وچې امیر دوست محمدخان په ویتکیویکز ( Witkiwics ) باندې بالکل باور نه درلوده او ددرباروزیرته یې امر کړی وچې هغه ته دنوابانو په ځای کې له محمد حسین سره ځای برابر کړي چې دوه مسخره سره یوځای شي . (١٦)

که څه هم ویتکیویکز په کابل کی پاتې شو ، وروسته له یوڅه مودې څخه برنس په کافي اندازه له خپل خپگان څخه فارغ شو چې مذاکرې ته دوام ورکړي. ددسمبر ( December ) په وروستیو ورځتو نوکی هغه د یوې پا لیسی لپا ره خپل سپارښتو نه آکلینډ( Auckland ) ته ولیکل چې په هغې کی دانګریزانو غوره ګټې وساتلې شي . ده یقین درلودچې امیر دوست محمدخان غوا ړي له لوېې بریتانیې سره داتحادیوتړون پای ته ورسوي اوراضي وچې له پا رس یاروسیې سره تولې مراودې قطع کړي . یوازنی شی چې افغانانوله انګریزانو څخه غوښته داوه چې رنجیت سنګک تشویق کړي چې د پیښور له ښار څخه لاس وا خلي دکوم لپاره چې امیر دوست محمدخان حاضر ویر قیمت تادیه کړي .

برنس ( Burnes ) زیات معتقدشو چې دسکانو قدرت او دهغوی ددولت ټینګښت (استحکام) وهمې او اغفالوونکې و ، ځکه هغوی یوازې درنجیت سنګک(Ranjitsingh) په زړیدونکي وجودباندې تکیه لرله . هغه داده وچې دسکانو راجاپه اسانی سره راضي کیدای شي چې له پیښور څخه لاس وا خلي چې هغه ته یې پر ته له زحمت اوناآرامی څخه بل څه نه وورپه برخه کړي .

په هندوستان کی عکس العمل دبرنس ( Burnes ) ددې خوی مصلحت اندیشي ثابته کړه چې خپلې اصلي نظر یې به یې یوا زې خپل دیادا ښت کتا بچې لپا ره ساتلې او له چاسره به یې نه طرح کولې .

اکلینډفوراً سیاسي استاځي ته ولیکل چې هغه له خپلولارښوونو څخه تیر ی کړی دی او نه باید چې په سیاست کی ګوتې ووهي اوامیر دوست محمد خان نه باید دانګریزانو «د دمرستې له دوام » نه زیا ت شی توقع وکړي . آکلینډ زیا ته کړه چې حتی دابه هم ناممکنه وي ترڅو چې افغانانوسکانوته دسولې پیشنهاد ونه

نه وي کړي اوله بهرني قوتونو سره يې تولې مفاهمې او تماسونه قطع کړي نه وي .

دغو لارښوونو برنس دنا اميدي په يوه حالت کې پريښود . دې مرستې چې دهغې ددوام نه زيات برنس واك نه درلود کوم شی وړاندې کړي په عمل کې لاپيل شوې هم نه وه. ددې تقاضا پرځای چې افغانان دې دبهرنيو چارو په ډگر کې له حاکميت څخه لاس واخلي برنس د١٨٣٨ کال داپريل په ٢٦، کابل د هند په نيت ترك کړ اوميدان يې ويتکويکز ته پريښود .

پرته له شك څخه دا واره پولينډي موجوديت د آکليند فکر سخت متاثر کړی او مرکزي حکومت يې لـه دارسره مخامـخ کړی و . دپا لمرستن (Palmerston) دلارښوولو پراساس په روسيه کې دبريتانيې سفيرلارډ کلان ريکارډ ( Lordclanricard ) يوجدي يا داښت وړاندې کړ او وې غوښتل چې کابل ته دويتکيويکز دسفرمقصد روښانه شي. دې يادا ښت ته د١٨٣٨ کال دا کتوبر په ٢٠ ، په بريتانيې کې دروسانو د سفيرله خوا ځواب ورکړشو په کوم کې چې ادعايې کوله چې د دې سفرمقصد داوچې هلته يولړ انديښمن کوونکي فعا ليتونه روان ووچې » دتاکلو بې اعتبارو او ناپېژند ل شوو افرادوله خوا سرته رسيد ل . (١٧)

دالاتر اوسه پورې گران، ده تشخيص کړه شوه چې ددغـه سياسي افکارترشا څه مقصد پروت و. په څرگنده ول څارد خارجه چارو وزارت دانگريزانو ددښمنی دپراختيا له امله نا رامه شوی وپه تيره بياپه دې وخت کې چې په ١٨٣٣ کې د انکيار سکليسي (Unkiar - Skelessi) تـرون روسان خپل مطلوب هدف ته چې هغه مـديترانـه وه نږدې کـړي وو. ديراحتمال لـري چې هغوی علاقمند ووچې په لويـې بريتانيـې باندې هرممکن فشارواچوي اودويتکيويکز د سفرپه برخه کې د انگريـزانـودانـد يښني له امله اريان اوخوشاله وو. خوکه چيرې روسانوله کابل سره د جدي خبرو اترو خيال درلوداى ، دوی به پرته له شك څخه ددې پولينډي پرځای چې نه يې پيسې لرلې اونه يې همکاران يوزيات باوقاره اوبانفوذه سفارت ليږلی وای .

په هرحال، آکليند اودهغه سلاکاران متيقن ووچې دويتکيويکز موجوديت برتانوي

هندته ديوه جدي گواښ مانادرلوده اوپريکړه يې وکړه چې دانگريزانوگټې بايد حتماًديوه فوري اواغيزناك اقدام په واسطه خوندي وساتلې شي. دهغوی پلان داو چې دامير دوست محمدخان پرځای فراري شاه شجاع جانشين وگرزوي چې پس له هغه دانگريزانودگوداگي په حيث په يوه داسې طريقه پاچا هي وکړي لکه دهندوستان دشهزاده نشينانو په ولايتوکې :

دغه پلان اصلاً دانگريزانودسکرتريت(دارالانشاء)دجاسوسی څانگودآمرويليم هي‌مکناتن(WilliamHay Macnaghten) په دماغ کې راپيداشويالزترلزه هغه وخت چې‌مکناتن( Macnaghten )مرواوله ځانه يې دفاع نه‌شوکولای‌دهغه همکارانوپه وروستيوکلونوکې دغه ويله. پلا ن چې زيات احتمال لري‌دهغه اختراع‌وه دشورا دغړوله خوادرايوپه اتفاق سره تأيد شواوپه زياتې علاقمندی سره دآکلينډله خوااومنل‌شو.

وروسته له هغه چې آکلينډ دخپل اقدام په برخه کې‌له ځان سره فيصله وکړه، د۱۸۳۸کال‌دمی په مياشت‌کې له رنجيت‌سنگ‌سره ديوه ملاقات لپاره‌يې‌لاهورته سفروکړ. دلته يوتړون چې د درې اړخيزه تړون په نامه سره يادېږي دجولا ی په ۱۶،دشاه شجاع له خوا اودجولای په ۲۳ ، درنجيت سنگ له‌خواالاسليک شو.

ددغه تړون ترشرايطولاندې شجاع بايددتولې هغې سيمې له دعوی څخه لا س اخيستی وای‌چې‌سکانونيولې‌وه اورنجيت سنگ بايدله شاه‌شجاع سره‌مرسته‌کړې وای چې دافغانستان پاچاهي‌لاس ته راوړي.شاه‌شجاع بايددهغې لارې‌څخه په کندهاربا ندې بريدکړی وا ي چې هغه په ۱۸۳٤ کې پرتللی وو‌په داسې حال کې چې دسکانويولښکرچې مشری يې‌د شاه شجاع‌مشرزوی تيمورميرزاپه غاړه‌وه‌بايد چې دخيبرله لارې په کابل باند ې بريدکړی وای .

يوځومذاکرو‌آکلينډقانع کړچې انگريزانو دسکانوله رهبرنه يوازې دکـا غذ پرمخ دوعدوتوقع کولای‌شوا ی . په حقيقت کې رنجيت سنگ نسبت وتهديدته چې دافغانانوله‌خوااورته‌متوجه ودسوتلج( Sutlej )له ساتنې سره‌چې دانگريزانو

له سيمې سره یې یوه پوله جوړوله، زیات تشویش درلود . یوه ورځ هغه په داسې حال کې چې دهندوستان نقشې ته یې کتل یوسوړ اوسیلی له خولې وا یست او د پیشګویي په توګه یې وویل ، «یوه ورځ به داټوله سره وي (په وینولړلې وی ) : هغودخپل زیات جدي دښمن امیردوست محمدخان له نابودي سره مخالف نه و اوداسې درك کوله‌چې دهغه له برخې اخیستنې څخه انکارښايي انګریزان اړ کړي چې بیاله‌امیردوست محمدخان سره خبرې اترې پیل کړي مګرهغه تصمیم نیولی وچې دسکانوونده په لږترینه پیمانه کې وساتي . آکلینډچې له دغه تردد څخه خبر ودرك کړه چې دغه پلان به حتماً دانګریزانوله خواسرته ورسیږي . له دې امله‌هغه د۱۸۳۸ کال داکتوبرد میاشتې په لومړۍ نیټه په سیمله (Simla ) کې یوه اعلا میه خپره کړه چې دانګر یزانوداقدام لپاره یې دلایل وړاندې کول .

یوځل چې دآکلینډپلان دتباهي‌ساره شمال بربادکړ ډیرلږداسې پیښ شوی دي چې د یوه امپریالیستي اداره‌چې‌اعمال دې‌ددهداعمالو په شان دومره په شدت سره غندل شوی وي . خودغه تقریباً په‌یوه ژبه غندنه‌ترپیښې وروسته وا قع شوه : دآکلینډ پلا ن په لومړي سر کې له لږ مخالفت سره مخامخ شواود برتانیې خلکو په کلکه ددې پلان ملاترو کړ. کرونیکل ( Chronicle ) کله چې وویل « کومه لار چې دبرتا نوي هندد حکومت له خو اغو ره شو ې ده چې افغانستان د خپل شر قي امپراتورۍ دساتنې لپاره یوديوال وګرزوي دمعقول ترین سیاست له احکاموسره برابر ه ده ...» دهغه‌وخت دخلکوعمومي نظرمنعکس کاوه . (۱۸)

دانګریزانوپه عمل کې‌اساسي نیمګړتیا تقریبـاً په تعلیمي‌توګه داوه چې دداسې خلکوله خواطرح شوی و چې د افغانستان په هکله کاملاً یې خبره وو.

دوی په هندوستان کـې دخپلو زیاتوتجربـوله مخې افغا نان لـه هند یانوسره یوشان ګڼلي وو.اودغه تیروتنه دهغوستونزوسبب وه چې وروسته رامنځ ته شوې؛

پورښتینی ملګری پوزین کړی آس دی .
ـافغانی متل ـ

# اووم څپرکی

## «د آ کلینډ حماقت»

اعلیحضرت شاه شجاع به افغانستان ته چی دده دلښکر وله خوا احاطـه شوی وی داخل شي اود بهرنی مداخلې اومفسدانه مخالفت په مقابل کی به یې د برتانوي لښکر له خوا حفاظت وشي ...

د سملې اعلامیه :

و روسته له هغه چی آ کلینډ د دیپلوماسي چاره وکړه ، د هغه سیاست د تطبیقولو ګرانکارته یې چی د ه غوره کړی وتوجه واړوله . فیروزپور (Ferozpore ) «دآزادی دیوه پوځ» دبرابرولـو لپاره دغوسـدې دځای پـه حیث وټاکل شو اوسر هیري فین (Sir HarryFaen) د هندي پوځ اعلی قوماندان دآزادی دپوځ د مشر په حیث مقرر شو . شپږزره افراد په چټکی سره دشاه شجاع د شخصي لښکر دپاره راغونـډ کړه شول چی زیاتره له هغو څخه د جنګیالي پنجاب مسلمانان وو اوپو شمیر یې دنیپال ګورکه (Gurkhas) و و چی د خپلې زړه ورتـیا ارزښت اود خپلو جنګو چړ وقوت یې دنیپال په جنګ کې اثبات ته رسولی واوداشیاد اجیـرو عسکر وپه حیث یې خپله دسر بازی دوره پیل کوله . دبنګال له پـوځ څخه دوولس زروعسکر وددې پوځ شمزی جوړوله او په بمبیې کی پنځه زره مر هټان (Marathas) راغونډه کړه شول چی له خپلو پخوانیو دښمنانو سره مبارزه وکړي :

په زرګونو نابللي شوي انساني ټپوسان اود هندوستان رتلي شوي کارغان په همدې وخت کې دپر اخیدونکي کمپ (لښکر کوټ) پر شاوخوا را ټول ګنډشول : غله، د تریاکو سوداګران ، کاسیرې ،مهتران اوګدایان چې ټول د طلا وشرنګ ته غوږنه بوخ کړي اومنګولو یې دجنګ دډګر دلو ټولو لپاره خارښت کاوه .

په داسې حال کې چې ځوانو ټیټ رتبه مامورینو تر هغه وخته چې د هغوی په کڅوړو کې پیسې موجودې وې عیاشي کوله . دهغوی آمر انو خپل وخت په دربار کې تیر اوه . شاه شجاع چې خپله اوږده ږیره یې په احتیاط سره رنګ کړې وه ، دخپلو پیروانو له یوې ډلې اوږ انده شاه زمان سرراورسیده . وروسته رنجیت سنګ یوزوړمو ږک له ایرنوبریتو او یوې سترګې سره »راغی اووروسته آکلینډ اود انګریزانو مامورین راورسیدل . دغو درودربارونو زیات حیثیت او اعتبار لاره دنو امبر د میاشتې هوا په زړه پورې وه او دسترې ماجرا »په پیل کې روحیات قوي وو . درنجیت سنګ دخپل له امله په چټکۍ سره «د مناقشې تر خوخبرو د توافق غالي ککره کړه . »دکومې فزیو لوژیکي معجزې له امله دتګ برګ سک دماغ وکړای شو چې د بریندې ،تریاکو ، بنګو اودښورا دمخلوط په مقابل کې چې د هغه ورځني خواړه ومقاومت وکړي اویوې سترګې یې (چې تل تکه سره وه ) وکولای شو چې دهغه دمتحدینو ترسترګو اوضاع په وضاحت سره ووینی .

آکلینډ هیله من وچې هغه به سکان راضي کړای شي چې پر افغانستان باندې حمله حمله دوی وکړي ،مګر هغه ته معلومه شوه چې دپنجاب زمرې نه یوازې دا چې علاقه یې نه درلوده دخیبر په تلک ځان بند کړي بلکې دهغه په سیمه کې هر ځای دبرتانوي لښکر ودموجودیت سره مخالف هم و . تر زیاتې مباحثې وروسته ، دسکانو مشر په پیښور کې دیره اکتشافي لښکر له جوړیدو سره موافقه وکړه خو تینګاریې وکړ چې دیر غل ضربه دې په جنوب کې انګریزان متحمل شي .

په دغه شیبه کې خبر راورسیده چې پارسي پوځ خپله دهرات کلا بندي پای ته رسولې ده اود غرب خواته یې په حرکت پیل کړی دی . په دې توګه

فین(Fane) اودهغه لښکرته چې دیرش زره افرادیې لرل نورضرورت پاتې نه شو او پرځای یې سر ویلفبي کاټن(Sir Willoughby Cotton) وټاکل شو او د پلیسو عسکر ویوه احتیاطي فرقه، په فیروزپور کې وساتل شوه .

د ۱۸۳۸ کال د دسمبر په لسمه شاه شجاع اودهغه شخصي سرتیري په مخ کې اوورپسې جنرال کاټن ( General Cotton ) اودلښکرعمده برخه چې تقریباً ۹۵۰۰ افرادیې درلودل ، حرکت وکړ. که څه هم دلښکر سره دملو کسانو شمیر معلوم نکړه شو ، دهغوی شمیر یې له شکه خورازیات واوازترلږه شل یادیرش زره نارینه اوښځې وې. په هندي پوځ کې داکمالاتو خدمات هیڅ نه وو اوانګریزانوله خپل لرغوني دودڅخه دکارا خیستنې له خصوصي سوداګرانو سره معامله کوله چې په لښکر وپسې روان وو. برسیره پردې ، هر انګلیس افسر اوعسکر دنوکرانو دیوه هیأت موجودیت دځان لپاره ضرورت ګاڼه ، یود ټیټې رتبې زیردست منصبداروویل چې دهغه خیمه دهغه داووه سوتنونوکرانو په واسطه لهباده څخه وژغورل شوه. په پای کې هغوچې په لښکرپسې یې پیښې په ځان پیښې راکښلې دهندوستان دخوارکړل شوي نفوس یوټولګی وچې یوشمیر «ماینې» هم پکښې وې کومې چې دجنګ له پاره غوره شوې وې. دغه زوزنده اوکاملاً بې [انضباطه توده دناشاپه اوبې اساسه وپرې څپو ته لویدله اوددې امله چې حتی دبنیادي حفظالصحې دبرابرولو امکانات هم موجودنه وو؛ نودوی دکولرا ، لویې تبې او لکه داري تبې دمنځ ته راوړلو منبع او وسیله ګرځیدلې وو :

په دې وخت کې په هندوستان کې دانګریزانو دپوځ اغیزمنتوب خپل حضیض (تر ټولو ټیټې نقطې) ته رسیدلی و: دسرداګرو په نظر کوم چې دختیځ هندوستان دکمپنۍ په راس کې واقع وو عسکر تر لازمو ربړ ونو څخه څه زیات شی نه وو اوددافسرانو معاشونه دومره کم وو خومره چې دهغوی دژوند سطح لوړه وه. عسکرو د۱۸۲۶ کال دبرما دجنګ راهیسې لږجنګ لیدلی و اودچوڼۍ دوامداره

وظيفې دد ې دپاره کومه مرسته نه وه کړې چې د صاحبمنصبانو او افراد وترمنځ ښه اړيکې منځته راشي .

د لښکرو تنظيم داروپايي مودل په اساس وخو تجهيزاتو يې نقص درلود. پليو او سپرو عسکرو دوا ړه په دروغوندونو کې تشکل موندلی وه چې يو يې اروپايي او دوه يې هندي وو .

افرادو چې د انګريزعنعنوي سرې کورتۍ او سپين پطلونونه يې اغوستي او جګې جغه لرونکې عسکري خولۍ يې پر سرو يې په جګړه کې يوه الهام بښوونکې اوددوبي په تېردوخه کې يوه نامينده کوونکې صحنه تشکيلوله .

توپخانه دنا پيليو نی عصر او زمانې نه دومره وړاندې نه وه تللې . زياتره توپونه آسونو کشول او يو څو صحرايي توپونه دغويو په وسيله وړل کيدل . له بارشوې توپخانې څخه چې ډيره موده په هندي پوځ کې استعماليده کارنه اخيستل کيده : ځکه چې هاتی دافغانـي لوړوسيمو لپاره نامناسب ګڼل کيده او سپکې وسلې چې په آسونو يا کچرو باندې يوړل شي لانه وې اختراع شوې .

که څه هم ښايي دانګريزانو پوځ بهيې مهارتـه وخو دهغه څه پـه پرتله چـې افغانانو يـې ويا رلرلی شو اې دمهارت معجزه بريښيده . په حقيقت کې افغاني لښکر تر احمد شاه بـابـا وروستـه تـر دومـره انـدازې پـورې کـمزوری شوي وچې کوم شی چې د پوځ نوم ورسره ښايي په افغانستان کې موجوديت نه درلود . دجګړ وورځ په کومه کې چې مسأ له دتورزنتوب په واسطه حل کيده تيره شوی وه ؛ له نورضرورياتو څخه چې عبارت وو له انضباط او پلته يېزو توپکو څخه افغانانو له لومړي څخه هيڅ نه درلوده او له دويم څخه يې يوڅوعـد ده لـرل : برسيره پردې ، دکلونو کلونو ، کورنی جګړې ټول ښيان له مينځه وړي وو .

او يوازې دافغانانو دملت پالنې وروستی اثرپاتې واود پخواني شخصي يا قبيله يي وفاداری نه پرته نورڅه نه وپاتې . اميردوست محمد خان چې په کابل کې يې په پريشانی سره انتظار ايسته وکړای شو چې يوازې يو څوزره غيرمنظم

سپاره افرادراتول کړي په داسې حال کې چې قبايلي مشران بيطرفه پاتې وو.

دانګريزانو ديرغل لومړي پړاوونه بې پيښې وو خو په بوککور ( Bukkur ) او شکارپور (Shikarpore) کې له آباسين څخه تر راپورې وتلو وروسته افرادېوه بې اوبو دښتې ته داخل شول او له تندې نه په عذاب شول . (کوچني لرګين بيرلونه چې هغوی ته برابر شوي و وظاهراً په تاريخ کې لومړني رسمي پتکونه وو چې دبولان غاښې ته له داخليدو سره سم پرپوځ اوورسره افرادو باندې دبلوڅي او اڅکزي يرغل کو ونکو له خوا حملې وشوې خو دغه حملې دلوتمارۍ په فکر سره منځ ته راغلې اودومره غښتې نه وې.

دمارچ په ۲۶ ، کويټې ته تررسيدو وروسته لښکرتم شو چې دبمبيي د (صف) رارسيدو ته انتظار وکاږي او سرجان کين (SirJohnKeane) دقوماندان په حيث دجنرال کاټن ( Genera Cotton ) ځای ونيو. په عين وخت کې سرويليم مکناټن (Sir William Manghten) چې دسياسي استاځي په عنوان دهندوستان له حکومت څخه دشاه شجاع دربارته معرفي شوی او الکسندربرنس (AlexanderBurnes) چې دمکناټن دمرستيال په حيث ټاکل شوی ودپوځ سره يو ځای شول :

دغه ټاکني (مقرری) دګډودحالت يوه برخه وه : په رسمي توګه انګريزانو نه پرافغانستان باندې حمله کوله او نـه ورسره په جګړه کې وو خـو صرف يې د يوې متحدې بدرګې په حيث له شاه شجاع سره ملګرتيا کوله . لـه قانونيت سره دانګريزانو علاقه دې ته متوجه شوې وه چې عسکري قوماندانانو پـرتـه لـه عسکري مسايلو څخه په نورو موضوعاتو کې واك نه درلوده : دچاروربښتيني اداره دسياسي افسرانو په لاس کې وه .

ملـکي خدمات چې مسوولیت يې ددغو «سیاسي» افسرانو په غاړه اچول شوی وظاهراً دشاه شجاع تر کنترول لاندې وو خو په حقيقت کې د مکناټن لـه خوا اداره کيده اومعمولاً دافرادو له خوادهغوی دخپلې پريـکړې پـر اساس اجرا کيدل . زياتره له دغوورو ستيو کسانو څخه له ټيټ رتبه افسرانو څخه په عجله سره

راجلب شوي وواو په نتيجه کې جنرالانو وليدل چې دوی محض له د ويم بريد منانو څخه امر ونه اخلي اودې کار يوسخت ځور اويو اوبل ته دساعت تيری موجبات برابر ول :

کله چې برتانوي پوځ دکوزك ددرې لـه لارې خوځيده او خپل تګ يـې د شګلنو دښتوله لارې دکندهار خوا ته پيل کړ ، سيمه ييز وقبيلو ددوی په مقابل کې هم دښمنی زيا ته کنجکاوي وښودله ؛ کوم بريد ونه چې دکو چنيوغازيو د لوله خوا وشول ، هغه تر مخا صمت زيا ت د طبيعي مستی له امله منځ ته راغلل .
زيا ت اوښا ن لـه منځه لاړل ، ځـکه چـې بر خلاف د مشهورې عقيدې که دغه شډل ښا روي د غير مسلـکي کسا نو په لاس کې وي ، نود هغوی په تاوان تما ميږي اودجنګ پـه مـوده کـې لـه پنځـو سو زرو څخه زيا ت پـه لار کـې مړه شول :

ځنګه چې لښکر کندهار ته نژدې شو ، بارکزي وروڼه چې کـندهاريې اداره کاوه لويديـځ ته وتښتيدل اود اپريل دمياشتې په ۲٤ ، شاه شجاع چې مکنا تـن ور سره وپه بري سره ښار ته ننووت . دغه وروستنی سری چې تل خوش باوره و ، ديوه لود هر کلي وعده کوله ، خو ديوه زيات متوجهه برتانوي افسر په قول ، که څه هم دخلکو له ګنه ګو ڼې څخه دا نارې پورته کيدلې چې « ژوندی دې وي پاچا » دا نارې «بيخی دزړه له کومې څخه نه وې . »(۱)

اونه هم د مکناتن په دغه عقيده کې چې شاه شجاع په جنوب کې خلـکو ته منلی ود پلټنې هغه کتارونه چې مشری يې د تورنجنرال ويلشير (Willshre) په غاړه وه او دمې په څلورمه نيټه راورسيدل شريك وو. د هغه څلويښت تنه افراد په جګړه کې اود جګړې په سلګونو ملاتړ کوونکې يې په لارکې وژل شوي وو. په عمومي دول کندهاريان دشاه شجاع ددربار څخه ليرې پاتې وو. څو تنه مشرانـو چې د همکاری لپاره راپر مخ شول ددې لپاره وچې دوفاداری په پرتله يې زيات اشرپيو ته ستر ګې ېولې وې چې مکناتن په زياتې اندازې ويشلې :

له يوې مياشتې تودوخې او د پېچ لهٔ ناروغۍ څخه وروسته، لښکر د جون په ۲۷ د کابل خوا ته حرکت وکړ په داسې حال کې چې يو قوي پوځ يې په کندهار کې د ذخيرې په توگه پرېښود. عسکر کله چې په (۱۲۰) درجې تودوخه کې يې د هغې لوړې سطحې په لور چې تر غزني پورې رسيدله مزل واهه خولې خولې شوي وو او د غه ښار ته له څلر يشت ورځو مزل نه وروسته ورسيدل . په دغه موده کې کومه پېښه منځ ته رانغله . دلته لښکر کوټ د دوست محمدخان ديوه زوی (غلام حيدرخان) تر قومنده لاندې و.

رانږدې کيدونکي افراد دغلېچکيانو له تيت وپرکيت دزو سره مخامخ شول چې په ماشه يي توړيکو سره سمبال وو چې زربې دزې بس کړې او دښار دديوالونو ترشا پهٔ څټ ولاړل .

د جولای په ۲۳، دسهار په درې بجو د انجينرانو يوه کوچنۍ دله شمالي يا د کابل دروازې ته وڅخيدله او هلته هغوی يو ډير ش پاوه باروت ځای په ځای کړل بې له دې چې پيرداران و يې ښ کړي. دباروتو چاودنې دروازه والوزوله او يوه ډير غلگره دله يې پرېښودله چې ښار ته داخله شي . ديوې رسمي وينا له مخې ، په دروازه کې تريو بې لنډې شخړې وروسته « افغانانو په کورونو کې پناه گاه غوره کړه او په صف باندې کله چې داله کوځو څخه تيريده دزې کولې او يـو پـوره انـدازه غير منظم جنگ جوړ شو.» دا دانگريزانو يوه له حقيقت څخه لرې وينا وه. هغه څه چې رښتيا هم پېښ شول د ښار دبشپړې لوټمارۍ تـرحده ورسيدل چې تلفات ددغې لوټمارۍ ښکاره ثبوت دی : پنځه سوه افغانان او له انگريزانو څخه اووه لس تنه مړه شوي وو او کله چې سپاهيان د کـږوزو کوڅو لـه لارې راتـوی شول « تاسو ډير زر کشميري شالونه دقاقم له پوټکي څخه جوړ شوي کـالي او د ښځو جامې زمږز دافرادو په وينو ککړ يونيفورمونو د پاسه وليدل ـ پخپله بيچاره ښځې يې هم په ځينو مواقعو کې په زور سره راکاږلې .» (۲)

دزړه ورتوب خورا څرگندې ښوونې او دوخت تاکنې چې د غزنې د چپاول

ګرې دلې خصلت یې څرګنداوه دوست محمد خان وارخطا کړ کوم چې درلك یې کړه چې یو شمیر پلویان یې ورځ په ورځ ازلزله منځه ځي. هغه یو له خپلو وروڼو څخه جبارخان چې «د پرنګیانو» دوست په حیث پیژندل شوی وولیږه چې له انګریزانو سره خبرې اترې وکړي چې دا یو بې ځایه وروستی کوښښ و. خو دغه حرکت یا اقدام یوازې دومره ګټه ورسوله چې د امیر دوست محمد خان کمزورتیا تأیید کړي .

د جولای په ۳۰، انګریزانو په کابل باندې خپل بریدله سره پیل کړ. دوست محمدخان په ارغندې کې دیره مقاومت هڅه وکړه خو پلویان یې د انګریزانو درانږدې کید وله آوازې سره وتښتید ل او یوازې د پرېښودل شوې توپخانې یو کتارپاتې شو چې د انګریزانو له یوځ سره مخامخ شي چې د غزنې له لوړې سطحې څخه کابل ته په هغوی پسې راته .

انګریزانو چې اراده یې کړې وه چې خورا لوی خطر لرې کړي چې د پیښې له صحنې څخه شاه شجاع ته متوجه و، په چټکۍ سره کپتان اوترام (Capıainoutram) له اته سوه سپرو افرو سره ددوست محمد خان د تعقیبو لو لپاره ولیږه. خو دهغوی تر تعقیب لاندې سرې دسوار کارانو له قبیلې څخه یو تکړه سوارکار او هغه یو ملګری درلود چې حاجي خان کاکړنومیده چې دې یو افغاني مشر وچې پخپله خوښه یې وغوښتل چې دانګریزانو دلارښوونکي په حیث کار وکړي او هغه په دې کار لاس پورې کړ چې تعقیب کوونکي پرته له یوې سمې لارله ځانه سره بوځي .

له یوې میاشتې بې ځایه تعقیب څخه وروسته اوترام (Outram) او دهغه افرادبیرته کابل ته راستانه شول او حاجي خان کاکړد خپلو شکمنو خدمتونو په بدل کې هندوستان ته تبعید شو.

په عین وخت کې انګریزان د کابل دیوالونو ته رسیدلي وو او هلته شاه شجاع دا ګست په اوومه له مکناټن (Macnaghten) سره چې د هغه په څنګ کې و دهغو کوڅو له لارې تلل چې هغه دیرش کاله نه وې لیدلې. جمعیتونه مودب خو چوپ وو او دخلکو دغه دول کړه وړه دیر ژر خوش باوره مکناټن « دشاه شجاع

دخلکوخوشالي اوخواخوزي » تغبیر کړه . خویـوځل بیا یوبل برتانوي افسرچې یاخوزیات دبصیرت خاوندو یاخوزیات نګران و ، هیڅ شی درك نه کړل خو پـه دې پوه شو» چې خلکوخپل تندي تریونیولي وو : په قهر واوغضب سره یې دوی ته کتل . » (۳) هیڅ مشکل پیدانه شو ؛ شاه شجاع یې له کوم مخا لفت څخه پر تخت کښیناست اوسرداران دبیعت له وتیقوسره راښکاره شول .

تـقریباً پـه عین وخت کې یـوبر تـانـوي هیأت دتـورن دې ، ارکی تـاد ( D'Archy Todd ) په امرله کندهار څخه هرات ته لاړ اودکارتوسو پر ځای یې نغدې پیسې له ځانه سره لرلې ؛ هیأت ځینې لارښوونې هم ترلاسه کړې وې چې له یارمحمدخان سره دیوه تړون په لاسلیك کولو کې ترینه کاروا خلي . خوورو-ستني سري چې پر ته له خپل ځان څخه په بل هیچاباندې اتکانه کوله اونورتول کسان یې دخپل شخصیت په هینداره کی لیدل ، دانګریزانو قحطۍ اودانګریزانو یوه مالي مرسته واخیستل ، دزیاتې بسپنې غوښتنه یې وکړه ، زیاتې وعدې یې ورکړي اوهیڅ شی یې ترسره نه کړل . دهغه سیاست په هغه لیك کې چې د پا رس وزیرته یې لیکلی وڅرګندشوی وچې تر دې زیات په څرګندتوګه بیا نیدای نشو ؛ په دې لیك کې لیکل شوې وچې هغه « دبرتانوي سیاسي استازې موجودیت دیوه مصلحت له مخې زغمه کهڅه هم ده ته دده له شان سره دیومناسب پاداش په ور کولو کې هغه په هیڅ شان سره بخیل نه و . » (٤)

په کابل کې دشاه شجاع حکومت چې برتانوي برچې یې دیوه پس منظر پـه شان ترشا ولاړې وې کرارکرار چارې سرته رسولې . مملکت آرام و. دکاندا رانو په فعاله توګه خپله دکانداري کوله ، عسکر و اوسپا هیانو پـه ادب سره حرکت کاوه . انګریزان د افغانانو دبیدرغې میراني له امله زیات تراغیزې لاندې راغلي وو او افغانانو پخپل وارسره له انګریزانونه خوښي ښکاره کوله په تیره بیا دلوبو په برخه کې دهغوی له مینې نه :

آکلیند ددغه دوستی خبر په خوښی سره ترلاسه کړځکه چې دې دوستی هغه

ته داتوان ور کړچي په افغانستان کې پوځي قواوې کمې کړي . له همدې امله وچې په سپتمبر کښې پوځي قطارونه له کابل څخه کندهارته و خوځیدل اوپس له هغه یې هندوستان تـه حـرکت وکړ اویـوه مـیاشت وروستـه جنـرال کین (General Keen) چې پـه دې وخت کې یـې دغـزني بارون (Baron ) و دخیبرد درې له لارې په آس سپور هندوستان ته ولاړ. پهلاره کې یـې لـه کندهاره تـر هندوستان پورې د بمبیې قطارونوته امر کیده چې یوې خواته وګرزی اود کلات دبلوڅو پرمشرمحرابخان باندې بریدوکړي . محرابخان د یوې قـربانی پـه حیث تیا کل شوی وڅکه چې هغه په فرضي‌دول لوازم بند کړي ووکله چې دانـګریزانو پوځ افغانستان ته داخلیده که څه هم پـه حقیقت کې دبـلوچستان بیکاره څمکو تر دې اندازې لږخوار کې شیان برابر ول چې اوسیدونـکي یې دانګریزانو دتیرښدو په واسطه «دوښو اود کوچینو بوټوچې نرمې دنډري یې لري‌خوړلوته اړکړي وو .»

یو دامحرابخان په باوځي عنعنوي زړورتوپ سره لـه خپل ښار څخه د فاع وکړه او«دی چې دخپل قوم مشرو پخپلـه هم له خپل یوزیات شمیر مشرانـوسره توره په لاس وژل شوی و .»

د کلات لهچوړ ولوته وروسته یوګوډاګی مشرنو ازخان د کلات‌مشرو‌درول شو اودښار مسوولیت دیوه سیاسي افسردویم بریدمن لفډي (Loveday) پرغاړه‌شو: دمیسن په (Masson ) قول ، دابایدومنو چې دی دبرتانوي سیاستمدارنـو په برخه کی لږعیني وـدلفډي سلوك حتىٰ د هغه دخدمت چې‌درجه یې راټیټه شوې وه له امله نوواعماقوته زسیدلی و. پههرحال ، دهغه د حکومت موده لنډه وه ؛ دمحرابخان زوی یوبلواوپاروله اوله څوکی نه دنوازخان لهلرې کواوڅخه وروسته یی لغډي مړ کړ. انګریزان په یوه داسې موقف کې نه ووچې خپل غچ واخلي اودبلوچستان ناولې ماجرادیوې‌ما ټې په حیث پای ته ورسیده :

په عین حال کې په کابل کې مکنا ټن ( Macnaghten ) د نوي حکومت پـه جـوړ ولوپیل کړی و. دغه پـلان پهوړمبني پلان پسې وچـی په هـند وستا ن کې

دایالتونولپاره طرحه شوی وچې انګریزانو دیوځای کولوپرځای دهغوی دکمترو لولوغوښتنه کوله . په داسې حال کې چې انګریزانو په بهرنیوچارو، پوځ او قبیلو باندې خپل کنترول تینګ وه، قدرت دسابقه ملکي اداري اوجنایي قانون له مخې دشاه شجاع او انګریزانو ترمنځ ویشل شوی و.

ددوو کسوحکومت په افغانستان کې یوه لویه اشتباه وکړه . څرنګه چې افغانانو دپاچاهي داسرار و اورمز په برخه کې معلومات نه درلود، خویوازې دخپلو پاچاهانو اطاعت یې کاوه ځکه چې هغوی قدرت درلود اوداتولوته چې په هغو کې پخپله شاه شجاع شامل و څرګنده وه چې دشاه شجاع قدرت رښتیاهم د خارجیانو په لاس کې و.

شاه شجاع په تبعید کې هیڅ یوله خپلو ویاړنو څخه له لاسه نه وورکړی اودیوه ګوداګي په حیث یې له خپل نقش څخه سخته کرکه کوله کوم تورچي پرده باندې لګول شوی وچي د انګریزانو پرضد یوه توطئه جوړه کړي په دغه و خت کې اثبات ته نه وه رسیدلی ، خو په دې کې هیڅ شک نشته چې دهغه هیله داوه چې هغوی له دغه هیوادڅخه وباسي : خوممکنا تمن بې له بریالیتوب څخه بل هیڅ شی ونه لیدل ځکه چې سرداران مودب اوقبیلي آرامې وې . کله کله به ځینې خیلونه دستونزوسبب ګرزیدل چې معمولاً په غلزیوپورې مربوط وو؛ خودغسې بغاوتونه محلي وو اوپه آسانۍ سره یې دجزایي عملیاتوپه واسطه یادبډودور کړې په وسیله یې مخه نیول کیده په حقیقت کې کې هلته د انګریزانو په مقابل کې ډیره لږه رښتینې دښمني موجوده وه .

دشاه شجاع په شاوخوادربارپه چټکۍ سره پراختیا وموندله چې له مهمو دراني سردارانو اوپه شمیربار کزیو څخه جوړ شوی وچې ظاهرآیې غوښتل چې دپوپلزیو دلویې غوښتنې بیار امنځ ته کیدل ومنې . دایوه بد مرغي وه خودابدمرغي هرومرو منځ ته را تلله ځکه چې لوړ پستونه د شا ه شجاع ملګروته په تبعید کې ورکړل شوي وو چې په څرګند ډول مصمم وو چې رومبنی په شاتلنې جبیره کړي .

نورمهم شخصيتونه عبارت وو له : بارکزي عثمان خان څخه چې ددوست محمد خان وراره و؛ عبداله خان چې ددراني اڅکزويو مشرو او امان الله خان څخه چې دغلزيو پياوړي ملاك و. دې حالت ته پرازيني خطره ددوست محمد خان پرله پسې آزادي وه . په پرې هڅې کې چې د دې چاره وکړي پرکندك دډاکترلارډ (Dr. Lord) ترقړمندې چې دکابل په هيأت کې پې له برنس ( Burnes ) سره ملګرتيا کړې وه خلم ته واستول شوچې هلته امير دوست محمد خان پناه وړې وه اوله دغه ځايه څخه هغه سمد لاسه بخاراته وتښتيده. هلته هغه د يوه ازبك امير (Uzbeg Amir) له خوا په داسې حال کې بندي شوچې ډاکترلار ددژمي لپاره دستروبرد اګانوترسوري لاندې ځای په ځای کيده اوخپل سرتيری پسې تولی تولی دجزاور کولو لپاره دهزاره ګانودقريو پرضد ليږل چې حاضري نشوې دخپلې غلې لږه ذخيره پرهغه باندې وپلوري .

د۱۸۳۹ کال ژمی په آرامۍ کې تيرشو : انګريزانو ديوميل لوړ کابل لـه تندې هوا څخه خوند اخيسته چيرته چې افغانان په سکيټونو (فلزي ښويدونکې درې چې په بوټانو پورې تړل کيږي او پرکنګل ښويږي ) باند ې دبرتانوي افسرانـو دښوخيدنو لـه امله تراغيزې لاندې راغلي وو۔ چې داد هغوی په لرغوني هيوا د کې يونوی شی و . د برتانوي افسرانو ښځو اوماشومانوسفروکړ چې له خپلو نارينو سره يوځای شي اويوجزئي خوفعال تولنيز ژوند پر اختياوموند له :

په پسرلي کی ناکراري بياهغه وخت راپيداشوه کله چې د کندهار۔ کابل پرسړك باندې نه اداره کيدونکرغلزو ديرعلې نوبوه لړی پيل کړه چې مخه نيول يې ګران و اوهغوی ته جزاورکول ناممکن :

مکناټن چې په دې پسې عقيده دراوده چې دقوې تراستعمال نه لـه بـد وڅخه کاراخيستل ګټور دي، په چټکی سره يې دمادي مرستو يو سيستم منځ ته را وړچې فلزي ملکان يې آرام کړل .

په جولای کی يوخوراجدي خطرپخپله ددوست محمد خان له خوا منځ ته راغلی

ونښي دازبك امير په پټه مرسته له بخارا نه تيښتلی وا و دازبکي سپرو افرادو ديوې ډلې دېدرګۍ په واسطه خلم ته را ورسيد :

دا کټرلارډ سمد لاسه هوسا قواوې وروغوښتلې چې تـر اتوسو وسپا هيانـو پوري ور ته واستول شو ل .

دسپټمبر په ۱۸ ، متحده برتانوي قوه له ازبکانو سره باميانو ته نـږدې پـه يـوه ناوه کی مخامخ شوه چيرې چي شمالي سوار کارانو خپله ‌بې ساری آس سواري ګورته دحر کت په يوه داسې سرعت سره وښودله چی انګريزانو لـه هغوی سره سيالي کول ناممکن وګڼل :

امير دوست محمد خان له دغو متحدينو نه له نامينده کيدلو نه وروسته ، کوهستان ته وتښتيده او هلته ‌يې دسيمې له جنګيالیو تاجکو څخه يولښکر برابر کړ . له کوهستان سره چې پر کابل باندې يې ګوز ارونه کول ، دا انګريزانو ته يـوجـدي اخطارو ، نو جنرال سيل (Sale) لـه دوو زرو عسکرو سره د لارډ مرستې تـه ولـيږ ل شـو :

دنومبر په۲ ، دانګريزانو سپاره عسکر دپروندرې (Parwandarrh) وادي ته داخل شول چې د کابل دشمال تقريباً په شلو يښت ميلی کي پرته ده او اريان پاتي شول چې ددوست محمد خان له لښکر سره مقابله وکړي . قبايلي خلکو چې زياتره پلي وو په بيره ترشاو خو اغرونو پورې خاپورې وکړې او امير دوست محمدخان په داسې حال کي چې دڅلويښتو او اتيا وو ترمنځ ساتونکي ورسره وو ( په هغوشمير پورې مربوط ده چې يو څوك يې اتفاقاً لولي) يوځل بيا يو چيرته پرآس باندې سپور ولاړ .

اميردوست محمدخان اودهغه پلويانو ونښو کړ ای چې دبنګال دسپاره پوځ له دووټولیو څخه وتښتي چې په هغوی پسې په ترات تلل نوبيرته راوګرځيدل او په دغو دوه ټولیو باندې يې حمله وکړه . خوسپرو عسکرو چې ظاهراً «دشيطان دويرې تراغيزې لاندې راغلي وو» ليکې (صفونه ) ماتې کړې اوو تيښتيدل او خپل برتانوي افسران يې پريښودل چې له حملې سره يوازې مخامخ شي . داخ اودب په نتيجه کې ، دا کټرلارډا ودوه تنه دويم بريدمنان ووژل شول او اميردوست محمدپـه

داسې حال کی چې چا نه تعقیبوه دامن لاریې ونیوله . دبنګال عسکرو دیوې بانې له لارې دخپلو تورو کفیت وغنده .

له دغې جزئي فتحې سره سره ، په دې وخت کې دامیردوست محمدخان موقف ډیرخراب و . قبایلي خلکڅ تحریکځ کیدای نشول چې دانګریزانو دثابت پوځ دسرتیرو پرضدودریزي او «امیردوست محمدخان ته ځمکې ځای نه ورکاوه یعنې نا ارامه و . ) له یوې لنډې نښتې نه دوه ورځې وروسته ، امیردوست محمدخان له مکناټن سره په داسې حال کې ولیدل چې هغه پرآس باندې سپوراو دکابل شاوخوا ګرځیده اوخپله توره یې متحیر سیاس استاځي ته وسپارله . (۵)

په دې وخت کې امیردوست محمدخان دانګریزانو په لاس کې وچې هغوی دامیردوست محمدخان په ستاینه کې دومره افراطي وځومره چې دهغه په تعقیب کې ټینګڅ ووچې داکاردشاه شجاع دزیاتې ویرې باعث کیده چې دابه یې غوره ګڼلې وای چې که انګریزانودده په مقابل کی له عملي چال چلند ځخه کار اخیستی وای که ځه هم دهغوی دغه رویه لږځه نمایشي هم وای . رښتیاهم دمحبوس مهر بانه شخصیت او ذکاوت په زیاتې اندازې سره دمتکبراونیولی شاه شجاع شخصیت سره متفاوت وچې له همدغه وخت نه راپه دیخوازیاتره برتانوي افسران چې په هغوکې مکناټن هم شامل و ، په ځرګندډول له خپل نقش ځخه چې د افغانستان دسلطنتي کورنۍ په جګړه یې درلودپښیمانې ښکاره کوله .

امیردوست محمدخان د کابل کې له لنډې مودې تم کیدوروسته ، دسرویلاکبای کاټن ( Sirwillougbbycttton ) په ملګرتیا هندوستان ته فرارشو . دچارو مسوولیت د نوي قوماندان جنرال الفنستن ( GeneralElphinstone ) ترراتګڅ پورې دجنرال صالح په غاړه شو . منقدینو په دلایلو سره ثابته کړې ده چې داد انګریزانو د وتلو لپاره ښه موقع وه ، خو په هرصورت ښایي دانظرپه لندن کی سم اومنطقي وي ، خو داپه کابل کی سست اوبې شباته وچیرې چې مکناټن په دې ښه ځیروچې دشاه شجاع په لاس کی دهیواد امنیت په هیڅوجه له خطرځخه

خو ندي نه و. خو برتانوي اولس چې یو وخت یې د برتانوي حکومت ماجراجویي تایدوله په دې وخت کې د افغانانو «ماجرا» پر ضد دریدلی واو د تورییو (Tory) مطبوعاتو پیل کړی و چې له یوې مسألی څخه چې بې نتیجې بریښید لـه یوه مهمه مسأ له جوړه کړي . برسیره پر دي ، د ختیځ هند وستان د کمپنی مد یران دیوه پوځ دساتنې په لګښت باندې ناآرامه کیدل چې شرایطو یې پر حالت باندې د نومو ړي پوځ د زیات مستقیم کنترول غوښتنه کوله. اکلینډ په دسمبر کې ځینې لار ښوونې ترلاسه کړې چې یا له افغانستان څخه وو ځي یا د برتانوي عسکرو شمیر زیات کړي تر څو چې ریښتینې آرامي ترلاسه شي .

آکلینډ نه له افغانستان څخه راووت اونه یې د برتانوي عسکرو شمیر زیات کړ. هغه دمکناټن په شان شخصاً پخپله په افغاني پروګرام کې لتاړ واو که یو لـه دغـو چارو څخه یې سرته رسولي وای نو به یې دا منلي وای چې په قضاوت کې یې یوه تیروتنه کړې ده. پر ځای یې عسکرو ته امر وکړ چې د بالاحصار یعنې پـه کابل کې د پوځي کلا، له خوندي دیوالو نو څخه راووځي اود ښار پـه نـواحیـو کـې یـوې قرارګاه ته لاړ شي (د شاه شجاع د خوشالۍ په خاطر چې هغه نه خوښول چې د هغوی موجودیت دي د هغه حرام سرای ته دومره نژدې اوسي) او برتانـوي افسران او افرادیې و هڅول چې خپلي کورنۍ ښار ته راولي . شاه شجاع له مرکزنه بهر له مختلفو ملګرو سره راغی چې زیاتر وله هغو څخه مذهبي تبلیغاتو ته کللک تمایلات لرل. دبرنس چې په دې وخت کې د کابل والي وپه قول. «هر سړی دلته راځي او ځانته بړاتیریا (Barataria) جوړوي؛ یوه سړي دیوه اساسي قانون پشنهاد کړی دی، بـل بیا تللی دی چې د ازبکـو پـه منـځ کـې د فساد ځینې لپاره یو انجمن جوړ کړي. (٦)

ددغونوو کسانو له را رسیدو سره سره ژمی بې له کومې پیښې څخه تیر شو او دانګریزانو اشغال تردې اندازې موفقانه معلوم شو چې مکناټن آکلینډ ته د یوه داسې هیواد په باره کې خبرې وکړې چې له دان (Dan) څخه نیولې بیا تر بیرشیبا

(Beersheba) آرام و.» خو، په خفاکې دخلکو دناآرامی راپورته شو او ورونو لمبې کولې؛ او دانګریزانو په مقابل کې دافغانو وضع له دوستانه کنجکاوۍ نه په زیاتیدونکې کرکې بدلیده. شاه شجاع خپل یو شمیر پلویان چې یو وخت یې دهغو دلرلو ادعا کړې وه له لاسه ورکول ځکه چې دا څرګنده وه چې شاه شجاع محض دانګریزانو یو بندي و. دشاه شجاع موقف بیخي زیات مشکل و ځکه چې هغه دآسیایي ددولتي چال چلند دمهارت له عنعنوي طریقو څخه بې برخې و او بې سره پردې د درباریانو له خوا یې په ناوړه توګه خدمت کیده چې هغوی دخپلو ځانو نو په بدای کولو کې هیڅ موقع له لاسه ورکړې نه وه او دوی هر هغه څه چې دهغوی هیواد وال یې خپه کول انګریزان به یې دهغوی دخپګان مسوول ګڼل. په حقیقت کی پخپله شاه شجاع دخارجي سیاسي افسرانو له لاسه په عذاب و چې هغوی دخپلې ځوانـي او بې تجربه ګی په دوره کی سخت زړه توب (بې عاطفګی) او اکثراً سادیزم (Sadism) و ښودل چې ښایې دبرتانوي امپریالیزم په تاریخچه کې بې ساری وي. جنرال ناټ (General Nott) چې په کندهار کی قوماندان و، دطعنې په ډول تبصره وکړه چې د«یو زرو یو سیاستمدارانو رهبري زمونږ داعیه او هدف برباد کړی دی او دهر اروپایې ستونـي یې په دې هیواد کـی دکسات اخیستونکو افغانانو او خونخوارو بلوڅو توري اوچړې ته لوڅ کړی دی.» (۷) که څه هم ددغو بې تجربـو افسرانو له قوت سره دنـات حساسیت هغه دمبالغې خواته راکاږه، خو هغه څه چې هغه وویل په هغه کې ښایسته حقیقت موجود و. دتورن پیټر نیکولسن (PeterNicolson) د اعمالو په شان کـوم چې د درویشت نفرو یوه قریه یې ورانه کړه ځکه چې «هغه فکروکړ چې هغـوی ده ته په سپک نظر وکتل» له یوه عمل څخه داهیله نه شوه کیدای چې دانګریزانو په عدالت باندې دې دخلکو اعتماد راوپاروي:

دکرکې بل علت انقلاسیون وچې دیوې آسانې بې پروایې په واسطه منځ ته راغلی وچې دهغې په واسطه انګریزانو چې دمکناټن لارښوونه یې تعقیبوله

دخپل حکومت پیسې هرې خوا ته لېږي کړې. افغاني سوداګر ددغه بهرني په مقابل کې چې دهغوی ضدیت هرڅه و) خوښ وو چې دهغه طلاوېني په داسې حال کې چې دکابل غریبو خلکو د ترخو نو دجګید وله امله زیات مشکلات وزغمل.

په پای کې د مذهبي مبلغانو د فعالیتونو په واسطه او د عسکر ود فعالیتونو له کبله چې په بې فکرۍ سره یې افغاني زیارتونه وران اوبدبویه کړل، دافغانانو تر منځ مذهبي تعصب وپاروه. له دغه وخت نه پخوا په افغانستان کې غیر مسلمان سیاحین د نورو عقایدو او په تیره بیا د عیسویت د عقیدې په مقابل کې د افغانانو په زغم باندې په تبصره کولو کې همفکره وو: خو له همدغه وخت را هیسې داسې فکر کیږي چې دغه قصه به د کفارو په مقابل کې یو له نه پخلا کیدونکو مخالفتونو څخه وي دکومې له امله چې افغانستان وروسته بد نامشو. (۹)

مکناټن په سپټمبر (September) کې لاړښوونې ترلاسه کړې چې د خلکو نیا رضایتې یې خورا زیاته کړه. دختیځ هندوستان دکمپنی مخفي کمیټې پریکړه وکړه چې ددغې غیر تولنیزې پروژې لګښتونه بند کړي او احکام یې صادر کړي ووچې قبایلي مشرانو ته دې مرستې بندې شي. په هر حال، ښایي مکناټن به ددغې پریکړې پر حکمت باندې شکمن وخو احکام قطعي وو. څنګه چې دغه احکام ورکړل شول قبیلو سمدلاسه دکابل او هندوستان ترمنځ دمکاتبې او مخابرې وسایل کاملاً قطع کړل:

مکناټن زیات د خطر احساس نه کاوه ځکه چې بلو اګانې پخوا پیل شوې وې. او په چټکۍ سره ارامې شوې. سر بیره پردې، هغه دیوه نوي پست په خاطر د بمبیی دوالي په حیث دافغانستان پرېښودلو ته انتظار ویسته. دافغاني ماجرا هیجان ختی ددې پیل کوونکي لپاره دیره موده پخوا بې خونده شوی و.

د ډول آواز له لیرې خوند کوي .
ـ پښتو متل ـ

# اتم څپرکی

# خورد کابل

د اقتصاد په منظور، ریچارد سیل (Richard Sale) ته چې لوړن جنرال شوی و امر شوی و چې له خپل غونډه سره هندوستان ته راستون شي . د اهمدغه لښکرې وې چې په دې وخت کې و لیږل شوې چې کستناکو قبایلي خلکو ته جزا ور کړي او لارې خلاصې کړي :

د اکتوبر (October) په ۹، د گروال مانتیس (Monteith) او د لښکر و یوه مخکښه دله د خورد کابل په غاښي کې چې تقریباً اووه لس میله د کابل څخه بهر پروت دی له یوه کلک مقاومت سره مخامخ شول : په دا بله ورځ له دوی سره سیل (Sale) او غونډیو ځای شو او له دې وروسته وجگړو څخه وروسته، د لښکرو مخکښې دلې لار خلاصه کړه . دوی مخ په وړاندې لاړل چې صرف پنځه ورځې وروسته د نو و بریدونو په وسیله یې مخه و نیول شوه . قبایلي خلکو یعنې غلزو او شینوارو په یوه مهارت او تینګار سره جنګ کاوه چې تردې وخته پورې هغوی نه و ښوولی ، ارتفاعات یې نیول او د انګریزانو په عسکري لیکو باندې یې په ثابت او دقیق ډول ګولۍ اورولې : د اکتوبر په ۲۲ ، هغه لښکر ې چې پر له پسې پرې برید ونه شوي وو په تیزین کې وې چې له کابل څخه له نه ویشت میلو څخه زیات لرې ته دی . ظاهر آبرتانوي افسران نږدې وو چې وارخطا شي : په ټولو روښو برخوردونو کې افغانان د سپرو عسکرو په نامنظمو بریدونو کې

رامخ ته کیدل چې دانګریزانو د پلیو عسکرو دتینګې او ثابتې جګړې څخه دمخه کرار کرار له منځه لاړل. په دې وخت کې جنګي تکتیکونو او عسکري سیمو دوا ړو بدلون مونـدلی وو. قبایلي خلك تکړه غرني خلك وو چې د پسرنه یزو ګرنګو نو په منځ کې تر هر پنجابي چې په اوار و میدانونو کې روزل شوي وو یاله هر بر تانوي سرتیري څخه زیات فعال او تکړه وو؛ هغوی ارتفاعات ور ته نه خوشې کول او دښمن یې تر پر له پسې اور لاندې نیوه. او زیاتره له افغانانو څخه په جزائیلو (غر بینو) او جګګ خولو تو پو نو چې په پایو باندې درول شوي وو سمبال وو چې د عسکر وله وسلو «برون بس (brownBess) (یو ډول تو پك دی) او تاورمکیت (Towermusket) (یو ډول تو پك دی) څخه یې زیات واټن ویشته.

کله چې عسکر د تیزین له خو ندي سیمې څخه وتـل، د جګړلـك په دره کې وربانديې بیاد یو زیات شمیر مو مندو، ساپیو او خو ګیانیو له خوا بریدو شو چې هغوی په جنګ کې د ګډون لپاره له بیرې څخه کار اخیستی و. د انګریزانو وروستنی (پس قراول) پـوځ خو ځلي متزلـزل شو خو داپـوځ د هغه د افسرانـو پـه تینګې غو ښتنې سره یو ځای وسائل شو. وضع دومـره حساسه شوې وه چې مجموعاً ۱۲۰ مـړي او ټپیان تر شاه پر یښـو دل شول. سپاهیـان بې زړه کیـدل او د شاه شجاع افغاني عسکرو په ښکاره له بریدکوونکو سره وروري کوله :

داکتوبر (October) په ۳۰، دسیل غونډ دګندمـك ناوې تـه ورسیده او هلته تم شو چې له کابل څخه خبر ته انتظار و باسي. کوم پیغام چې له مکناټن څخه راورسیده داسې خبرې ورکړ چې ټول کابل راپورته شوی و او غنډ ته یې امر وکړ چې سمدلاسه بیرتـه وګرزي :

سیل چې تېي شوی و دخو نریودرو سره دبیامخامخیدو فکر بې زړه کړی و. دیوې مرمو زې ویرې له امله چې د هغه دلیر او اینده ژوندلـه دورې سـره یـې داریـانتیا ورتو پیر درلو د دافسرانو یو ه شورار اوغو ښتله چې په هغې کې دیوه تورن داحتجاج په بـاب یو ه پـر یـکړه وشوه یعنې چې امـرونو تـه غاړه کښیږدي او د جلال آبـاد خـو اته خپل تـګ ته دوام ورکړي.

سیل الفنستن ته ( Elphinstone ) چې په دې وخت کې په کابل کې قوماندان وه خپل ځواب کې جلال آباد ته خپل تګ دې خبرې ته دګوتې نیولو په واسطه پرځای اوسم وښود چې دهغه حربي مهمات خلاص شوي وو ، دهغه د تېیا نو لپاره ناممکنه وه چې حرکت وکړي ، تو ل اطراف له وسلو څخه ډك وا و په کابل کې د عسکر و پر ځي زیرمې لا رو مبی تر لبي خلاصې شوې وې. دغه خبرې تو لې رښتیاوې خو دالاهم له امرونو څخه د سیل سرغړونه څرګندوي ځکه چې د هغه ښځه اولور لاتر اوسه پورې په کابل کې وه. په هرصورت ، د نسومبر ( November ) په ۱۱ ، غوند خپل تګ ته دجلال آباد په لوردوام ورکړ .

په کابل کې وضع خطرناکه وه. کله چې غوند ښار پرېښود ، ښار ارام وه مکناټن ( Macnaghten ) ځان وتلو ته چمتو کاوه او انګریزانو په خوښۍ سره د رخصتي موسم ته انتظار کا ژه .

که څه هم دوستو افغانانو بیا بیا خبرداری ورکړی و چې خطر ډیر نږدې وا و د انګریزانو مشرانو د هغوی خبرو ته پام نه وا ړ ولی .

د تباهۍ ستر علت چې په پای کې منځ ته راغله د انګریزانو دلیډرشپ زښت ډیر ناوړتوب و په تیره بیا په نظامي برخه کې . نوي قوماندان جنرال ویلیم الفنستن (GeneralWilliamElphinstone) چې د منستوارت (Mounstuart) ناسکه تر وروی و د نا پلیوني جګړ و یو پوخ تجربه کار تقاعدي و چې د نقرص د روماتیزم په ناروغی اخته وا وله اسیا څخه په بشپړه توګه بې خبره و. دګرمن جان شیلټن (JohnShelton) چې د قوماندان مرستیال و په جسمي لحاظ مناسب او شخصاً زړور و خو د شخصیت له بې نظمی څخه یې تکلیفونه ولیدل چې دماغي ګډوډي ته ورته وه .

د دغو کسانو تر قوماندې لاندې بر تا نوي پوځونه تر یوه حده په غیر نظامي حالت کې ځای په ځای شوي وو . د عسکرو قرارګاه په شیرپور کې واقع وه چې اوس د کابل یوه سیمه ده خو په هغه وخت کې تقریباً یو میل د ښار شمال ته غزیدلې وه. د بی بی مهر و تپته غوندی د عسکر وله قرارګاه

ځخه تقریباً زرګزه لري وه چې سریې مستقیماً له کمپ څخه ښکاریده. ګردچاپیره یې کلاګانې وې، یوه له هغو څخه دعسکرو دقرارګاه او دکمیساری تر منځ واقع وه. خزانه اود برنس ( Burnes ) استوګنځی ښکته د ښارپه کنزووزو کوڅو کی وو.

د نومبرپه ۲، ثابته شوه چې د دوستو افغانانو اخطارونه په ښه بنسټ ولاړ وو. دشاه شجاع په دربار کې یو شمیر پیاوړو سردارانو د یو څه مودې لپاره دانګریزانو په مقابل کې د افغانانو مخالفت ته لمن وهله. دهغو ترمشر عبدالله خان و. عبدالله خان د اڅکزیو درانیانو خان و. دی چې یو زړور اوتکړه سړی وو دالکساندر برنس (Alexander Burnes) ځانګړی دښمن ګرزیدلی و. چا چې له هغه سره سرسته کوله هغه امین الله خان اوزمانشاه وو. امین الله خان په قوم غلزی او زمان شاه د امیر دوست محمدخان یو تره وروزی و.

د دغو کسانو توطئه جوړول یو ښکاره راز وچې برنس او مکناټن وربانـدې ملندې وهـلې او ددسیسې لپاره د افغانانو له تمایل څخه خبر وو .
برنس اومکناټن ضمناً یوله بل نه بدوړل یعني او مړ ني له خپل تیت موقف څخه کرکه کوله پداسې حال کې چې وروستي د برنس زیاتره پیشنهادونه په لند واو اندو لبصرو سره ردول (۱)

برنس دیو څه مودې لپاره تهدید کاوه چې یو شمیر درانې مشران به فرار کړي چې هغوی له امیردوست محمدخان سره مکاتبه کړې وه. دغه ګوابښ او ددې ترڅنګه له یو شمیر افغاني میرمنو څخه چې خپل میړونه یې پرېښي وو او غوښتل یې چې له . . . ژوندوکړي، دبرنس ملاتړ، ځینې افغاني مشران دې ته اړ کړل چې دعبدالله خان په توطئه کې برخه واخلي. ددغه حقیقت راپور دشاه شجاع وزیر عثمان خان انګریزانو ته ورکړ. لیکن دځینو دلیلونو له مخې په دې برخه کې کوم اقدام ونشو. د نومبر ( Nouember ) په ۱ ، دانګریزانو جاسوس موهن لال چې لاهم په کابل

کې فعال و د برنس استوګنځي ته لاړ او هغه ته یې وویل چې د افغانانو یو والی په زیاته اندازه پیاوړی شوی دی او مونږ باید د دغه یو والي له نتیجې او اهمیت څخه ویره ولرو. هغه له خپلې خوا کې څخه جګ شو، یو سوړ اوسیلی یې له خولې وایست او وې ویل: «زه پوه نه یم هیڅ شی نه پوهیږم خو وخت رارسیدلی دی هغه وخت چې مونږ باید دا هیواد پریږدو» (۲)

د برنس خبره ریښتیا وه، خو هغه وخت لا رومبی پای ته رسیدلی و. بل سهار سل تنه مسلح افغانان چې مشري یې د عبدالله خان پر غاړه وه د کابل په کوڅو کې په منډه تیر شول او یوه کنجکاوه او جنګیالی ډله ورپسې روانه وه. کله چې هغوی راغلل، یو او بل یې د پاریدلو ډلو په طریقې سره وهڅول او کله چې د هغوی درانږدې کیدو شور او زوږ د برنس چې په خپل استوګنځي کې و ترغوږ شو، نو یې امر وکړ چې د هغه د انګړ دروازې دې وتړل شي او د مرستې لپاره یې مکنا ټن ته یو خبر ولیږه.

دغه ډله په داسې حال کې چې څلریشت نارینه مدافعینو د تیر کښولو له لارې ورباندې ډزې کولې انګړ ته ورسیدو سره سم پیل وکړ چې د انګړ دیوالونو لوتې په لغتو ووهي. هر کله چې هیڅ عسکر ښکاره نشول، هغه شېبه کې چې صرف کنجکاو مبارزین و ګړ زیات او جنګیالي د هغوی و نیو څنګلو ته راو پاریدل. برنس او یو مو ړه چو ښی په داسې حال کې چې مرستې ته سترګې په لار وو چې هیڅکله ورته ونه رسیده، سخت وجنګیدل خو هغوی د ملاسپښین په دوه بجو مات شول. برنس سمدلاسه د توپانچې په یوه ډز سره ووژل شو او پر هیڅا باندې زړه و نه سو څول شو او افغانی میړمنې هغه چې د ننه وموندل شوې هم له دې امره څخه مستثنانه وې.

یوازینی سړی چې ژوندی پاتې شوی و یو افغانی نوکر محمد حسین و چې شپږ ویشت ځایه ټپي شوی و.

دغه جمعیت چې په دې وخت کې یې اعصاب سخت پاریدلي وو پس له هغې څخه د نږدې خزانې خوا ته راوګرزید او له هغې څخه یې ۱۷۰۰۰ سترلنګ پونډه

راویسنل او په بوجی کی یې واچول . دلته دوه تورنانو جانسن (JohrSon)
او تریوور ( Trevor ) ته ضرورونه رسول شو اوورته اجازه ورکړل شوه چې دو
روستني سړي له ښځې او اوو کو چنیانو سره دعسکرو قرارگاه ته لاړ شي . برنس
دښاردوالي په ټوگه دخپل دریځ په سبب او هم ددغې څرگندې که څه هم ناسمې
عقیدې په سبب چې هغه دانگریزانو داشغال په برخه کې مسوول وا و همدارنگه له
افغاني میرمنو سره دپټې ناروا مینې پـه سبب د هغه دبـد شهرت لـه املـه ، پـه
څرگند ډول د خاصې کرکې یو مضمون گرزیدلی و .

د شورش دراپیدا کیـدو پر مستقیم علت پا نـدې لاتر اوسه پو رې منا قشه
روانه ده . انگریزانو ددغ، شورش پړه د عبدالله خان په بدبینی باندې اچوله چې
دهغو ی دتعبیر له مخې عبدالله خان دسردارانو یو ې ډلې ته ویلي وچې هغو ی به حتماً تبعید
شی او یو جعلي لیک یې خپور کړی وچې څرگندونه یې چې دشاه شجاع له خوا او
اوخلـک یې پر برنس بانـدې یوې حملی ته رابلل . افغانانو دکابل دملایانو مشر
یعنی محمدشاه خان د محرك په حیث باله چې په خوب کې یو مرحوم پیر ورتـه
ویلي وچې کافران له دې هیواد څخه وباسي . احتمال لري چې دواړه کیسې څه
حقیقت ولـري خو د جمعیت زیاتـره خلـک بې لـه شکه تـر مذهبي احساساتـو
زیات د هیجان او دخزانې په واسطه چې دیر لږیې ساتنه کیدله پاړول شوي وو.

دمکناټن اوالفنستن دکمزورتیا اوسستي په باب هیڅکلـه دقناعت ور توضیح
نه ده ورکړه شوې. دوی له ښار څخه دپلته ییزوتو پکونو غرس اوریده پر ته له دې
چې خپل هیوادوالو ته دمرستې رسولو په برخه کې کوم گام اوچت کړي شاه شجاع
یوازې دهندوستانې پوځ یو ټولگی ولیږه چې د هماغـه مـاجراغـوښتونکي کمبل
( Campell ) له خوا اورتـه قومنده ورکول کیده کوم چې ده ته یې د هغه په غیر
موفقانه اشغال کې په ۱۸۳٤ کال کې خدمت کړی و. خو په دې وخت کې د ښار
خلك په بشپړه توگه راپورته شوي وو ، هرې خوا ته دښارتنگې کوڅې او کلادو

له ودانی له مسلحو اوغضبناکو افغانانو څخه د کې شوې. تر څو نړی جګړې وروسته، کمبل څو ندي نظامي کلاته عقب نشيني وکړه.

هلته دیو څو ورځو لپاره آرامي وه که څه هم دسلهاووتنو افغانانو بهير له شا وخوا تر یو څخه ښارته راروان شو اوهتي لږونکو خپلې هتي وترلې. انګريزان په داسې حال کې چې باغي سردارانو دموقف لپاره تنګي کوله په خپلې سختې يې علاقګی کې پاتې شول. له زيات استدلال اوبحث څخه وروسته محمد زمانشاه دمشر په حيث وټاکل شو چې داټاکنه دغایب امیر دوست محمد خان په خاطر وشوه ځکه واك ربتيا هم دعبدالله خان اوامين الله خان په لاس کې و.

په عين وخت کې دکابل د پاڅون په تول هیوا دکې خپره شوه اود قبيله يې اورونو شاوخوا د ښاردعوامو چيغه دجنګ یوه ناره شوه. په غزني کې موسی خان چې د سليمانخيلو غلزيو يوملك وعوام راپورته کړل اودانګريزانو قوماندان دګر وال پالمير ( Palmer ) يې دهغه له عسكر وسره نظامي كلاته وځغلول. یو څو ورځې چې تيرې شوې یوه تورن ودبرن (Woodburn ) ۱۳۰ تنه عسکر له ځانه سره واخيستل اوپر سرك باندې يې چې دکابل خواته تللی وراوخوځول چې هلته هغوی ترورروستي سري پورې ووژل شول. په چاريکاروکې دګورکانو ( Gur khas ) اوپنجابي سرتيرو پر يوې قوي چوني باندې دکوهستاني تاجكو له خوا بريدوشو چې مشري يې ديوخان په غاړه وه چې نوم يې خواجه ميرخان و.

مسلمان پنجابيان له يوه تيښګارښود لو نه وروسته، افغانانو ته پناه یوړه په داسې حال کې چې کلکو ګورکانو چې له خپل وطن څخه ليرې اوبيګانه مذهب په منځ کې ووچوني تينګه وساتله. په پای کی جګړن پوټنجر (Pottinger) اوتورن هاګټن (Haughton ) پريکړه وکړه چې په شاه ولاړشي چې دغه پريکړه په ليمه شپه کې عملي شوه پيره داران يې بې خبره پريښودل او په خپلو موضعو کې مړه شول. په لار کې سوروافسرانو خپل ترلي پريښودل چې له دغوخو رانا وړو پيښو څخه وروسته ځان کابل ته ورسوي اوګورکانو دخپل متانت په خاطر

د افغانانو تر چرولاندې دمرګ درانده تلفات وليدل يعنې دخپل مقاومت سخته جزائې وليده. (۳) دا آسانه ده چې دې وتنجر «د هرات اتل» دغه عمل دد غې پيښې دسم درك لـه مخې وغندو. البته دابـايـد حتماً ومنل شي چې بر تـانـوي صاحبمنصبانو په يوه داسې حالت کې واقـع ووچې کيدای شي دغه حالت يـوازې ديوې مجموعي ويرې په حيث وګڼل شي. ميرمن سيل، (Lady Sale) ياپه بـل عبارت يوه تيره ژبې، فصيحه اوبليغه سياسي کتونکې چې بنايي دهغې دپاره به غوره وای چې ځان يې پخپل کنترول کې وای، دخپلو ورځنيو ياد ښتونو په کتابچه کې دلو ړرتبه افسرانو حماقتونـو اودټيټ رتبه منصبدارانو نـاو رتيا (نـا شـا يستګي) او دهغو انعکاس دافرادوپه کمزورې شوې روحيه کې ياد داښت کړي دي. (٤)

په دې وخت کې له افغانانو سره يو نوی مشر يعنې محمداکبر خان يو ځای شو. دی دامير دوست محمدخان تر ټولو مشر زوی او پر خپل پلار باندې ګـران و. دغـه ځـوان سر دارد امير دوست محمد خـان لـه شخصي شفقت اومرحمت څخه برخوردار واودې ترڅنګ يې زيـات استعداد هـم درلود چـې ديوه نـه اداره کيدونکي مزاج په واسطه زيانمن شو. داچې د هغه مورپو پلزايي اودشاه شجاع دملکې خوروه، دامير دوست محمد خان د منلی شوي اوپيژندل شوي وارث پـه حيث يـې دهغه په واك اوځواك کې زياتوالی راووست. (٥)

د اکبر خان له رارسيدو څخه ور وسته پر اردوګاه باندې د افغانانو دبريدونو شمير او شدت ژر زياد شو، په داسې حال کې چې بر تانوي افسرانلاهم زيات زره نازړه کيدل. په دې وخت کې په ښار کې چې ګنه ګو ڼه پکښې زياته وه دخوراکي موادو زيرمې ازې وې او دا د عسکرو لپاره مشکل وه چې خوراکي مواد تأمين کړي د بي بي مهرو غوندی په سر کې ځای پر ځای شو وغاړې بريد کوونکو پر قرارګاه باندې په وارسره ګولۍ اوروله دوام ورکړ او له غونډ څخه يو رابيل شوی ټولۍ چې ددغه ناآرامۍ له منځه وړلو لپاره ليږل شوې وه لته زړه نازړه لاړاودېـو څو افغاني سپرو له رارسيدو سره سم په شاه وتمبيده.

دغه دځنډا وړ ماتې دیوې ناامیدۍ چې خپل اوج ته رسیدلی وه په نتیجه کې منځ ته راغله، چې دافسرانو ورځینې شوراګانې یې ترفشار لاندې ونیولې او کاکه اغیزه یې پرې وکړه. د مکناټن او پوټنجر د مخالفت له امله، دغه افسران سمدلاسه له افغانستان څخه، و تلو او هندوستان ته، لاړل او هلته یې له افغاني مشرانو سره مذاکرې پیل کړې.

دغه مذاکرې دمکناټن له خوا دنوامبر په ۲۵، پیل شوې او ددسمبر په ۱۱، د انګریزانو او تلسو یاغي مشرانو تر منځ یو تړون لاسلیک شو په کوم کې چې انګریزانو وعده وکړه چې دخوراکي موادو دزیرمو او دذخیرو په بدل کې به له افغانستان څخه، ووځي. هیڅ یو لوري قرارداد مراعات نه کړ، انګریزان په کمپ کې پاتې شول او دخوراکي موادو ذخیرې معلومې نشوې.

ظاهراً مکناټن لاهم هیله من و چې ځینې شیان دپیښې له تباهي څخه وژغوري. دغه په دې پوهیده چې افغاني یاغي مشران یو موټی شوي نه وو او دقدرت لپاره د هغوی تر منځ جګړه روانه وه؛ د هندي حکومت دسري او سیاسي څانګې د امر په حیث دهغه داوږدې مودې تجربې هغه دمخفي فعالیتونو د سرته رسولو له طریقې سره په پوره اندازه اشنا کړی و او له بده اوله تو طئې څخه د کار اخیستلو په برخه کې یې ټینګه عقیده درلوده.

د ننه پخپله کابل کې شاه شجاع لاتراوسه پورې له یوه قوي پوځ سره په بالا حصار کې په امن کې و. دښارلس زره قزلباشان د خپلو پښتنو ګاونډیانو مشتاق نه وو او پر انګریزانو باندې په بریدونو کې یې برخه نه وه اخیستې، د هغوی مشر شریف خان کمناټن ته په شفاهي توګه پر له پسې د حمایې وعدې ورکړې خو په دې برخه کې یې کوم اقدام ونه کړ. له یاغي سردارانو څخه یوازې محمداکبرخان مجادله کوله چې دخپل ناموجو دپلار قدرت تر لاسه کړي، محمدزمان خان ځانګړې هیلې درلودې او ځینو له پوپلزیو څخه وړاندیز پیشنهادوکړ چې شاه شجاع دې لږ تر لږه دیوه ټش په نامه پاچا په حیث وساتل شي.

په دغه و مخالفو جريانا تو کې مکناټن له طلا او وعدو سره وخوځيده . دغه دسيسې زر افغانانو ته ، ځرګندې شوې چې هغه غير متوقع دسيسې نه وې ، څو پــه سوء قصد (قتل) کې دهغه ښکاره برخه يالاس لرل يوه بله موضوع وه. دباغي مشرانو د مړو نولپاره مختلفو نا اميدو کسانو ته دلسو يا پنځلسو زرو کلدارو وعده ورکړل شوې وه او هغوی غالباً ددوو تنو يعنې عبدالله خان او مير مسجدي د مړه کــولــو مسئوليت په غاړه اخيستې و. دغه دولفعاليتونو داسې خطرونه را منځ ته کړل چې هرومرو منځ ته راتلونکې وو:

د دسمبر په ۲۲، يو استاځی سلطان خان له يوه پيشنهاد سره چې دمحمد اکبر خان له خوا و د انګريزانو اردوګاه ته پر آس باندې سپور ولاړ. دې سردار پيشنهاد و کړ چې دامين الله خان يعنې د اصلي باغي مشرانو وروستي سرې سر انګريزانو ته وسپاري؛ انګريزانــو په نظر کې درلوده چې داتو مياشتو لپاره پاتې شي ؛ په نظر کې وه چې محمد اکبر خان وزير شي او ديرش لکه کلداری تر لاسه کړي او مکناټن پــه نظر کې درلوده چې په دابله ورځ له محمد اکبر خان سره ووينې او دمعاملې قرارداد مهر کړي .دغه عجيبه پيشنهاد مکناټن تر دې اندازې خوشاله کړ چې دهغه مستقيماً په دغه تلک کې پښه کښيښوده. په سبايې استاځي چې درې تورنان يعنې لارنس (Lawrence) ټرېور ( Treoor ) اوميکنزي(Mackenzie) ورسره ملګري وو پر آس باندې سپور حرکت وکړ چې د کابل سين څنډې ته نژدې وزير اکبر خان ووينې. کله چې ځينو افغانانو شاوخوا ګڼه ګوڼه جوړه کړه کله چې برتانويانو دغزيدل او مکناټن د دغې وضع پــه باب لــه وزير محمد اکبــر خان سره خبرې کولې ، سردار په ځواب کې ورته و ويل ، «نه» دوی ټول پــه دغه راز کې شامل دي . « پس له هغې نــه دتورن لارنس پــه قول ، دغــه خبرې لا تمامې شوې نــه وې چې دمحمد اکبر خان خبره چې ويل يې ، «بګير »واوريــده او کله چې شاوخوا ګرځيده ما هغه وليده چې د استاځي کين لاس يې نيولی وا ورته ويل چې انګريزان زيښت ديسر شيطان او بې رحمه دي . يــوازينــی خبرې چې ما واوريــدې هغه د بېچاره

سر ویلیم د (SirWilliam) خبرې وې چې ویل یې ، «از برای خدا» خوما دهغه مخ ونیده چې په هغه کې دویرې ښې نښامې له ورایه ځلیدلې .(٦)

په داسې حال کې چې مکناټن جګړه کوله هغه دوزیر محمداکبرخان له خوا ووژل شو. ده دمکناټن په وژلو کې له هغه تومانچې څخه کار اخست چې مقتول ورته په همدې ورځو کې ور کړې وه. میکنزي او لارنس ددوو سردارانو په واسطه نجات مو ندلی وو. دغو دووسر دارانو له افسرانو سره مرسته وکړه چې میکنزي اولارنس خپل شاله پرآسو نو پاندې سپاره کړي او په آزادانه توګه دآسونو په پو ند کولو له ګنې ګو ښې څخه په شتاب ووتل. ټورن ټر پوورووژل شو کله چې دهغه آس وښو یده او هغه یې دافغانانو تر چاپرولاندې واچوه .

مکناټن له دې امله دمنقدینو له خوا غندل شو یدی چې په نا وړه ډول ورته کې یې رول دراوداو دهغه همکاران دده تر تګ وروسته دهغه په ملامتولو کې سره یو موټی شو یدي . خو سر جان ویلیم کاي (Sir John william kaye) چې د جنګ تاریخ یې دیوه معتبر اثر په حیث منل شوی دی اود مکناټن زیاتره عملیات تر شدید انتقاد لاندې نیسي ، څرګنده کړیده چې هغه د دادوراوپه ثابتې میرانې سره عمل کړ یدی اودبیرنس یوه تبصره په تـائید سره رانقلوي چې مکناټن یـو دیـر ښه سړی وخو دافغانستان د وضعې په مورد کې عمیق نه و. (٧)

دمکناټن مرګ پـه څرګند دول د وزیر محمداکبرخان د هیجان او جذباتي خوی او خصلت نتیجه وه ځکه چې اصلي پلان داو چې هغه صرف بندي و نیسي که څه هم وزیر محمداکبرخان یو څه موده وروسته میرمن سیل ته وویل چې هغه له خپل عمل څخه سخت پښیمانه واو دغه وژنـه دټولو افغانانو له خوا تائیده شوه چې مکناټن یـې دانګریزانو دا شغال لپاره داصلي یالـومړني مسوول سړي په حیث ګڼله .

کله چې انګریزان دمکناټن له سرنوشت څخه خبر شول چې بې سره ټنه یې په یوه پایه کې ځو رنده وه او په بازار کې خلکو ته ښودل کیده ، هغوی په بشپړه

توګه بې زړه او بې همته شوي وو؛ ځکه چې له مشرانو څخه یوازې همدې استاځې هو داوتوان ښکاره کړی و. د هغه پر ځای پوتنجر دلوړ سیاسي منصبدار په حیث مقرر شو چې وروسته بیا ورته مشوره ورکړل شوه چې هندوستان ته د پوځ و یستلو لپاره له وزیر محمد اکبر خان سره بیا د سولې خبرې اترې پیل کړي. پوتیجر تر یوې اندازې پورې دغه دنده په احتیاط سره سرته ورسوله او دافغانانو صر یحاً پښیمان مشر له یو تړون سره موافقه وکړه (چې جګړه او مخالفت پای ته ورسوي او له لانجې او دښمنۍ څخه لاس واخلي.» (۸)

دجنوري په ٦، دانګریزانو ټولې قطعې (پوځ، دمذهبي مبلغانو دلې، ښځې او غیر نظامي خلک چې په اردو پسې روان وو) کابل پرېښود او دهندوستان خوا ته وخوځېدل. هو اصافه وه خو دیره سره وه. دپوتنجر دغه معقول پیشنهاد چې عسکر دې په پوستینچو سمبال وي او دهغوي پښې دې په لتو بساندې تړلې وي دا ردوله خوارد شو.

له دې امله، دسهار په نه نیمو بجو په داسې حال کې چې له سړو څخه ریږدیدل په سړك باندې روان شول چې ځانونه وباسي.
مجموعاً د هغوی شمیر لـه ۹۷۰ تنه هندي سپرو عسکرو، ۲۸٤۰ تنـه هنـدي پـلیو عسکر واو ۶۹۰ تنه اروپایانو سره ٤۵۰۰ افـر ادوو. تقریبـاً دولس زره غیر نظامـي خلك تر شا په پوځ پسې را اخښیدل.

د صمیمي افغانانو د خبر داریو سره سره چې هغوی ته یې توصیه کړې وه چې یې له کوم ځند څخه مخ په وړاندې لاړ شي، د هغوی حرکت بطي واو قرار ګاه فقط شپږ میله له کابل څخه واټن درلود. په حقیقت کې دشاه ګـارد ونشو کـړای چې دسهار تر دوو بجو پورې راورسیږي.

دبلې ورځې مارش سبا وون مال پیل شو چې په دې مارش کې غیر نظامي خلك هم وو چې هغوی عسکر تیله کـول او دهغوی لـه منځ څخه تیر یـدل چې د هغوی د ویرې په حالت کې د پنجابیانو شپږم پلی پوځ هم ورسره یو ځـای شي.

پوځ چې ددغه پکو شوي (قار يدلى) جمعيت په واسطه گرندى شوی ودما سپښين په يوه بجه بتخاك ته ور سيد. دلته داپوځ له محمداكبر خان سره مخامخ شو. ددولته له پوځ څخه وغو ښتل چې ودريږي او ترينه يې تقاضا وکړه چې پوتنجر ، لارنس اومکنزي ورته دير غملو په حيث وسپاري. بله خطرناکه شپه چې هغوی وليده داوه چې اردوپه واوروکې له سرتيروسره يوبل دپاسه کوټ شول چې هغوی خپلې خولي سوځولې چې ځانونه تساوده کړي او ددې لپاره چې کالي واغوندي غير نظامي خلك يې چې په پوځ پسې روان ووبربند کړل.

په دريمه ورځ، پوځ دخوردکابل په غاښي کې چې له کابل څخه نقط دولس ميله لرې دي کوزوزولار. دغه غاښي چې دخوردکابل دسين په واسطه توږل شوی دی دبرجونو په شان دجگوکمرونو ترمنځ اوه ميله اوږد غزيدلی دی چې اوسپينه اودمرمر وديرې لري؛داپه هيڅ ځای کې له دوه سوه گزه څخه زيات سورنه لری او سرك چې له سين سره کوزوزځي درويشت واره په سيند کې تيريږي.

کله چې کرخ شوي انگريزان دغه تنگي ته داخل شول ، دوی دشا له لرری دسپرو دلو چې په تراټ سره يې آسونه په هغوی پسې ځغلول اوله ارتفاعاتو څخه ترسختې حملې لاندې راغلل او هلته به قبايلي خلکو ځانونه تيټول او د انگريزانو پرجمعيت باندې به يې ډزې کولې .

څو تنه افغاني سرداران چې په هغوی کې وزير محمداكبر خان هم و دپوځ له مخکښانو سره پر آسونو باندې سپاره وخوځيدل او خپلو هيوادوالو ته ورغلل او له هغوی څخه يې وغوښتل چې ډزې بس کړي خو دا يو بې فايدې کارو. (۹)

دخلکو دوژنې کار تر هغې چې شپې يوه زړه سوانده تياره دوام ومونډ دداسې ورځ تر هغې چې شپې يو ه زړه سوانده تاريکې له ځانه سره راوړه خودشپې ساړه بيرحمه و. په خوردكابل کې له د روزروڅخه زيات جسدونه بربنداوکرخ پراته وواوتقريباً ددسپلين توله نښانې نښانې له منځه تللې وې. البته دادهمدغې ويرې اوهيبت دساعتونو په ترڅ کې و

چې یو سو رسرې آ یرلنډ ی په پټه د یو منصبدار خـوا له چې پـه لاره تیریـد ه دجنګ لهیوې کلا سیکې تبصر ې سره را وګرزیده . «صاحبه ! اجازه را کړئ چې ووا یم . آیا دغه هیواد بر خلاف دنورو هیواد ونو نه دي ؟ » ځینو له سر تیرو څخه خپل آسو نه بنځوا و کو چنیانو ته ور کړل اویوه چې په کاري دول تپي شوی و خپل پلته ییز تو پک یوه ملګري ته ور کړاو ورته ویل یې ، «تبنته ، وروره تبېته : «داد حکو مت مال دی : »

بل ګهیځ تر لمر خر ك دمخه ژوندي کسا نوامر ته بې له انتظارا یستلو څخه مخ په وړاندې حر کت و کړ . ژرهلته دوزیر محمد اکبر خان په مشرۍ د افغا نانو دسو روافر ادویو لښکر را ورسید . څر نګه چې وزیر محمد اکبرخان ونشو کړای چې قبایلي خلـك کنټرول کړي نو یې ا نګر یزي میر منو او دهغوی میړونـو له مشو ره ورکړه چې لههغه سره لاړ شي : دهغه پیشنهادومنل شواوهغه افسران چې دهغوی ښځې له هغوی سره په لار کې ملګر ې وې لههغه سره لاړل . (۱۰)

لهدغه ستو مانه جمعیت څخه چې کاړې واړې روان ودغه قطعه (Forty-Fourth) (Queens Regiment) راو وتله چې د پنځمې بومـی سپرې قطعې ( FifthNative Cavalry) تقر یباً پنځوس کتارونه ورسره یوځای شي : دوی په داسې حال کې چې دهغوی اودپوځ داصلي بر خې تر منځ یې فـاصله اوږدوله ، خپل تـګ ته دخاله جبار * خواته دوام ور کړ چې له خورد کابل څخه پنځه میله هاغـې خوا ته پر وت دی . پاتې کسانو په داسې حال کې چې قبایلي خلك یې چې په ارتفاعاتو کې سره غونډ شوي ووځارل ، په احتیاط سره خپل تګ ته ادا مه ور کـړه . دخورد کابل په منځ کې انګریزان ترغی تره کی (Targh-i-TaraKi) ته راغلل چې دا یو وړو کی تنګی دی چې فقط پنځوس فټه اوږدوالی او لس فټه سورلري : څرنګه چې دوی په دغه تنګ معبر کې سره تول شول ، قبا یلی خلکو د هغوی خوا ته د ډېرو په ځیر هحوم راوړ ؛ انګریزان چې په دغه تنګه دره کې را ګیر شـوي وو تقریباً

---

* لیکوال په متن کې دقبرجبار کلمه روړی ده د داکلمه قبرجبارنه بلکې خاك جبار ده . (مترجم)

تول تباه شول . یوازې یو څو تنه پلوندوځانونه له منځه وا یستل اوبیره یې وکړه چې په خاك جبار کې له مخکښې یوځ سره یوځای شي .

په بله ورځ دغو ژوندیو کسانو له د ګرمن شیلټن (Shelton) سره چې دشا یوځ ته یې قومنده ورکوله او په میړانه یې قبایلي حملې دفع کولې عقب نشیني ته دوام ورکړ دوی ماسپښین جګدلک ته ورسیدل اوپه یوه ورانه کلا کې یې ځانونه خوندي یا په آمن کې کړل. دلته دوی له وزیر محمداکبرخان څخه یو پیغام ترلاسه کړ چې غوښتل یې چې شیلټن اوتورن جانسن (Jahnson) د هغه قرارګاه ته ورشي او څرګندوله یې چې نبایي مړکیدونکې جنرال الفنسټن له هغوي سره ملګرتیا وکړي . هلته په قرارګاه کې یې لهغلزیو ملکانو سره چې یرغلګر وقبایلي خلکو ته یې لارښوونه کړې وه یومجلس کړی و. وزیر محمداکبرخان په څرګندو تول شیان په خپل قدرت سره سرته ورسول چې دغه مشران وهڅوي چې بسر یدونه بس کړي ؛ کله چې یې هغوی د خپلو خلکو مخه نیولی شوای؛ نو یو درانی سردارمحمدشاه خان به هغوی ته ۶۰۰۰۰ کلداري ورکړی وای .

د وزیر محمد اکبرخان نفوذاو کلدارې دواړه بې فایدې وځکه چې ملکانو کاملا[۲] بې وسې وو چې خپل خلک کنترول کړي. دیوې بلې ورځې له پرله پسې حملو څخه وروسته انګریزې مخ په وړاندې لاړې او اویا تنه ټپیان یې ترشا پرېښودل؛ یوځو میله چې وړاندې لاړې ، چاوربانديې ډیری ونه کړه یا هغوی ونه ربرول شول ؛ پس له هغې هغوی یو بل وړوکي تنګي ته راغلل چې دا دیوه اغزن مورچل په واسطه بند شوی و. قبایلي خلک بیا د یرغل لپاره سره راتول شول ، په داسې حال کې چې زیاتره چیغې وهونکې غیر نظامي خلك دقاریدلي عسکرو په واسطه کم شوي وو. زیاترو سپرو عسکرو دا موقع ترلاسه کړه چې وتښتي ځکه نو دهغوی د پسا ملګرو له خوا وربانديې پرله پسې ډزې وشوې.

ځینې له قوي اوهودي عسکرو څخه په دې بریالي شول چې په سنګرو باندې وخیږي اود جلال آباد خوا ته خپل تګ ته ادامه ورکړي . شل تنه افسران پاتې

و واوله‌دوی سر ه د اروپایي له‌څلو رڅلو یښتمې (Europeen Forty Fourth) قطعې څخه، پنځوس افر اده او دهارس ار تیلري (Horse Artillery) قطعې څخه‌شپږتنه‌او غیر نظامي خلکو څخه تقریباً دري سوه تنه هم پاتې وو. نوموړو ارقامو دبقا په میکانیکي اجزاو (mechanics) باندې پـه‌زړه‌پورې رڼا اچوي کـه‌ره او داساسي هدفونو په‌حیث‌دهغوی دوضعې په‌باب دغو رلپاره د منصبدارانو شمیر خورا زیات دي .

دغه، کوچنۍ ډله مخ په‌وړاندې لاړه کـه څه‌هم د دوی‌حرکت د هغو کسانـو په واسطه سست کیده چې نه‌یې غوښتل چې خپل ټپیان تر شا پریږدي . دوی‌ګنډ ملک ته نږدې دیوې غونډۍ دپاسه‌مقاومت‌وکړ. دلته جګړن چارلس ګرفت (Charles Griffith) د عقب نشیني یواځې‌ادپوځي‌لیکي یوازینی پاتې افسر لـه‌غلزي‌مشرانـو سره له‌جګړې څخه‌د لاس اخیستلو دشر ایطو په‌باب د هغوی‌دژمنې‌او وعدې‌تضمین یې‌وکړ چې پاتې ژوندي‌یو کسانو ته‌به اجازه‌ورکړل شي چې خپل تګ‌ته دوام‌ورکړي او څولـ‌به هغوی‌ونه ربړوي :

خو وروسته له هغې له قبایلي خلکو څخه یوه تن هڅه‌وکړه چې‌له یوه‌عسکر څخه یو پلټه ییز توپك په زور اخلي او هغه‌وو‌ژل‌شو چې په نتیجه کې د هغه دقبیلې پاریدلو خلکو دغه‌کوچنۍ ډله خچ پچ کړه. یوازې یو څو تنه د ملکانو دهلو ځلوله لارې د بندیانو په توګه‌نیول‌شوي‌او چې‌یواه هغو څخه‌یو بریدګی‌و چې‌هغه د امریکاملي‌بیرغ له ځانه تاو کړی‌واو ځانې یې یو مهم سړی ښودلی‌و.

په عین وخت کې‌له‌سپرو عسکرو څخه‌یو څو تنو جنګ کړی و اود فتح آبادخوا ته پر آس باندې په‌تر اټ تللي وو‌یعني یوه قریه چې فقط شپاړلس میله له پناه‌ګاه څخه لرې پرته وه . له دغو افرادو څخه شپږتنه قریې ته‌ورسیدل او پنځو تنو یې پـسې‌یکړه وکړه چې استراحت‌وکړي‌چې ددې خبرې مانساداوه چې‌دتل لپاره پـاتې شي : شپږم یې د جراح یو مرستیـال چې بر ایـد ن (Brydon) نومیـده خپل ستومـانـه

ټټولې په مترو که وواهـه او کلاته چې په جلال آباد کې وه د انګریزانو د تباهۍ له خبر سره نښوت . ٭

پـه داسې حال کې چې د کابل د پوځ عسکر پـه کنګل شوو کوتلونو کې مړه کیدل ، جنرال نـاټ(Natt ) چې یو تو ند خو په سړی و په کندهار کې د انغانانو بریدونه نسبتاً په آسانۍ سره په شا وټمبول : دلته افغانانو له خپلو عنعنوي تکتیکو نو څخه کار وانخیست چې مخه یې هغو عسکرو په آسانۍ سره و نیوله چې هغوی له پـه مهارت سره لاربښوونه شوې وه او سره هـ وادهغوی پـه لار کې خنډ نه وه ګرزیدلې . همدا ډول جنرال سیل په جلال آباد کې ځان ټینګ کړ چې د دیوالو نو او د کلـکو جنګي کلاو په مقابل کې دافغانانو د معمولي ناټوانی په واسطه خوندي وساتل شو : (۱۱)

د کابل د تباهۍ خبر پـه لویـې بریتانیې کې دخلکو د احساساتي نارو سوروموجب وګرزیده او د ویرې یو تکان یې منځ ته راوړ او د ملبورن ( Melluorn ) د کمزوري حکومت په سقوط کې یو کوچنی عامل و : ټوریانو ( Toslno ) چې پیل ( peol ) ورتـه لاربښوونه کـوله په اغیزناکه او فصیحه ټوګه په لوړ آواز ویلې چې دا یوه پوچه او بـې ماناویـره ده چې روسان د افغانستان لـه لارې پر هندوستان باندې

٭ برایډن چې یو «دښه مخ اوغوندیدن خاوندسړی » و اکثراً د کابل د جنګ د میدان د پوځ دیوا زیني ژوندی سړی په حیث پیژندل شوی دی یعنی یوازینی سړی چې د جنګ په ډګر کې ژوندی پاتې شوی وهغه برایډن ( Bryden ) و . دغه خبره له حقیقت څخه لرې ده . برسیره پر هغو کسانو چې وزیر محمد اکبرخان یرغمل نیولي وو ، یو شمیر عسکرچې د مهربانو افغانانه خوا حمایه شوي وو او ورته پټ ځای ورکړ شوی و وروسته ځانونه کلاته چې په جلال آباد کې وه ورسول . پـه سلها وو عسکرو او غیر نظامي خلک چې د بندیانو په توګه نیول شوي وو څه موده وروسته مسترد شول او د کلونو لپاره د نورو راتګ د افغاني ساحل تر شاسیمو څخه دوام ومونډ . برایډن چې کاري ټپي شوی و ، پناه ګاه ته له رسیدو وروسته دیو څو ګړیو لپاره غږ پیدا ی نشو . د هغه لومړی خبری د هغه د آس په برخه کې وی چې یوه سرتیری ورته په خورد ډبل کې ورکړی و دامړو . له ژوندي پاتې کیدونه وروسته له کابل څخه د پرشا تلتې په تباهۍ کې هغه د سپاهیانو په شورش (Sepoy Rebellion ) د لـکنهو ( lucknow ) د کلابندۍ یوله ژوندیو کسانو څخه ویعنی د ارښتیاهم د هرچا لپاره په کافي اندازه یوه ماجراوه .

برغل کوي. تر انتخاباتوورو سته نوي حکومت په چټکۍ سره آکلینډ (Auckland) ته خبرورکړچې په نظر کې وه چې دهغه پرځای بل وټاکل شي اودهغه جانشین لارډایلنبورو (Lord Ellen borough) به د ۱۸٤۲ کال په پسرلي کې راورسیږي .

دادآکلینډ لپاره وروستۍ ضربه وه . دده په برخه کې یې خورداسې ویلی دي ، چې له افغانستان نه ددې خبرپه اوریدوسره هغه لس کاله نور هم زوړ شوی و. هغه دحالت دښه کولو په برخه کې کوم ګام پورته نه کړاو دایلنبوروورا رسیدوته یې انتظارکاږه اویوازې یوه مفکوره یې په خپل مغز کې درلوده او هغه داوه چې هندوستان دتل لپاره ترك کړي .

ایلنبورود ۱۸٤۲ کال دفبروري په ۲۸ ، کلکتې ته راورسید اودمارچ په ۱۵، دآکلینډدسیاست بدلون یې داسې اعلان کړ: «که څه هم دافغانستان پرالاس له راوړل ممکن وای دغه لاس ته راوړنه به له مونږ څخه دپیاوړتیا پرځای دکمزورتیا یوه منبع جوړه کړي . سره له دې هم دغه وضع له مونږ څخه تقاضالري چې دخپل نظامي وقاراو شهرت داعادې لپاره افغانانو ته ځینې اخطارونه اوغوڅې ضربې ورکړو.» (۱۲)

ددې لپاره چې دغه وروستي نظامي هدف ته ورسیږي ، دوه برتانوي پوځونه افغانستان ته ولیږل شول ، یو یې نات دمرستې لپاره چې په کندهارکې واوبل یې دخیبرغاښې له لارې جلال آباد ته . پس له هغې د ایلنبوروراراده متزلزله شوه او دمې په ۱۷ ، هغه برتانوي قواوته امروکړچې پرشاولاړې شي . زیات خپګان اوقارهغه وپاراوه چې یوځل بیا پرشاو لاړشي اونات ته یې اجازه ورکړه چې دکابل له لارې ځان وباسي په داسې حال کې چې په جلال آباد کې پوځ دهغه دملاتړلپاره وخوځیده .

په عین وخت کې افغاني چارې تر پخوا لږګډې وډې نه وې. په داسې حال کې چې وزیرمحمد اکبرخان سیل په جلال آباد کې کلا بند کاړه ، په کابل کې د زمانخان اوشاه شجاع دپلویانوتر منځ مخامخ جګړې شدت وموند. په داسې حال

چې جنګ غیر قاطع واو په داسې حال کې چې دواړه کسان دوزیر محمد اکبرخان دمخ پر زیاتید ونکي شهرت څخه ویریدل ، هغوی یوې موافقې ته سره ورسیدل په کومه کې چې زمانخان دوزارت په بدل کې شاه شجاع دشاه په حیث ومانه. وروسته له هغه شاه شجاع په احتیاط سره وزیر محمد اکبرخان ته دسردار سردارانو (عمومي قوماندان) پست ورکړ؛ خووزیر محمد اکبر خان چې په ټرون کې یې دادخپل شخصي واك یاقدرت اودخپل پلارد مرام لپاره یو ګوابښ ګاڼه ، ددغه پست له منلو څخه تېرشو چې شاه شجاع جلال آباد له راشي دده وکړه چې په ظاهري دول دوزیر محمد اکبرخان غوښتنو ته ځواب ورکړي خو په حقیقت کې یې غوښتل چې هیواد ترك کړي چیرې چې هغه خپل مقصد ته درسید وامیدنه درلوده . کله چې شاهي موکب له کابل څخه روان شو ، دافغانانو یوې پارټۍ چې د شجاع الدوله له خوا ورته لارښوونه کیدله ورسره وکتل اوشجاع الدوله دزمانخان یو زوی وچې پاچا یې په ګولیو سره غلبیل غلبیل کړاو په خوا رګمونکي توګه یې دهغه مړی په یوه لښتي کې وغورځاوه .

دغه عمل دهغوی دورستیو مشرانو چې هغوی یوځو کاله پخوا دافغاني ماجرا پلان په فیروز پور (Ferozepore ) کې طرح کړی وپای ته رسیدل څرګند کړمکناټن ، برنس اوشاه شجاع ووژل شول؛ آکلینډ په رسوایي کې ځان وایسته ، رنجیت سنګ مړشوی واولادمخه تر ینه یوه افسا نه جوړه شوې وه. شاه شجاع دکلک انتقاد لپاره یوه موضوع ده چې دانګریزانو او افغانانو له خوا پرې ورته انتقادونه شوي دي ؛ خودابايد په بې طرفانه دول وویل شي چې هغه یو کلك ، باهمته او پوه سړی و. دهغه ناکامي چې حتمي وه څه ناڅه دهغه دخوراز یات غرور نتیجه وه خودناکامي ستر علتونه یې دبارکزیودښمني او دانګریزانو دګوداګي په حیث پخپله دشاه شجاع ناممکن رول وو.

په داسې حال کې چې افغانانو په کابل کې دقدرت لپاره مجادله کوله . برتانوي لښکرو دښارخواته دوړانسدي تګ لپاره تیاری نیوه دآګست په ۹ ،

جنرال ناټ کندهار تخلیه کړ او له دوه اروپایي او شپږ هندي لیواګانو سره د کابل خواته روان شو؛ یوولس ورځې وروسته، جنرال پالک (General pollock) له یوه لښکر سره چې ۹۰۰۰ تنه عسکر یې درلودل له جلال آباد څخه حرکت وکړ او دهغې لار پر اوږدو روان شو چې پر هغې باندې په بې رحمانه توګه د انسانانو هډوکي پاشل شوي وو. د سپټمبر په ۱۳، وزیر محمد اکبر خان په تیزین کې مقاومت وکړ خو په آسانۍ سره دانګریزانو له خوا مات شو چې هغوی د رومبنۍ ژمنۍ تر خو خاطرو په قهر او په غضب کړي وو. هرې خواته هډوکي پراته وو، «ځینې په داسې توګه تر پرښو لاندې دلې شوي وو تا به ویل چې له ساره باد څخه پناه غواړي. » (۱۳)

دوه ورځې وروسته پوځ کابل ته داخل شو چې اوسیدونکي یې پکښې نه وو یعنې خالي و، پس له دوه نورو ورځو څخه له کندهار څخه پوځ راورسیده. یو له لومړنیو هدفونو څخه د وزیر محمد اکبر خان د بندیانو ژغورنه وه چې په بامیانو کې ساتل شوي وو. د قزلباشانو مشر خان شرین خان په خپله خوښه دې ته حاضر شو چې هغوی له بند څخه خوشې کړي نو له شپږ سوه سپرو افرادو سره د بامیانو د درې خواته په تراټ سره لاړ. دغه سفر غیر ضروري و ځکه چې دهغه له رارسیدو نه دمخه افغاني منصبدار چې د بندیانو د ساتنې دنده ورته ور کړل شوې وه بندیان د ۲۰۰۰۰ کلدارو د یوې وعدې په مقابل کې آزاد کړي وو. یودیرش افسران، لس ښځې، یوولس کوچنیان، دیره ملکي کاتبان او دوه پنځوس عسکر د کابل د جنګ د ګرپوځ له منسوبینو څخه پاتې وو چې ټول یې انګلیسان وو!.

پرته له کسات څخه هیڅ شی باقي پاتې نه شو. لښکري له کابل څخه بهر په لښکر ګړت کې ځای په ځای شوي او ښارته له داخلیدو څخه منع کړل شوي وي او ورته لارښوونه شوې وه چې په مودبانه توګه چلند وکړي - دا یو سیاست و چې ځینې له اوسیدونکو څخه یې لږ لږ بیرته راوستل. پس له هغې ناڅاپه عسکرو ته امر وشو چې کابل وران کړي او هغوی دا کار په بشپړه توګه سره سرته ورسوه، یوازې د قزلباشانو کورونه یې پریښودل. د کابل بازار چې په منځنۍ آسیا کې دیر ښکلی

ښار ګټل کېده په مینو نو سره ډېرې وړې اووسوځول شو ، همداو ګه د علي مردان جو ماټ هم وسوځول شو . یوځو او سیدونکو دودانیو دنړیدلو لـه امله ربړونه او کړاوونه وزغمل ، لکه څنګه چې «هر دول له شرمه دك تیری وزغمل شو چې په دې ښار ګوټي کې روان و . » (١٤)

بر سیره پر دې ، یـوقوي ځواك د جنرال ملك كاسكیل (Mc Caskill) تـر مشرۍ لاندې داستالف ښار ګوټي ته ولیږل شو چې د توټ ګڼ شمیرونې لرلې او زیات شمیر کډوال یې لرل چې له کـابل څخه راغلي وو . دلته هر ناړینه چې د بلوغ له سن څخه اوښتي و ووژل شو ........ دځوان نیول د چمبرلـیـن ( Nevillechamberlain ) په قول ، »ژړاګانې اوزارۍ بې فایدې وې ، دافغانانو دژړاګانو اوزاریو په مقابل کې د انګریزانو یوازینی ځواب دهغوی کـلك قسمونه وو ؛ پلته یېزتوپـلك تصدآرا واخیستل شو ، ماشه کش شوه اونیکمرغه هغه څوك چې ووژل شو .... په حقیقت کې مونږ هیڅ شی نه یو خواجیر وژونکي یو . » (١٥)

پوځ له استالف څخه له وتلو وروسته په چاریکاروباندې بریدوکړاوهغه یې ویجاړ کړ ، خپله له وحشت نه د که وظیفه یې پـه مهارت سره سرتـه رسولې وه او خوشحاله بیرته راګرزیدلی و . په کلیو کې له قربانیانو څخه یوڅوتنو لـه هغو قبایلي خلکو سره چې په کوتلو نو کې بریدکړی وار یکې درلودې :

پوځونه له انګریزي پوځي وقار سره چې په دې وخت کې خلکو باورکاوه چې اعاده شوی دی ، داکتوبر په ۱۲ ، هندوستان ته وخوځیدل او له ځان سره یې روندشاه زمان اودشاه شجاع کورنی بوتله . وروسته له هغه چې پوځ درنګ وکړاوجلال آبادیې وران کړ ، دخیبر غاښي ته داخل شو اوهلته یوځل بیا تر حملې لاندې راغی . کله چې قبایلي خلکو دخپلو غلچکیو بریدونو تدبیرونو ته دوام ورکړ ، په دې وخت کې بیاهم تلفات درانـده وواودشاګارد پخوالـه دې چې داورتـه څرګنده شي چې دادغرونو پای دی نږدې ووچې وارخطـا شي .

برتانوي پوځ د دسمبر په ۱۸ ، د سوتليج ( Sutlejh ) له رودنه پوريووت او په تظاهري مراسمو کې يې دلارډ ايلنبورو له خوا درناوی وشو. ګورنرجنرال په خپله وينا کې په ويار سره دغزني دروازوته اشاره وکړه چې دلښکرو په واسطه راوړل شوې وې. دغو دروازو ده‌ندوانو دسومنات ( Somnath ) دمعبد ددروازو په نوم شهرت درلود چې تقريباً زرکاله پخوا سلطان محمود دله ځانه سره راوړي وې . •

دبرتانوي پوځ له ځنګ‌چې دپنجاب له لارې تيريده يو سپور سړی يو ځلې دشمال ولورته پر آس سپور روان و، امير دوست محمدخان افغانستان ته ستنيده او دا استعمار په تاريخ کې يې ديوه تراژيدي فصل وروستی برخه تماکله .

په «افغاني ماجرا» کې دبرتانوي برخه والو دژوندانه وروستۍ دورې په زړه پورې دي . سيل چې کابل ته دبيرته راګرزيدو په مساله کې له ناکامۍ سره مخامخ شوی و، دخپلې ناکامۍ تلافي دسکانو په جنګ کې دسرپه ښندنې سره وکړه ؛ شيلتن ( Shelton ) چې له يوې پوځي محکمې څخه ژوندی پاتې شوی وصرف دوکاله وروسته له خپل آس څخه دلويدلو له امله مړ شو چې ددغې پيښې په نتيجه کې د هغه کندک دباندې ووت او دړې دخوشالۍ چيغې يې له خولې نه وايستلې. په چين کې له ژيړې تبې ( يو دول ساري تبه ده چې زيړې ته ورته او دګولمو څخه دوينې تلل اوقی ورسره ملګری وي . ) (مترجم ) څخه پوتنجر

---

ايلنبورو ( Ellenbrough ) پوځونه ملطنتي دربا رته ومنل‌چې ديوی ودانۍ په مرکزواودپنځو ستوروچې څوکی يې تيری وی په‌شکل جوړشوی و. کله چې دويلنګټن(Wellington) دوک ( Duke ) له دی څخه خبرشو هغه دآس په شان وخريده ( او هغه بايدپردی تخت باندی کښينی اوستونزی) وزغمی. له پده مرغه ايلنبورو ددروازوجنسيت چې دسومنات دمعبد دروازو ګمان پری کيده نه وڅيړلی . د هغه سياسی مخاليفينو کوم چې په چتکۍ سره يې ددروازوجنسيت معلوم کړی ودرک کړه چې اصلاً دهغه دروازې

مرگ هغه څه پای ته ورسول چې هیله کیده چې هغه به د ژوندانه یوه ځلانده دوره وي . نیویل چمبرلین ، فیلډمارشال ( دگرمارشال ) اودیوه صدراعظم نیکه شو ؛ هینري ډیورنډ ( Henry Durand ) اوجان لارینس ( John Lawrence ) دهندوستان ددولتي چارودوه خوراسترواکمنان وګرزیدل . دسپاهیانو دشورش ( Sepoy Rebellion ) اتل جان نکولسن ( JohnNicolson ) مړشو ؛ هینري لارنس ( Henry Lawrence ) چې دلکنهو دمدافعې مشري پسه غاړه درلوده ووژل شو . هینري راولنسن ( Henry Rawlinson ) دلرغوني بین النهرین میخي خط ولوست اوداسیایي چاروپه باب دنړۍ یوله نامتو اوبرجستو ولیکوالو څخه وګرزیده .

هیڅ پیښې دافغان ملت په تاریخ کې ددغه بدمرغه جنګ په اندازه اغیزه نه ده کړې . د جنګ مستقیم تلفات درانده وو . انګریزانو دپنځلسو اوشلو زروترمنځ عسکر اوپنځوس زره اوښان له لاسه ورکړل اودغیرنظامي خلکوپه حیث هندي ملکي اشخاص چې شمیرېې معلوم نه و نسبت اوښانوته زیات قرباني شوي وو . دافغانانو تلفات ډیر زیات وواو دامکان له مخې یې مجموعي شمیر اویا زروته رسیده .

ډیر زیات مهم شی پخپله پر افغانانو باندې دجنګ اغیزه وه ، پرهغې طریقې د جنګ اغیزه وه چې هغوی یې بهرنۍ نړۍ ته مجسم کړي وو او دانګریزانو پر وروستی رویې باندې چې دخپل ملت په مقابل کې غوره کړې وه د جنګ اغیزه وه . له هغه نیټې اواخ ودب څخه ، چې دافغانانو دسخت زړه توب ، تعصب اودخیانت افسانه

دصبرونې له ارګ نه جوړې شوې وې نه دصندل له لرګی څخه اوپه هغوکې یې له شک څخه اسلامی صمبولو نه کیدل شوی وو . هغه په خپل وینا کی اعلان کړه چې د ۸۰۰ کالو سپکاوی غچ اخیستل شویدی التبه په تیر و پیښو باندی دنظرا چولو په ترڅ کې به دسلطان محمود دروح څرګند شې چې خپله وروستی استهزایی کړید .

راپیداشوي وه، یوه افسانه چې دزیاتر وبرتانوي برخه والو په واسطه یې په فعاله توگه پراختیا وموندله اودرودیارد کلنگ ( Rudyardkipling ) د مثال په واسطه دبرتانوي لیکوالو دراتلونکو نسلونو لپاره پاتې شوه.

کله چې حقایق په واقعي دول څیړل کیږي ددغې افسانې داغیزي دوام تر یوې اندازې پورې آریانو ونکي دی. د هغو حقایقو پراساس انغانان نسبت خپلو مخالفینو ته له زیات اعتبار سره میدان ته راوځي. رښتیا هم، دافغاني قبایلي خلکو توله بیرته پاتې کیدنه اوتحریك اود هغوعملو نه دنو وجنبشونو دمقاومت په پرتله نرم وو. یوازې یو څو بندیان زیانمن شوي وواوله انگلیسي ښځو سره په زوره زنانه وه شوې - دایو حقیقت دی چې ښایي د یوې معلومې تحت الشعور کرکې علت گرزیدلی وي، که چیرې کوم یو ښایي ددغو تبصرو له مخې چې ځینې له میرمنو څخه ترشاپاتې شوې وې قضاوت وکړي. په خوردکابل کې دپوځ تباهي یوه ټکان ورکوونکې مساله وه خو زیاتره دجگړې له قربانیانو څخه په هغو وسلو سره وژل شوي ووچې دهغوی په لاس ونو کې وې اوځو مرچې افغانانو په خپلو چړو سره وژلي ووهغومره سرې هو اتباه کړي وو.

دانگریزانو زیاتره اعمال په اخلاقي توگه له زړه دفاع وردي. داستالف اودچار یکارودنارینو حلالول، دکابل خواته په لومړي مارش کې دشپیتو افغانانو اعدام، له دینه زیاتې نورې پاتې له هغو سره دخپل پاچا په مقابل کې ددریدولپاره نه وې؛ حقیقت دادی چې دکابل خواته دبیرته راگرځیدودمارش وخت کې په هیڅ یو افغان باندې زړه ونه سوځول شو.

دبرتانوي سپاهیانو مشق اوتمرین چې کله کله به یې تدې افغانان سوځول، په زیاتو افغاني ښځو باندې دسپاهیانو اوانگریزي عسکرو تجاوز کول نشي کیدای

داعمالو یوه داسې نمونه اوسي چې دهغې پر اساس ادعا وکړو چې دانګریزانو افغاني ضدناوړه عملیات پر ځای وو اوو وایو چې افغانان بدخلك دي. دمکناتن وژنه اکثراً دهغوی دخیانت دیوې نمونې په حیث ذکراوړاوړل شویده، داحقیقت چې مکناتن دخیانت د یوه ماموریت دترسره کولو لپاره لیږل شوی و او پخپله یې له وژنې څخه د یوه سیاسي حربې په توګه کار اخیسته په هوسایي سره هېر شوی و.

دجنګ اغیزه اودافغانستان په داخلي انکشاف باندې تجاوز ویرجن (تراژیک) و. ددې داشغال په واسطه رامنځ ته شو ومخالفو جریانانو، دقدرت لپاره په جګړه کې په نوبت سره داشنخاصو جنګیدل اودجنګ مغشوش والي کورنی او شخصي دښمني ګانې تحریك کړې چې دخولسیزو یوه موده کې لـه منځه نه وې تللې تردغه وخت پورې افغانانو دخپل ملهبي زغم اودارو پایانو په مقابل کې د صمیمانه چال چلند په خاطرشهرت درلود. که برید نه وای شوی، امکان لري چې افغانستان به د یر ژر اروپایي طریقې او لارې غوره کړې وای. جنګ د دې ټولو شیانو مخه ونیوله؛ د افغانانو میلمه پالنې ته یې له پردیو څخه د ویربدلو رنګ ورکړ اودغه هیوادیې تقریباً دیوې پیړۍ لپاره په زیان رسوونکي تجرید کې وساته.

تیره وا نه یې مه نیسه، یا که یې
نیسې تینګ یې و نیسه.
(پښتو متل)

# نهم څپرکی

## افغانستان له ۱۸۴۲ تر ۱۸۸۰ پورې

کابل ته دامیر دوست محمد خان بیرته راتګ په هغه ښار کې د قدرت لپاره جګړه پای ته ورسوله او امیر دوست محمدخان دخپل قوم دمبارکیو په ترڅ کې پرتخت کېنیناست. په همدې وخت کې کندل خان ددراني سپرو افرادوله یوې ډلې سره چې دهغه ترشا اروانه وه بیا په کندهار کې څرګند شو او صفدر جنګ یې فرار کړ. دی بودشاه شجاع له زامنو څخه وچې هیله یې لرله چې دانګریزانو تر تللو وروسته، هغه ښار په واک کې ولري.

دیوڅو کلونو لپاره امیر دوست محمد خان خورا زیات په کار کې بوخت وه، هڅه یې کوله چې خپل وران شوی قلمرو بیا جوړ کړي او هغه جذبه او ناکراري کنترول کړي چې دانګریزانو اشغال ترشا پرېښې وه. یو دهغه له سترو خنډونو څخه دهغه زوی وزیر محمد اکبرخان وچې له جنګ څخه یو نامتو اتل راووت مزاج او طبیعت یې دسن له زیاتېد وسره نور هم تونداو بې شباله شو. وزیر محمد اکبر خان دبرتانوي پوځ دستوري انضباط هیر کړی و. یوازې په خوره کابل یې وپرېدلې دله په یادوه؛ هغه دجنګ یوه دله جوړه کړه چې په دربار کې دځوانو کسات اخیستونکو سردارانو څخه جوړه شوې وه او خپل پلاریې تر

فشارلاندې ونیوه چې پرهندوستان باندې برید وکړي . امیردوست محمد خان دخپل تبعید په یوخت کې دانګریزانو پوځي قدرت په کافي انداره لیدلی واو ددغه دول سیاست په نتایجو باندېښه‌پوهیده‌خوهغه‌درك کړه چې دسر دارانو کنترولول مشکل دی . همدارنګه دامیردوست محمد خان مخه د هغې اوازې په واسطه هم نیول شوې وه چې دهغه ددښمنانو له‌خوا خپره شوې وه چې ویل به یې امیر دوست محمد خان په هندوستان کې دخپلې استوګنې په موده کې دانګریزانو پلوی شوی دی.

امیردوست محمد خان په سختۍ سره وکړای‌شو چې دانګلیسانو اوسکانود ۱۸٤٥ کال په جګړه‌کې سکانوته افغانان له مرستې ورکولو څخه منع کړي : دهغه بې طرفي وزیر محمد اکبرخان په قار کړ چې له همدې وخت نه یې را په دې خوا دخپل پلار امرونه نه منل ، دپاریس له شاه سره له عبثو مذاکروڅخه وروسته، وزیر محمد اکبرخان دغازیو بغاوت تنظیم کړ . خو پخوا له دې چې شورش منځ ته راشي ، هغه په بد ګمانه کوونکي ناڅاپي مرګ مړ شو .

په دې دول سره دیوه افغان ملي اتل «داسلام دیوه» دژوندانه دوره پای ته ورسیده .دیره‌موده کیږي چې د هغه بې ثباته شخصیت اوله خپل پلار سره دهغه مخالفت دخلکو له یاده‌وتلی دی اوهغه ترننه پورې‌دازادی دیوه سمبول په حیث پاتې دی . که څه‌هم هغه یقیناً زړه وراو هوښیار واوخورا اغیز من شخصیت یې درلود ،دهغه مشکل داوچې هغه «تقریباً داحساساتو دتوندوسپلیو په واسطه په هوا کیده نن دپرون ورځې‌له افراط څخه خورا زیات پښیمانه‌کیده او سبا ورځ به یې په نوی افراط کې بیره کول» (۱) .

دیرزر دوزیر محمداکبرخان تر مرګ وروسته ، د خالستان سکانود دیوان ملراج Diwan Malraj Singa تر مشری لاندې دخپل پرومبنی ماتې دکسات په لته کې شول . کله چې په ۱۸٤۸ کې جنګونه پیل شول ،سکانو پوهیدل چې

ماتې دملي تابودۍ او تباهۍ ماناارله . سکان چې دهرډول مرستې لاس ته راوړ لوته چمتووو ، هغوی دمرستې دترلاسه کولو لپاره افغانانو ته رجوع وکړه او هغوی ته يې وعده ورکړه چې دهغوی دمرستې په بدل کې به هغوی ته پېښور راو دلويديځ اندوس (Indus) ټوله ساحه ورپربږدي . يوې دغسې لاس ته راوړنې به دا فغانستان دپو ی ستر ی هیلې دپو ره کېد و مانا درلوده ، له دې امله امير دوست محمد خان دغلام حيدرخان ترقمندۍلاندې پنځلس زره دراني او قزلباش سپاره افراد دسکانو مرستې ته ولیږل غلام حيدرخان دوزيرمحمداکبر خان کشرورور و چې په دې وخت کې د افغانستان و لیعهد و دغو سپرو لښکرو چې دخيبر دد رې له لارې په ترات تیریدل، پېښورا واټک يې دپښتون او لس دخوشالۍ په ولولو کې وڼيوه چې بالاخره دمنفورو سکانوله راك څخه آزاد وو.

اميردوست محمد خان چې نوموړې سيمې لاس ته راوړې ، دجنګ لپاره چمتوسکانو ته يې دنورې مرستې دور کولو په برخه کې اوږه دلچسپې ښکاره کړه خو دبو ښمير افغانانو اوقات لاتر اوسه پوري دافغان - انګليس دجنګ دخاطرو له امله تريخ او په قار وو ، چې لهدغوڅخه پنځوز روته هامير دوست محمدخان له خوا اجسازه ورکړل شوه چې دسکانوله پوځ سره يو ځای شي چې په ګجرات (Gujerat) کې لهانګريزانو سره مخامخ و . دلنه د ۱۸۴۹ کال دفبروری په ۱۵، دانګريزانو تويچې قواووچې دسکانو دخاڼو مشرانوله خواو رسره مرسته کيدله پخپلو کلکو ګوزارونو سره خالعتان خپلې وروستې تباهۍ ته راو رساوه . څرنګه چې دجنګ دګرد سپرو عسکرو لپاره نامناسب و ، افغاني سپرو افرادو کوم چې دسکانود پوځ ښي ارخ يې جوړ کړی واږ جنګي عمليات ولیدل :

کله چې دغه عسکر له امير دوستمحمد خان سره دبيا يوځای کيد و په خاطر چټك شول ، هغو ي و پوهيدل چې دسکانو د غمجنې پېښې خبر له هغوی څخه دمخه رسيدلی واوهم امير دوست محمدخان افغاني پوځ دخيبر له لارې ويستلی و . دې لندې ماجرا هغوی ته هيچ شي له ځانه سره نه وراوړی ځکه چې انګريزان په چټکی

سره دپیښور دنیولو لپاره وخوځیدل او بالاخره دهندوستان نقشه تو له سره وه.
امیر دوست محمد خان دسکانو تر جنګ وروسته کورنیو چارو ته متوجه شو .
لومړی هغه په خپل دربارکی ناکراره عناصر له هندوکش څخه اخواته درهنمایی
کولو په واسطه راضی کړل چې دازیکو دوړو خانانو پرضدو جنګیږی چې ددیرې
مودې راهیسې بې انغانانوته غاړه نه وه ایښې . دلته انغانانو یوځو کالو نه نسبتاً بی
لەوینی تویولو څخه فتحی ته ادامه ورکړه ځکه چې خلك مخالف نه وو او په زیاتره
مواردو کې خوشاله وو چې دخپلو پخوانیو اکمنانو ظلمونه دامیردوست محمد
خان په عدالت بدل کړی . تر ۱۸۵۹ کال پوری دهند وکش او آموسین ترمنځ
میمې خلکو بیا دکابل پادشاهی ومنله .

په ۱۸۵۵ کې کندل خان چی د« دل»وروڼواخري ورور په کند هار کې مړ شواو
دژوندانه دوره یې چې په هغې کې نیکمرغی اوناکامی سره ګډې شوې وې پای
ته ورسیده. امیردوست محمد خان چې تل یې «خپل بې شرمه ورور» حمایه کړې
وه اوس احساس کړه چې کورنی وفاداري تأمین شوه او کند هار د هغه پراخه
کیدونکي قلمرو سره یوځای شو :

ددغه کار په نتیجه کې یوازې دهرات ولایت دامیر دوست محمدخان له کنترول
څخه بیرون پاتې شو. دلته یارمحمد خان په ۱۸۵۱ کې په بستر کې په ارامی سره
مړشو، په داسې حال کې چې دهغه خوشاله رعایاو بیرون فضاله خوشالیو سره ډکه کړه.
د هغه زوی سید محمد چې قدرت یې دخان ګاڼه ، د خپل پلار تولې
بدې لرلې او هیڅ یو دهغه له استعدادونو څخه یې نه لرل که څه هم په کافي اندازه ئې ځیر کې
درلوده چې په دې پوه شي چې خلکو له هغه څخه کر که کوله اودامیر دوست محمدخان
دزیاتیدونکي قدرت په مقابل کې کمزوری اوزیان منونکی و. له دې امله هغه له
یو پیشنهاد سره ځان پارسي پادشاه ته ورساوه او تړینه یې وغوښتل چې داخیرالذ-
کر دیوه تابع یانوکر په حیث حکومت وکړي، داپوحرکت وچې دانګریزانو دفوري
احتجاج موجب وګرزیده . په لومړي سر کې پارسي شاه ژمنه وکړه چې دهغه

هیلې ومنې اوله هرات څخه لاس واخلي خو په هغه ښار کې دهغه داجنټانو موجودیت چې په طلا سره ښه سمبال وواو دیوه پوځ دتیارونې کارپه چټکۍ سره انګریزان قانع کړل چې وعده یوه پوچه وعده وه .

په دې وخت کې هربرټ ادواردز (HerbertEdWardes) د پېښور کمشنر و چې د جان لارنس (JohnLawrence) تر لاس لاندې و هغه څوك چې د پنجاب د کمشنر په توګه یې لارومبۍ خپل دایمي سیاست داسې تنظیم کړی وچې تر کومه ځایه چې امکان و لرې له افغانستان سره به لږه اړه ولري. له بلې خوا، ادوارډز په دې عقیده وچې دانګریزانو ګټې له افغانانو سره دیوه اتحاد له لارې دیرې ښې لاس ته راتلای شوې؛ اوله خپل امر څخه، دهدایت اومشوري اخیستلو پرته (چې دادهغه عادت و) هغه په دې بریالی شو چې والي لارډدالهوزي (Lord Dalhous.e) ته د دغه نظر د ښه والي په برخه کې قناعت ورکړي. له دې امله امیر دوست محمد خان ته بلنه ورکړل شوه چې پېښور ته راشي اوهغه دغې غوښتنې ته ځواب ورکړ او خپل مشر زوی غلام حیدر یې پېښور ته ولیږه . دې اخیر الذکر ته چې یودروند اوارام سړی واو د خپل ورور وزیر محمد اکبر خان زیاتره خه بې اوښیګڼې یې لرلې ، امیر دوست محمد خان لارښوونه وکړه چې یوبې ضرره دړې ماده ییزه موافقه چې متقابله احترام یې تضمیناوه لاسلیك کړي چې د ۱۸۵۵ کال دمارچ په ۳۰ پای ته ورسیده . (۲)

په عین حال کې سید محمد خان په هرات کې دمحمد یوسف له خوا خلع شوی وچې دشاه شجاع مشرورراره و. نوي حکمران دامیر دوست محمد خان له پیشرفت څخه چې کند هار یې نیولی وو یریده نو یې دخپل سلف له سرمشق څخه یې پیروي وکړه اود پارسیانو دحمایې غوښتنه یې وکړه. تریوې اندازې پورې د هغه دمایوسی له امله دده دغه پیشکش دیوه پارسي پوځ دوراندې کیدو سبب شو چې دښار دنیولو احکام ورسره وو.

داچې په دغه وخت کې محمد یوسف دانګریزانو دبیرغ داوچتولو په واسطه او داچې خپل محکمني اعلان یې یوه تېروتنه وبلله دغه ګډ وډي نوره هم پیسې زیاته کړه ـ په حقیقت کې هغه دلویې بریتانیې یونوکرو. دانګریزانو له خوا سمد لاسه

ددغه سوغات یعنی محمد یوسف ردونه دهغه دسقوط اودهغه پرځای د یل سد و زایی یعنی عیسی خان دمقرري موجب وګرزیده. دغې داخلي ناکراری پارسي پوځ پرینبودچې هرات ته یې له مخالفت څخه نذووځي اودنشه عسکرودیوې دلې له خوادعیسی خان دوژنې موجب وګرزیده.

په ښکاره توګه فاتح پارسیان له هغه بدلون څخه چې د انګریزانو په حکومت کې منځ ته راغلی وخبرنه ووچې یوځل بیا یې خپل بهرنی سیاست دلارډپال میرسن Lord Palmerston په واک کې ورکړی و.

تقریباً په چټکۍ سره یو برتانوي سپاره لښکر دپارس په خلیج کې د خارك Kharak تاپوونیوله اویو پوځ ئې په بوشیر کی پلی کړ. دغولښکروته د سرجیمزاو اوټرام Sirjamesoutram له خواقومنده ورکول کېده چې د افغان له جنګ نه یوبل ژوندی پاتې شوی سړی واوپه اسانۍ سره یې پارسیانوته په بوراس جون Borasjun کې ماتې ورکړه. شاه چې په بې احترامانه توګه لرزول شوی ودسولې تقاضایې وکړه.

دسولې دتړون د شرایطو له امله پارسیانوپرهرات باندې له ټولوا دعاګانو څخه لاس واخیست اود ۱۸۵۷ کال دمارچ په ٤، هغوی ښار تخلیه کړاو دهغه کنټرول اونظارت یې سلطان احمد خان ته وسپاره چې دسلطان جان په حیث هم شهرت لري اودکندل خان زوي وسلطان احمد خان خپل تره امیردوست محمد خان ته (چې خسر یې هم و) ډیر لږ تمایل درلود.

د انګیسانو اوپارسیانو دتشنج په دغه موده کې امیردوست محمد خان ته بیابلنه ورکړل شوه چې پیښورته را شي. داځل هغه شخصاً پخپله حاضرشواو یوه نوې موافقه چې د ۱۸۵۷ کال په جنوري کې لاسلیك شو د۱۸۵۵ کال دتړون شرایط یې تائیدکړل چې په هغو کې د انګریزانو ژمنه هم وه چې امیردوست محمد خان ته به مرسته ورکړي که چیرې پر هغه باندې دکوم بهرني دښمن له خوا برید وشي.

امیردوست محمد خان موافقه وکړه چې یوشوتنو برتانوي منصبدارانوته اجازه

ورکړي چې افغانستان ته داخل شي ترهغې چې دانګليسانو اوپارسيانو جنګ پای ته ورسيږي؛ وروسته له هغه انګريزانو په نظر کې لرل چې دکابل په دربار کې يو وکيل يا يو بومي استازی ولري. دتړون په پای کې اميردوست محمدخان وويل مااوس له انګريزانوسره اتحاد کړی دی اوهرڅه چې پېښ شول زه به يې دمرګ تروخته پوری وساتم؛

انګريزانوته زړدليل پيداشوچې دخپل دغه پخواني هندي خبری تـه ارزښت ورکړي. د۱۸۵۷ کال دمی په ۱۰، سپاهيانو په ميروټ Meenut کې شورش جوړ کړاو ديوخراونيو په موده کې دانګريزانو دژولدی پاتې کيدو لپاره دهغو لښکرو پرضد جنګيدل چې دوی ډير ښه روزلي وو. کله چې دانګريزانو پرشاتلنو خبر د هوولو لارې په چټکۍ سره خپور شو، افغانان له ډيری خو شالۍ نه هيجاني شول او زياتره خانانو اوملکانو خلک پرهند وستان باندی يو بريدته راوبلل. خو امير دوست محمدخان دتړون ترشاپه ټينګه ودريده يعنی پـه کلکـه يې مراعات کړ. بې له شک څخه دافغانانو سستې له انګريزانوسره چې ترکلک فشارلاندې راغلي وو مرسته وکړه. همدارنګه دې حقيقت هم له هغوی سره مرسته وکړه چې له ۳۴۰۰۰ عسکروڅخه چې زياتره يې افغانان وواوپه پنجاب کې دخدمت لپاره دياغيانو پرضد راتـول شوی وو. تريوه حده دا کليننګ قرباني دکانينګ Canning ژغوروونکې وه. (٤)

داميردوست محمدخان دپاتې ژوند په موده کې دافغانانو اوانګريزانو ترمنځ اړيکې دوستانه وې. زوړ جنګيالي امير چې دزړښت نښې نښانې پکښې ليدل کيدې يو وخت يې ديوه آس سوار په حيث شهرت درلود هغه اوس په پښو بـاندی سپريده د۱۸۶۳ کال په مې کې دخپل وروړنتح خان دمرګ راهيسې کله چې هغـه دهرات دروازوته په بری سره ننووت دلومړی محل لپاره وکړاي شو چې خپل هيوادسره يوموټي کړي.

نه ورځې وروسته اميرشيرعلی خان چې وليعهد و (غلام حيدرخان مړشوی و)

دهندوستان نائب الحکومه ته ولیکل، هرنګه چې مرګ دانسان ګډسرنوشت دی،
زماعز تمندپلار له یوی مزمنې ناروغۍ څخه ۰۰۰ دلمرختو په وخت کی مړشو. (۵)

دافغانستان له پاچاهانو یاپه همدې ارتباط دبل هرهیوادله پاچاهانو څخه دې امیر
دوست محمدخان یعنې لوي امیر بایددلوړ مقام خاوند وبلل شي . تر یوه لړ زنده
پیل وروسته (کوچنۍ لیوه) مادام العمره داسې څخې راپیل کړې چې دهیوادمتحد
کولواو کرارۍ لوته متوجه وې .

په بدمرغۍ او فواریت کې ، په نزاع او کورنۍ توطئه کې، په بهرنی تیرې او
تباه کوونکي جنګ کې یې یوه تینګه کړنلاره تعقیبوله . هغه چې زړه ور، بشر
دوست اوزغم ګالونکی و، خپلو دښمنانو یې هغه پوره وستایه . دهغه یادګار دده
وینا ده چې لا تراوسه پورې مشهوره ده ، آیاامیردوست محمدخان مړدې چې هلته
عدالت نشته ؟

له بده مرغه امیردوست محمدخان دحکومت دتینګښت لپاره چې ترینه پاتې
شوله هغه سرمشق څخه پیروي کړې وه چې دنوروافغاني پاچاهانوله خواغوره
شوي واو شپاړس زامن ترینه پاتې شول چې له پنځو میندونه زیږیدلی وو که
چیرې وزیرمحمداکبرخان یا غلام حیدر ژوندی پاتې وای دي هیواد به دپاچاهانو
یوآرامه سلسله درلودای خود پلار نه دمخه دهغوی دمړینې معنا دافغانی پاچاهانو
دمصیبت دپیامنځ ته راتلل و یعنې دتاج اوتخت لپاره یو ه جګړه وه .

دامیردوست محمد خان دریم ژوندي زوی امیرشیرعلي خان وچې ترټولو
ژوندیوزامنو نه ئي مشرو. دی دوزیرمحمد اکبرخان اوغلام حیدرخان سکه ورور
واوپرخپل پلار باندې ګران و او هغه یې خپل وارث ګڼلی و خود
امیرشیرعلی خان دوه ناسکه وروڼه چې افضل خان اواعظم خان نومیدل دخپل مړه
پلار دخوا هشا تو پروا ونه ساتله او په چټکی سره یې یوه بلواجوړه کړه په دغه
بلواکی دافغانی ترکستان دوالی په حیث داعظم خان دریځ او دافضل خان دیوژښت
دیرتکړه زوی عبدالرحمن خان پلوی لههغوی سره مرسته وکړه سره له دې هم

امیر شیر علی خان چې دخپل پلار پر اعتبار او پر شاهي خزانه يې اتکا درلوده بریالی و.

آینده کال یعني ۱۸٦٤ یو بل شورش منځ ته را ورچې دا ځل هورش له یوه غیر متوقع مرکز ځخه منشا اخیستي وه. ددې شورش په سر کې دامیر شیر علی خان یو سکه ورور وچې محمدامین خان نومیده. دا ځل بیا امیر شیر علی خان بری ترلاسه کړ، مګر په درند وتلفاتو سره؛ ځکه دهغه ګران زوی محمد علی وروسته له هغې چې دیې زړه توب (بزدلی) په وجهه په بې انصافانه توګه ور تل شو جنګ ته ودانګل او په یولاس په لاس جګړه کې چې له خپل تره سره یې کوله و وژل شو. (٦)

دامیر شیر علی تاج او تخت دشهزاده دمرګ په قیمت تمام شو. امیر شیر علی خان له همه لیونی و، ځان یې دپښې په خاطر ګرم باله، هغه موقتاً خپل تواز ن له لاسه ور کړ او دکابل په کوڅو کې بې هدفه ګرځیده او خپل مړه زوی ته یې ناري و هلې. دیوی نتیجې په توګه ځوان امیر عبدالرحمن خان دخرونو له پوری خواځخه له یوه پوځ سره راغی چې په افغاني ترکستان کې راټول شوی و. او امیر شیر علی خان یې چې په دې وخت کې له خپل لیو نتوب ځخه لږ ز ړه ه کند ها ر ته په شا وتمبا و ه دامیر عبدالرحمن خان په مشری دافضل خان قواو وامیر شیر علی خان ته په شیخ آباد کې ما تې ورکړه او بیا یې په ۱۸٦۷ کال کې دغزنی په کلات کې ورته ماتې ور کړه. پس له هغه شیر علی خان کندهار ته وتښتید او افضل خان امیر شو.

افضل خان دخپل زوی له استعدادونو او ورتیاوو ځخه یو هم نه درلوده او په ناوړه توګه دیوه «شرابي او بې مغزه سړی» په حیث بلل کیده. (۷) مګر دا خبره چې چې امیر عبدالرحمن دتاج او تخت لپاره یو تکړه ساتونکی وه هغه وخت ثابته شوه چې امیر شیر علی خان ته یې یو ځل بیاماتې ور کړه چې نو موړی یو بل پوځ برابر کړی و. پس له هغه ناځاپه دمعزول شوي امیر شیر علی خان بخت بیدار شو؛ په داسې حال کې چې امیر عبدالرحمن خان له لښکرو سره لیرې و، افضل خان په ناځاپي توګه مړ شو.

د افضل خان ورور اعظم خان چې په دی وخت کې یې خپل جانشین اعلان کړی و حتی تر خپل مړه ورور هم لږ تکړه واو په بې زړه توب سره یې شهرت

درلوده چې په افغانستان کې خطرناك و. بل ستر عیب یې هدف ته درسید و لپاره دوسایلو په استعمال کې صرفه جویي وه، په تیره بیاله هغه وخت راهیسې چې مجادله کوونکو د تاج او تخت لپاره جګړه کوله تولو خپل پلویانو د معمولي جنګي وسایلو په واسطه ژغورل. نتیجه دا شوه چې امیرشیر علي خان چې یو بل بوخ یې روزلي و درك کړه چې د اعظم خان پلویانو د هغه خواته یېره کوله. اعظم خان چې تنها شوي و پارس ته و تښتید، خو په لار کې مړ شو او امیر عبدالرحمن له شمالي سرحد څخه تیر شو چې روسانو ته پناه یوسي.

د پاچاهانو د دغې سللي سیاسي تذبذب شاید ډیوي ناتا کلي مودي لپاره دوام پیدا کړي واي ځکه چې قبایلي مشرانو نو موړي تلون ګټور وباله او یوازې کله کله یې خطرناك هم وګانه. په هر صورت دغه سیاسي تزبذب ته دانګریزانو له خوا خاتمه ورکړل شوه. دګډود تیا یو علت دانګریزانو افکار و چې نه یې غوښتل هیڅ یو د تاج او تخت له مدعیانو څخه په رسمیت و پیژني یعنې دا یوه پالیسي وه چې په اصل کې له لارنس سره منځ ته راغلي وه. دیو ځه مودې لپاره د دغې لاس نه وهني سیاست ( Hands-offpoliey ) په مقابل کې مخالفت په هند وستان او په لندن کې زیاتیده او دامخالفت هغه ورځ بریالی شو کله چې امیر شیر علي خان خان په ترکستان کې روسي نظامي حکومت ته ورساره. کله چې لارنس په خپله اشتباه قانع شو، نو یې په چټکۍ سره په عمل لاس پورې کړه؛ هغه امیر شیر علي خان ته یو پیغام ولیږه او هغه یې دامیر په حیث و پیژانده او د ۲۰۰۰۰ کلداري او د ۳۰۰۰ پلمټیه بیز و تو پ کو یو سوغات یې ورته ور اندي کړ. دې سوغات په اغیز منه توګه داخلي جنګ پای ته ورساوه چې له امیر شیر علي خان سره په کاکه د تاج او تخت پرسر کیده.

امیر شیر علي خان چې بالاخره له کورني خطر څخه خلاص شوی و و شو کړای چې خپل رنګ شوی هیواد ته یو څه توجه وکړي. سره ددې چې امیر شیر علي خان احساساتي یې ثباتي لرله، هغه یو هوښیار سړی و کوم چې د افغانانو خورا کلکه

اروپاچې دپر مختګ دپاره یې درلوده او له غربي تګلاروڅخه ډیر څه د ګټې اخیستلو اړیتا، دوا ره یې درک کړي. دهغه له نوښتونو څخه ځنې داووچې لومړني افغانی پستي خدمت ځانګه یې تاسیس کړه او داو نیزي جریدې شمس النهار بنسټ یې کیښود. ●

برسیره پردې، امیرشیرعلي خان هڅه وکړه چې په اروپایي مودل ( Model ) یو منظم پوځ جوړ کړي. هغه په دې کار کې ناکامه و؛ که څه هم هغه له هغه څخه چې په ښکاره عسکر بریښیدل یو پوځي تشکیل جوړ کړ چې پرته له یونیفورم څخه نور اروپايي مودل پوځ ته ورته نه و یعنې یوازې دیونیفورم له پلوه هغوي ته ورته وو.

دانا ممکنه وه چې نوي جلبیان یا جنګیالي پښتانه عسکري خدمت ته را جلب کړي چې دسپلین ( عسکري انضباط ) او معاش یې یوشان نه خوښیدل. په نظر کې وه چې په لاس راتلونکي جلبیان له تاجکو او هزاره قومونو څخه راټول کړل شي چې باالقوه عسکر وو ـ لکه څنګه چې هزاره ګانو خپل فزیکي قوت د برتانوي هند په پوځ کې ښودلی ـ خو دهغوی مورال (معنویات) په صادقو او باکفایتو منصبدارانو پورې اړه درلوده او دغه منصبداران په لاس نه راتلل یعنې موجود نه وو. دوسلو داستعمال په برخه کې تربیوي زده کړه هیڅ نه وه. همدارنګه پوځي عملیات هم نه وواو د منصبدارانو مهم فعالیت داو چې ځانونه په زور سره له بد مرغیو څخه ترکومې اندازې پورې چې یې امکان درلودو پاسي.

دامیرشیرعلي خان له کوښښونو سره سره دافغانستان دملي پرمختګ مخه ونیول شوه. کورني جګړې او تیري چې تقریباً څلویښت کاله یې دوام وموند د دې هیوادپر مختګ یې متوقف کړ؛ دمشرانو او . . . . قبیلو واک لوړ شوي و هماغسې چې دامیرشیرعلي خان قدرت او مرکزي حکومت کمزور شوی و .

برسیره پردې، هیوادپه یوه غیرطبیعي تجرید کې ساتل شوي واویو ازشمیر

● اعظم خان په لندن ول سره ۱۸۶۷ کال کې د«کابل په نوم» یو ورځپاڼه خپره کړې وه چې د افغانستان لومړنی ورځپاڼه وه.

خارجیانو ته اجازه ورکول کیده چې دد ې هیواد له پوله څخه تیر شي .

دامهکنه ده چې داستحکام دیوځو کلونو په موده کې به امیرشیرعلی خان ته موقع په لاس ورغلی وای چې خپل حکومت پیاوړي کړي؛ خوبهرنیو قوتونو په کوموباندې چې امیرشیرعلی خان قبضه نه درلوده یوځل بیا په نظر کې درلوده چې دهغه هیواد دېرمختګ مخه ونیسي . په ۱۸۴۹ کې دپنجاب تر الحاق وروسته په افغانستان کې دانګریزانو دلچسپي دخپل هندي امپراتورۍ داستحکام او دلارډ ولارنس دنفوذ په مقابل کې له مینځه تللې وه . لارنس هغه څوك وچې وي نشو کړای چې په خورد کابل کی دهلو کودد لیو خاطره له یاده و باسي . خود کلونو په تیریدلو سره ، پرهندوستان باندې دانګریزانو کنترول پیاوړی کیده ، دبرتانوي مشرانو په ذهنونو کې نوي سیاستونه رامنځ ته شول چې هغه د لارنس له سیاست سره مخالف واقع کیدل . دغه بدلون چې پر ۱۸۶۸ کال کې په واضح ډول هر ګند ودروسي تزار دفعالیتونو له امله یې پراختیاو موندله . دکریمیا تر جنګ (Crimeanwar) وروسته ، دیرزردروسانو پوځ په منځنی آسیا کې دخپو په خیر و جنوب خواته پرمخ ولاړ ، دازبکو زوال شوي خانان یې لاندې کړل چې هغوی دهغو امپراتوریو بقایاوو . چې یو وخت پیاوړې وې دبخارا ازبکی پوځو نو چې شکیدلی کالی یې اغوستي وو په ۱۸۶۳ کې د روسانو له برید نه وتښتیدل ؛ دوه کاله وروسته تاشکند او دخوقند (Khokand) نیمائي دتزار تر کنترول لاندې راغلل . په ۱۸۶۷ کې دبخارا سیمه نوره هم کمه شوه او دروسی ترکستان ولایت جوړ شوا وجنرال کافمن چې پرلیوال پراختیا غستونکی سړی ودوالي په حیث وټاکل شو .

دغو حرکاتو که څه هم هرومرو منځ ته راتلو نکي وو په انګریزانو کې اندیښنه راپیدا کړه څکه چې دبیدیالو تمار او سیدونکي دیوه مستقرد ولت لپاره دزغم وړنه وو . برسیره پردې ، دروسي سرحدي سیمې دنظامي والیانو تر کنترول لاندې وې هغه والیان چې دروسیې بهرنۍ سیاست ته یې لږه توجه کوله .

امیر شیر علی خان ددغو پر مختگو نوله امله چې دهغه دشمالي سرحد هغې خواته شوي وویریده او هغه په لیره بیادهغه مکتوبونو په برخه کې سخت اندیښمن وچې جنرال کافمن ده ته د هغو په لیکلو کې ټینګار کاوه. دفکر په یوه دغسې حالت کې هغه خوشاله وچې د هندوستان دنائب الحکومه لارډمایو بلنه ومني او دامبالا په کنفرانس کې برخه واخلي؛ هلته خبري بې حاصله وې؛ انګریزانو دوماهرانه عدم فعالیت سیاست ورو ستې سخت کړاوونه زغمل اوکړ، هم هغوی خرګند کړه چې هغوی به هر هغې هڅې ته په زیاتې خواشینی سره وګوري چې دامیر شیرعلی خان مقام تنزل کړي. هغوي ژ یاته کړه چې دوی به هیڅکله کوم پوځ و نه لیږي چې له هغه سره مرسته وکړي. (۸)

وروسته له هغه چې لارډمایو دانډمان (Andaman) په ټاپوګانو کې دیوه افغاني بندي له خوا ووژل شو امیر شیرعلی خان یوه بله هڅه وکړه چې اتحاد ټینګ وساتي. خو که څه هم دمایو جانشین، لارډنارت بروك (Loyd Novth Brook) له افغانانو سره داتحاد زیات علاقمند واودبې جهته تیري په صورت کې یې د مرستې وعده ورکړه، دګلیډستون (Gladstone) حکومت دغه امتیاز رد کړ. له لندن څخه دمستقیمو لارښوونو پر اساس لارډنارت بروك امیرشیر علی خان ته داد ورکړچې روسان دتیري په فکر کې نه دي اوداچې انګریزانو و نشو کړای چې تر هیڅ دول شرایطو لاندې دهغه له حکومت سره کوم اتحادوکړي:

امیر شیرعلی خان سخت خواشینی و. هغه ولیکل، انګلستان پرته له خپلو ګټو څخه نورهیڅ شی په نظر کې نه نیسي اوددغو ګټو دترلاسه کولو لپاره څپل وخت ته انتظار کاږي. دوی چې دهر هغه چاخوادیره قوی ووینې دوخت په خاطر دهماغه خواته ورځې اوځانونه د هغې خوا ددوستانو په حیث ښيي. زه به خپل ګران اوخوږ عمرله انګلیسانو څخه د غلط وهیلو په لړلوکې ضایع نکړم اوله نورو حکومتونو سره به دوستي پیل کړم. (۹)

دامیرشیرعلی‌خان خوابدي دلوروحالاتو له امله زیاته شوې وه . افغانستان او پارس چې هیڅکله صمیمي‌گاونډیان نه وو دخپل سیستان سرحد په برخه‌کې شخړه‌کوله؛ کله‌چې دغه موضوع انګریزانوته محول شوه چې هغوي دمنځګړو په حیث وربانديې غوروکړي، نتیجه د تل په شان دیوه طرف دخوشالي موجب هم ونه‌ګرزیده. بالاخره، کله چې امیرشیرعلی‌خان خپل تر ټولومشرزوي یعقوب‌خان دانقلاب لپاره دهغه دکورنۍ په تمایل کې دبرخې اخیستلوپه خاطربندي کړ، هغه له نارت بروك څخه یوه‌مشوره ترلاسه کړه.

امیرشیرعلی‌خان چې زیات خوابدی و، په ځواب کې ولیکل چې‌که څه هم دنائب الحکومه سلا بی له شك څخه «ددوستۍ اونښه نیت» پر بنسټ ولاړه وه خوداحق یې نه درلوده چې دافغانستان په‌کورنیوچاروکې لاس ووهي. (۱۰)

د۱۸۷٤ په مارچ کې د ګلیډستون د حکومت پرځای دد سرا یلي (Disraeli) اوتوریانو (Tories) حکومت‌منځ‌ته‌راغی. په‌نوي کابینه کې‌چې‌په خارجي‌چاروکې دومره‌فعاله‌وه‌څومره چې‌ددې اسلاف په‌بهرنیوچاروکې سبا تي ووزیات غړي شامل وو‌چې هغوي له دیر پخوا څخه د ماهرا نه عدم فعا لیت د سیا ست Policy of masterly inativity) له ا مله په قا روو. یوله د غوڅخه ، سر با رټل فر یر (Sir Bartle Frere) سمد لاسه یویاد ښت برابر کړچې‌دافغانستان په‌مقابل کې یې یوه نوې پا لیسي په‌کا رواچوله چې د کو یټې ( Quetta ) یو ځي اشغا ل ، په هرات اوکندهارکې دبرتانوي منصبدارا نوځای پرځا ی کونه یې غوښتله ـ په حقیقت کې‌دادهغو وعدوماتونه وه چې‌مایو اونارت بروك دواړو امیرشیر علی خان ته ورکړې وې .

نوې پالیسي‌دلارډسالسبري ( Salisbury ) له‌خوا‌ومنل‌شوه او په ۱۸۷٥ کې نارت‌بروك ته ابلاغ‌شوه؛ مګر نائب‌الحکومه نه په سیاست‌کې توري ( Tory ) واونه د مزاج له پلوه د مطیع کیدووړو. هغه په‌ځواب‌کې ولیکل څرنګه چې انګریزانو په هرات‌کې د انګریزا نو دیوې نما یندګې د تاسیسولو دو خت په

برخه کې د امیر شیرعلي خان نظر چې يو محل بې وړ اندې کړی و ردکړی و، هغوی او س په سختې سره دهغې پالیسی د بدلون غوښتنه وکړه چې هغوی وضع کړی وه.

د ټرخواو ستغو تـلگرافونو له تبادلې نه وروسته، نارث بروک استعفا وکړه او پر ځای یې د ایـډوارډ بـولورلـیټن (Edward Bulwer - Lyt en) ز وي لارډ لیټن (Lord Lytton)) مقـرر شـو چې دا وون میـر یـډ ت (Owen Meredith) تر مستعار نامه لاندې يو شاعرو.

نوي نائب الحکومه داسیا په برخه کې معلومات نه درلوده، مگر د غه فقدان يې د تولو موضوعاتو یا مسایلو په باب د قطعي او څرگندو ونظر يو په وسیله جبیره کړ. هغه په لاندې دول دزړه له کومې خان د نوې پالیسی پلوی وښود:

افغانستان يو دومره کمزوری او غیر متمدن هیواددی چې د دوو ستر و پـوځـي امپراتوریو تر منځ په تجرید کې او په بشپړه توگه بې اغیزې پاتې کیدای شی.. دا زمونږسیاستدی چې په خپل شمال غربی سرحد کې يو قوي مورچل ته توسعه ورکړو... مونږ د امیرشیرعلی خان دسیمې دیو انچ ارزونه لرو. مونږ هیله نه کوو چې د هغه آزادې دیوې زرې په اندازه کمه کړو. خو مونږ هغه ته اجازه نشوورکولی چې د کوم قدرت تراغیزې لاندې راشي چې گټې یـې زمونږ له گټو سره متضاددې وي. (۱۱)

روسان چې د انـگريزانو دسیاسی پلان له بدلون څخه نه وو وېرېـدلـې خپل پرمختگ ته يې د افغانستان دسرحد خواته ادامه ورکړه. په ۱۸۷۵ کې کله چې دخوقند هرزه خان قدیار دخپل اتباعو په واسطه له پښوو اچول شو، روسانو دغه دولت سره يو ځای کړاو دایې بیـادفر غانـي (ـ Ferghana) په نوم یا دکړ. دغه حرکت ددې سبب شـو چې بخـارا وخیـوا (Khiva) دروسې اودافـغا نستـان ترمنځ دیواز نیو خپلواکو دولتـونو په حیث پاتـې شي ارمخـکـنـي خـولار ومبې دروسانو تر اداری لاندې و. په هماغه کال کې په تودخه کې چې درجه يې د۱۴۹ درجو په اندازه زیاته وه

تربوه مارش وروسته يوروسي پوځ دخيوا (Kyiva) دښارښهر دېوالونو با ندې
چپاوراو رخيوا اوشاوخوا سيمه يې سره يوځای کړل. په هرحال، دخيوايانو دحال په برخه
کې بايد همدردي نرمه شي ځکه چې روسانو دننه په ښار کې ۳٤٠٠٠ مړيان وموندل.

اوس چې دروسانو هيواد پرافغانستان باندې تيری وکړ، اميرشيرعلی خان په
بشپړه توګه ناآرامه وهغه هيڅ باوري شي ونه ليده چې دهغې په واسطه دې
دروسانو دپراخيدونکي هيواد مخه ونيسي ؛ دکارکتېرله پلوه دشمالي افغانستان
زياته برخه له هغې سيمې څخه نه تشخيص کيدونکې يانه بېلېدونکې وه چې روسانو هغه
دمخه نيولې وه. دغه دول اميرشيرعلی خان په دې وخت کې له جنرال کافمن سره
مخابره وکړه چې په مکتوبونو سره يې هغه دخه وخت لپاره تريمبار دمان لاندې نيولی و.

دغه ګام چې داميرشيرعلی خان لـه خوا پورته شوی و د يـوې هڅې په حيث
تفسيراو تعبيرشوی وه چې له لويې بريتانيې څخه امتيازات ترلاسه کړي. اودارښتيا ده
چې فقط همدغه دول يوطرزالعمل اکثـراً په افغانستان اوپه نوروهيوادوکې چې
تعقيب شوی دی دلويوقوتونو په واسطه احاطه شوی دی. خوپه دې وخت کی امير
شيرعلی خان زيات علاقمندوچې له روسا نوسره يوې جوړې روغې ته ورسيږي
نسبت ودې ته، چې پرلويې بريتانې باندې زورواچوي ؛ ځکه چې دکافمن په مرکزي
اداره کې دهغه دوراره اميرعبدالرحمن خان موجوديت يو جدی تهديد و .

انګريزان تربوه وخته پورې د جنرال کافمن لـه مکتوب ليـکلو نـه خبرووه ، په
حقيقت کی مايو او نارت بروك دواړو اميرشيرعلی خان ته داډورکړی وچې داليـکڼ
بې ضرره و. خو لپتن اونوي حکومت پردې بانـدې نورناوره تفصيل ورزيات کـړاو
راضي نه ووچې دکونت شخولوف Countschuvaloff داد و منـي چې په سېڼې
مانۍ کې Whitehal دروسيې سفيروځکـه چې دا صرف دکافمن شخصي فعـاليت
واودروسيې په سياست کې يې رول نه درلود. په تيره اواوسنی زمانه کی دروسانو
په زياته اندازه مرموزسياست دمکاتبې داصلي مقصد کشفـول ناممکن ګرزوی، که څه
هم کافمن يې له شك څخه اوپه څرګنده توګه په خپلوځينو اقداماتو کې خپلواك و.

د۱۸۷٦ کال داپریل په ۲٤ ، نوي نایب الحکومه امیر شیرعلی خان ته یو لیك ولیکه چې ور ته خبر ورکړي چې هغه سر لیو یس پیلی Sirlewispelly د یوه سیاسي استازي په حیث کابل ته لیږه چې «دګډې ګټې موضوعات تر بحث لاندې ونیسي.»

(۱۲) امیر شیرعلی خان دهغه لیك ته په مود بانه توګه خو بې له ابهام ځخه ځواب ورکړ چې هغه حتماً دغه هیات نه مني که ځه هم هغه دهیات در دلو په برخه کې دلایل څرګند نه کړل، دهغه انکار کونه یاد هیات ردونه دیوې ویرې پر اساس وه چې هغه به ونشي کړای په کابل کې یو برتانوي سیاسي استازی حمایه کړي ، چې پښاریان یې لاتر اوسه پورې دالکساندر برنس Alexanber Burnes دهیأت نتایج په یاد لري.

لیټن په غضب واو دامیر شیرعلی خان په لیك کې یې د خپلې عقیدې تائید او ثبوت ولوست چې افغانان له روسانو سره داتحاد په لټه کې وو. هغه د خپلې شورا د درو غړو د احتجاجو نو له امله، امیر شیر علی خان ته دیوه سخت یاد ښت مسوده ولیکله چې په هغه کې د سیاست د ژبې د بار کیو په واسطه یو تهدید ځای شوی و.

دې یاد ښت دکابل در بار ته یوه اندیښنه خلق کړه او په بازارونو کې دا آوازې خپرې شوې چې د انګریزانو لښکرې په سرحد کې متمرکزې شوې: امیرشیرعلی خان بېره وکړه چې نائب الحکومه ته په یوه پیشنهاد سره ځواب ورکړي چې هغه په کابل کې دانګریزانو د نمایندهٔ په برخه کې عطا محمد سره دمشورې کولو له لارې وضع ترغور لاندې نیسي او په دې برخه کې پلټنه کوي .

د۱۸۷٦ کال دنومبر په ۱۰ ، لیټن له نمایندهٔ سره په سیمله (Simla) کې وکتل. دلته نائب الحکومه په څرګنده توګه دکینې له مخې د انګریزانو استازې ته یې وویل ، چې د امیر شیرعلي خان موقف لکه دیوه کوچني خاورین لوښي په شان دی چې هغه ددوو اوسپنیزو لوښو ترمنځ واقع شوی وي.* دایوه داسې وینا وه چې له سیاسي وه او نه اصلي . هغه استاځی ته لارښوونه وکړه چې امیر شیرعلی خان

* مونږ کولی شو چې دغسې یو موقف د پښتو په دې متل سره چې وایي ، «یوې خواته پاڼ او بلې خواته پړانګ یا یو خواته پړانګ بلې خواته دانګ» افاده کړو او په دې وخت کې دامیر شیرعلی خان توقف د پښتو دهمدې متل دفلسفې مانا لري له یعنی دی د دوولو یو قوتو نو ترمنځ ګیر و . (مترجم)

ته یو څلور ماده پیزه پیشنهاد وړاندې کړي : لومړی ،انګریزان بـه د بې سببه تیری په صورت کې له افغانستان سره مرسته وکړي (انګریزان به د مرستې دارتیا په برخه کې قضاوت وکړي)؛ دوهم ، داچې انګریزان به عبدالله جان چې بود امیر شیرعلی خان له زامنو څخه و دوارث په حیث و پیژنـي ،دریـم داچـې افغانستان باید د تولـو انګلیسانو پر مخ خلاص وي، او څلورم، داچې افغانان باید دانګریزانو له مشورې څخه پرته له هر دول خارجي مخابرو څخه ډډه وکړي ۰(۱۳)

دغه پیشنها د یو غیر واقعي او غیـر عادلانه پیشنهادو ؛ ددې پیشنهاد منل بـه سمدلاسه د امیر شیرعلی خان دحکومت او بنایي دهغـه دژوندانه دپای مانا لرلی وای .امیر شیرعلی خان دخواشینی په حال کې خپل وزیر نور محمد شاه په مذاکره کې دیوی بلې هڅې لپاره هندوستان ته ولیږه چې دې مذاکرې څخه کومه کتیـه ترلاسه نشوه : نائب الحکومه به موافقه ونه کـړی چې په کـومه چاره با نـدې بحث وکړی . نورمحمد چې دمزمنې ناروغی له امله کلـکـ ناروغ و په پای کې په لاندې دول دلایل راوړل :

مسایل اوس بحرانی دی او وضع ډیره خطرناکه ده .... دانګریزانو هیواد یو ستر او قوی هیواددی او دافغانستان خلکـ ددې هیواد له قدرت سره مخالفت نشي کولی مګر خلـکـ دخپلې ارادې خاوندان او خپلواکـ دی او خپل تاتو بی ته تر خپل ژوند زیات ارزښت ورکوی ... تاسې پر موږ بانـدې یو داسـې پیټـی (مسوولیت)مه تحمیلوی چې موږ هغه نشو زغملی؛که چیرې تاسی پر موږ باندی زیات پیټی تحمیل کړی نو مسوولیت به یې ستاسو پر غاړه وی ۰(۱٤)

په دې وخت کې له افغا نستان څخه لرې حالات و د پیښو عوا قـب نـا وړه کول.روسیې چې تل په بالـکانانو کی دخوتید ونـکی نارامی له امله مواظبه وه په غضب سره یې دبالکانانو څارنه کوله کله چې ترکا نود بلغاریا یانو بلوا شنډه کړه او خپلو فتوحاتو ته یې ترسربیا (serbia) او مونتنګرو (Montenegro) پورې دوام ورکړ .د۱۸۷۷کال داپریل په ۲٤ دمنځګرتوب له منځه دترکانو انکار

دروسانو دجنګ داعلان موجب وګرزیده . او د ۱۸۷۸ کال جنوری کې دځار (Czar) پوځ دستانبول په وړاندې ودریده .

دانګریزانو عکس العمل شدیدو. پارلمان دجنګ دتخصیص لپاره رای ورکړه؛ دانګریزانو دجنګی بیړیو یو ګروپ دباسپورس Bosporus په لور حرکت وکړ اوله بمبیي څخه پنځه زره سپاهیان سایپروس (Cyorus)ته ولیږل شول . وروسته روسانو هندوستان ته دیوه تهدید په واسطه ځواب ورکړ . جنرال کافمن ته دهغه دمانګری خوشالتیا دپاره لارښوونه وشوه چې په روسی ترکستان کې یو پوځ چمعواو سمبال کړی او کابل ته یو هیات ولیږي؛ هغه دا کاروند په چټکۍ سره وکړل او په عین وخت کې بی امیرشیرعلی خان ته خبرورکړ چې که چیری هیات ونه منل شي، امیرعبدالرحمن خان به دسرحدله هغه غاړی څخه دروسانو دپوره مرستی سره راولیږل شي .جنرال ستولیتوف (Stolietoff) شپږ منصبداران او دوه ویشت سریو د۱۸۷۸ کال دجولای په ۱۴ سمرقند پریښودد دوی خبر نه وو چې دبرلین غونده یوه ورځ رومې پیل شوی وه .دامیر شیرعلی خان دمکررو غوښتنو چې هیات دی وځنډول شي پروا یې ونه ساتله هیات خپل راتک ته به ثابته توګه دوام ورکړاو دجولای په ۲۲، کابل ته راورسید. دیره موده لاتیره شوی نه وه چې لیټن (Lytton) دروسانو له دغه اقدام څخه خبرشو ځکه چې په دی وخت کې دانګریزانو د ضبط احوالاتو شبکه دیره پیاوړی وه چې دانګریزانو دهندوستان داشغال وروستی کلونه بی مشخص کړل .

کله چې نائب الحکومه ولیدل چې دده دیرې بدې ویرې تائید شوې دې نو یې په لاندې دول لندن ته تلګراف وکړ :

هلته یوازی دری لاری زمونږ پرمخ خلاصې دی. له حاضر امیرشیرعلی خان سره دوبری یادهیلې له منځه یوړغښ اتحاد تامین کړو چې په اغیزناکګ او دایمی توګه دروسانو نفوذله افغانستان څخه لرې کړی.. که په دی کارکې ناکام شولو نو باید دافغانستان سلطنت ټوټې ټوټې کړو ... دافغانستان فتح کول او دافغانانی سیمی دزیاتی برخې نیول ... زمونږ دشمال لوېدیځ سرحد د دایمی ساتنی لپاره

په مطلق ډول ضروري دی... زه له دې امله ستاسو دلارښوونو پر مطابق پیشنهاد کوم چې کابل ته یو برتانوي هیات و لیږی.(۱۵)

دسپتمبر په ۱۰ ، یو قاصد چې پر آس باندې سپور و اه یو خبر سره کابل ته په ترات راغی چې یو برتانوي هیات کابل ته راته.هغه ولیده چې په ښار کې ماتم و او امیر شیرعلی خان دخپل زوی عبداله جان د مړینې له امله غمجن و ؛ همدارنګه هغه خبر شوی و چې روسي هیات احکام ترلاسه کړی وو چې دبرلین دکانګرس دغوندې د موفقانـه پای نه وروسته افغانستان پریږدی. په عین وخت کې برتانوي هیات له ۲۵۰ عسکرو سره چې دسر نویل چمبر لین (SirNevilIechamberIain) له خوا قومنده ور کول کیده او له لویس کیو کناري (LouisCavagnar،) سره چې دسیاسي منصبدار په حیث له هغوی سره و ، پیښور ته رسیدلی و .

د ۱۸۷۸ کال دسپتمبر په ۲۱ ، هیات دجمرود کلاخوا ته چې دخیبر درې په خوله کې ده پر مختنګ وکړ چیرې چې دې هیأت توقف وکړ په داسې حال کې چې کیو کناري (Cavagnari) او دساتونکو یوه ډله په یوه تنګۍ کې پر آسونو باندې سپاره تللی. دلته هغوی له افغانـي سرحدار فیض محمد سره مخامخ شول چې هغه په مؤدبانه ډول مګر په ټینګه یې هغوی ته وویل تر هغې چې له کابل څخه موافقه ترلاسه نه کړم تاسې نه پریږدم چې پرمخ ولاړ شی .

داکاملا په ښکاره توګه دامیر شیرعلی خان له خوا یوه هڅه وه چې لـه دغسې یو ې شرم اورې معاملې څخه ځان وژغوري او په دې کې هیڅ شك نشته چې تر یوه مختصر مخ نیوي او زیاتو خبرو اترو څخه وروسته به هیأت ته د تلو اجازه ورکړل شوې وای . لیکن او دوجنګ دلې ؛ په سیمه کې کنترول په لاس کې واو دیوه پوځي ماجرا اراده یې کړ یوه ؛ ربښتیا هم دا احتمـال لري چې نائـب الحکومه دې په خوښی سره دهیات دمعوقف کول خبر اوریدلی وي. لیږ تر لږه دناسمو راپورونو سیل چې خرګند شو ، په غلط توګه پر فیض محمد باندې دکیو کناري دسپکولو او تهدید ولو تور لګـاوه. او داحقیقت چې لیکن له لندن څخه دستورلرونکې لارښوونې ونه منلې په تیره بیاهغه

چې ده ته يې امر کاوه چې هيأت يې دخيبر له لارې څخه له کومې بلې لارې څخه
ولېږي څرګند وي چې ليتن دسولې دپاره دخبرو اترو پر ځای شخړه غوښتله . (۱٤)

که څه هم ليتن شخړه غوښتله دانګريزانو حکومت ـ دهندوستان دپاره د بهر
نيو چارو له وزير لارډ کرينبروک (LovdCranbrook) څخه پرته ـ دجنګ لپوال نه و
او د حکومت ځنې غړي دليتن پر اعمالو باندې بدګمانه وو ؛ مګر عام قهرا و غضب د
نائب الحکومه له مصرانه غوښتنو سره يو ځای شو ؛ په پای کې کرينبروک ته موقع
په لاس ورغله ؛ او ليتن ته لارښوونه وشوه چې اميرشيرعلي خان ته يو اخطار و
لېږي چې د پوره کيدو نيټه يې دنوامبر ۲۰ وه . کله چې کوم ځواب ترلاسه نشو ،
برتانوي پوځونو له افغاني سرحدونو څخه تيرشول او په دغه ډول دانګليس او
افغان دوهم جنګ پيل شو . دوه ورځې وروسته له اميرشيرعلي خان څخه يو پيغام
راورسيده چې په خواشيني کوونکي ډول سره دنوامبر په ۱۹ نيټه استول شوی وا و
څرګند وله يې چې هيأت اجازه درلوده چې پرمخ ولاړ شي .

افغانان د۱۸۳۹ کال په پرتله په ۱۸۷۸ کال کې لږ تکړه وو چې حمله په شا وتمبوي .
اميرشيرعلي خان ديو پوځ دجوړولو هڅه کړې وه او ديرې دلې چې کالي يې
متحد الشکله وو (يونيفورم) په تشکيلاتو کې يې برې ترلاسه کړي و چې دهغې
دلې يوازنی سره نښلوونکی قوت دخپلو غړو په ميلان کې پروت وچې په هماغه شيبه کې
ولمبيدې . قبيلو چې دهيواد اصلي او رينيتيني قوت و ، عصري وسلې نه وې ترلاسه
کړې خو لاتراوسه پورې له چړو او پخوانيو پلتې ، ييزوتو پکونو سره مسلح وو .

دانګريزانو پلانونو ايجابول چې ددرو پوځونو په واسطه جنګي عمليات تر
سره شي . يو پوځ چې په شمال کې دبريد جنرال سام براون (Sam Brown) له خوا
قومنده ورکول کيده ( هغه څوک چې دخپل نوم يې په هغه چرمي کمربند ولو
باندې کيښود چې افسرانو په دويمه نړيواله جګړه کې ترملاتړل) خيبر ته ننوت او دکې
خوا ته يې پرمختګ وکړ . بل په مرکز کې د«جنګيالي» جنرال رابرټس (Roberts))
ترمشرۍ لاندې تر کرمې (Kurram) پورې وړاندې لاړ ؛ دريم پوځ چې د بريد

جنرا ل ډونالډ ستیوا رت (Donald Stewart) له خوا و رتـه قومـنده ورکـو ل کیده پخوانی لاریې چې کندهارته، تللي وه تعقیب کړه . عملیات ښه تنظیم شوی وو او ډېلان له مخې ښه سرته ورسیدل، یوازې په کرې اوږ، خیبر که لهجزئي مخالفت سره مخامخ شو ل :

امیر شیرعلی خان لکه څنګه چې د ده پلار هڅه کړی وه د ه هم هڅه وکړه چې بیا ملاتړ برابر کړی . خو دپلار په شان له نا کامی سره مخامخ شو. په څواشینی سره یې خپل زوی یعقوب خان پر تخت کښیناوه او د روسیی ترکسنا ن خواته پرآ س باندی سهورولاړ او هیله یې وکړه چې خپل هدف دارو پایی* قدرتونو د کانګرس په ورانده کیږدی . دارو پایانو په نوع پرستی باندی دهغه عقیده هیڅکله ترآزمو نې لاندی ونه نیول شوه څکه چې روسانو هغه ته اجازه ورنه کړه چې په دې برخه کې اقدام وکړی . امیرشیرعلیخان په داسې حال کې چې په هرات کې ناروغ و خپل وروستی پیغوردوله څواب یې دزاړه تګماریعنی کافمن «خوږ وڅرګندو نـو» تـه ورکړ. پس له هغه د۱۸۸۹ کال دفبر وری په ۲۱ هغه د واجل داعی ته لبیک وو ایه او زړې سترګې له دنیانه پټې کړي. » (۱۷) کوچنی خاورین لوبنـی ربنتیا هم د دوواوسپنیزو لو ښو ترمنځ چیت پیت شوی و. *

یعقوب خان د خپل پلاردمرګ خبر په اوریدو سره بېړه وکړه چې له انګریزانو سره دسولې لپاره خبرې اترې پیل کړي ګوم چې خوشا لـه ووچې دسولـې لپاره خبرې اترې وځند وی. هندوستان ته دکانځنی اوبرید په واسطه زیان رسیدلی وکه څـه هـم خونړی نـه وخود زیات تاوان څرګند وی و. برسیره پردې د بې یاره امیر شیرعلیخاـن د مرګ لـه خبـرسره پـه ا نګـلستان کـی د یـې ثبا تـه عا مـه ذهنیت بد لید ل پیـل شوی ولـه دې امله، لوئیس کیوکـنا ری له یعقـوب خان

---

* له کوچنی خاورین لوبنی نه دلیکوال مطلب په هماغه وخت کی کمزوری افغا نستان دی او له دوواوسپنیزلو ښو څخه یې مرام په هماغه وخت کی دوه لوی قدرتونه دی چی یو یې دبرتانی لوی قدرت لوبل یې تزاری روسیه وه . (مترجم)

سره په ګنډمک کې وکتل او د ۱۸۷۹ کال، د مۍ په ۲۰ یې یو تړون لاسلیک کړ چې
دې تړون هغه بندیزونه لري کړل چې په افغانستان کې د انګرېزانو پر سفر کولو
باندې لګول شوي وو او په کابل کې یې یو سیاسي استازی مقرر کړ. (۱۸)

د ګنډمک د تړون په مراعاتولو سره په شمال کې برتانوي پوځ ته امر وشو چې
پېښور ته لاړ شي. دا یوه داسې پرشا تلنه وه چې د اردو په تاریخچه کې یو له خورا ناوړه
وپرشاتلنو څخه شمېرل کېږي. هوا دومره توده وه چې نه زغمل کېدونکې وه، او د کولرا ساري
ناروغي په چټکۍ سره په عسکرو کې خپره شوه. له دې امله مرکزي او جنوبي قواوو ته امر
وشو چې سړې هوا ته انتظار وکاږي او کیوکناري چې په دې وخت کې د سرلوئیس
په نامه (Sirlouis) یادیده د ساتونکو له یوې ډلې سره چې درې برتانوي منصبدا-
ران او پنځه اویا سپاهیان یې لرل کابل ته د سیاسي استازي په حیث ولېږل شو.

کیوکناري، برسېره پر دې چې هوښیار او زړه ور و، بېره ناک او په ځان
غره هم و او د توطیې دپاره یې د سیاسي منصبدار معمولي تمایل هم درلود. هغه په
مودبانه توګه حضور ته ومنل شو او په بالاحصار کې ورته ځای ورکړل شو
چې تقریبا ۲۵۰ ګزه د امیر شیرعلي خان له ماڼۍ څخه لرې و. د یو څه مودې لپاره
ټول شیان سم بریښېدل که څه هم د هیأت غړي د کابل په کوڅو کې له یو شمېر
داسې کسانو سره مخامخ شول چې دوی ته یې په قهر سره کتل او تندي یې تریو نیولي
وو او له چا سره چې د هیأت غړي مخامخ شول د هغو شمېر بو څو تنه وو.

د سپتمبر په ۲، یو افغاني کنډک چې د ترکستاني اردل (Tarkesteni Ardal) په نامه
یادیده مارش وکړ چې خپل معاش ترلاسه کړي. چې اته میاشتې ورته نه وو
ورکړل شوي او د دولت په ذمه باقي پاتې و. هغوی ته اطلاع ورکړل شوه چې په
نظر کې وه چې هغوی ته یوازې د یوې میاشتې معاش ورکړل شي نو عسکرو وار دوړ
جوړ کړ، پر خپلو منصبدارانو یې لعنت وایه او د عدالت غوښتنه یې کوله.

له هغې سره درې نور کنډکونه ژر یو ځای شول چې په دې وروستیو
وختو کې له هرات څخه را رسیدلي وو او هغوی ته هم معاش نه وو ورکړل شوي.

شا وخواته تر مغشو شې ګرځيدلې وروسته د غو عسکرو ته د امير شير
علي خان دسلطنتي ماڼۍ خواته لارښوونه وشوه چيري چې هغوي دقزلباش ګادر
له خوا په شاوتمبول شول . هغوي پس له هغه برتانوي هيئات ته ورغلل چې هلته
د سپاهيانول ، ډزوسره مخامخ شول . هغوي په داسې حال کې چې په غضب وو
د خپلوتنو پکو نو لپاره خپلو بار کونو ( دلښکروا ستوګنځي ) ته ستانه شول ، په لار کې
يې د کابلي ښاريانو زيات شمير کسان سره راغونډ کړل . په عين وخت کې يعقوبخان له
ژړلو پرته نور هيڅ ونکړل او خپل لاسونه يې مروړل په داسې حال کې چې دارګ
يادسلطنتي ماڼۍ ملايانوزاري کوله چې خپل ميلمانه حمايه کړي . کله چې هغه بالا-
خره دافغانانو عمومي کوماندان محمدداود او ته ، کلن وليعهد موسى جان وليږل او
عسکر دتشويق له مرحلې څخه تير شوي وو . ترسخت مقاومت نه وروسته ، دماسپښين
په دروبجو کيوکناري اودهغه ساتونکي ډله مړه شوي وو .

دغې پيښې د افغانانو په باب پخوانی اصطلاح تائيد کړه چې هغوی خونړي
اوسخت زړي خلک دي . خو يو ځل بيا احساس اوله قضيې څخه دافغانانو بشپړ بې
خبرتيادپيښې په باب ديوعيني رپوټ پرضد کاروکړ هيڅ کله داسې شوا هد را منځ ته
شوي نه دي چې څرګند کړي چې حمله پخپل سرد ياغي عسکرو له بغاوت نه
پرته بل هيڅ شی نه و . دا بې مانا ده چې باور وکړو چې يعقوبخان ديوې پيښې توطئه
جوړه کړي وه چې خامخا به د هغه دتاج اوتخت په قيمت تمامه شوي وي .

دلته بيا هماغه شان چې برنس و وژل شو ، دبغاوت علت دافغانانو نارضايتي
وه چې نه يې غوښتل يو داسې حالت ومني چې په هندوستان کې منل شوی و . برنس
مکناټن او کيوکناری سياسي نمايندګان نه وو که څه هم له دغه اصطلاح څخه کار
اخيستل کيده چې د هغوی دريځ څرګند کړي . هغوی « استوګني اوسيدونکی »
وو چې دهغوی ورسپارل شوی مسؤوليت دا و چې افغانی چاری اداره کړي نه دا چې
دافغانستان او لويې برتانيې ترمنځ رابطې ته انکشاف ورکړي . امير عبدالرحمن خان
چې ارحقا يقوبا ندي پوهيده او کوم دليل يې نه درلوده چې يعقوب خان

له تور او ملامتې څخه خلاص کړي، موضوع په سمه توګه مطرح کړه او وې ویل چې، « دانګریزانو سیاسي نماینده ځان دافغانستان دواکمن په حیث ګاڼه او یعقوبخان ته یې امرانه دستورونه ورکاوه چې هغه باید څه وکړي. افغانانو له دغې لارې څخه بد یوړل او هغوی پرهغه باندې بریدوکړ.» (۱۹)

کله چې د کیوګناري دمرګ راپور هندوستان ته ورسید، دجنرال را برټس اوځ ته چې صرف پنځوس میله له کابل څخه لرې وامر وشو چې مخ په وړاندې لاړ شي او ښار ونیسي. دسپتمبر په ۲۷ یعقوبخان چې پر آسې باندې سپور ولاړ چې لهرا برټس سره وویني خو هغه یعقوبخان په بې علاقګۍ سره ځانته ومانه ځکه چې انګریزان په دې عقیده وو چې هغه، پر کیوګناري باندې په حمله کې رول درلوده. نه ور ځې وروسته را برټس په آسانۍ سره دکابل چونۍ ته چې مشربې نه درلودلما تې ورکړه او ښار ته داخل شو.

نوموړی جنرال چې په دې وخت کې دکابل واکمن و یوځیرک عسکر و مګر بشردوست نه و؛ ده ونشو کړای چې پر کیو کناری باندې د حملې برخه وال وپېژني، هغه هر افغان چې دانګریزانو له پرمختګ سره یې خپل مخالفت ښکاره کړ ظاهراً په دې دلایلو په بیړه اعدام کړل چې هغوی تول د خپل پاچا په مقابل کې یاغیان وو ـ داپه قانونیت کې افراط هماغه دبدنامی لکه وه چې په ۱۸۳۹ کال کې ترینه کار اخیستل شوی و. دملکي مشاورینو له اعتراضونو سره سره، دافغان وژنې عمل دوام وموند ترهغې چې له لندن څخه د خاصو امرونو په وسیله ددغې افغان وژنې مخه ونیول شوه.

په عین وخت کې دانګریزانو حکومت ځان د یوه مشهور سرې په موقف کې وموند چې پړانګ یې تر لکۍ نیولی و، ځکه چې که څه هم دافغانستان فتح کول آسان و مګر دافغانستان خلک مخالف وو چې دا حقیقت ومني چې هغوی فتح شوي وو. ځرنګه چې دانګریزانو واکمنې بوه « دچوکیدار له غرفو» څخه وه چې یوازې دقوی له لاری ساتل کیدای شوه.

يعنې دغه اشغال زرګران تمام شو او دهندي ما ليه ورګوونکو په لوړ آواز د ګلکو اعتراضاتو موجب وګرزيده. ديوه برتانوي استوګن او سيدونکی له خوا د کنترول سيستم پهڅرګنده توګه غيرعملي و اوهمدارنګه دافغانستان د تاج او تخت لپاره ديوګوداګي پيدا کول ناممکن و. او په دې وخت کې قبيلو په بغاوت لاس پورې کړی و.

د ستونزې او مړنی نښې نښانې داذوقې برابرونکو پردلو باندې بريدونه وو او رابرتس سمدلاسه ددغې ستونزې غچ دکليو دورانولو په واسطه واخيست او د دغو قريو اوسيدونکی يې دافغاني ژمي سړوته وايستل؛ خو دغه دعمل فقط کرکه زياته کړه. په عين وخت کې افغاني سخت ګيرو خلکو درهبرۍ استعداد د پـه دوو افغا ني مشرانو کې وموند چې يو يې دين محمد نوميده چې په ملامشک علم سره مشهوراو دغزنۍ دملايانو مخکښ واو بل يې محمدجان نوميده چې دوردکو خان وورډک د کابل په جنوب کی پروت دې.

دډسمبر په لومړيو وختو کې رابرتس له جاسوسانو څخه خبر ترلاسه کړ چې افغانانو ديوې حملې بندوبس کاوه. دډسمبر په ۱۰ د کوهستانيانو يو قبايلي لښکر دجنرال مکفرسن ( Macpherson ) په واسطه تيت و پرک شوي و. په دا بله ورځ يعنې دډسمبر په يوولسمه دوردګو يو لښکر دمحمد جان خان په مشرۍ په ناڅاپي ډول له دجګړ جنرال مسي ( Massy ) سره مخامخ شو چې له څلورو توپونو سره چې دآسونو په واسطه کشيدل او له ۲٤۰ سپرو افرادو سره کابل ته نژدې دچهاردهي له دشتې څخه تيريده. سره له دې چې توپونه ورسره وو، قبايلي خلک په ثابت ډول سره پرمخ تلل ترڅو چې رابرتس خپلې لښکرې دقرارګاه پناه ګا ته په شا بوتلې. دغه جزئي برياليتوب او دانګريزانو په شاتلنه ددې موجب وګرزيده چې په زرګونو افغانان له شاوخوا قريو څخه دله دله کابل ته را روان شي چې هيله يې لرله چې د ۱۸٤۱ کال دژمی پيښې تکرار کړي خو دا ځل وضع بل شان وه ځکه چې انګريزان ښه مجهز وو، دعسکرو روحيه قوي وه او رابرتس يـو داسې انسان وچې له کمزورې شوي الفستن څخه يې زيات توپير درلود. پـه غلچکې

دول دبې نتيجې و يشتلو له يو څواونيو څخه وروسته، دافغانانو ذخيري خلاصې شوې او ددسمبر په ۲۳ هغري هڅه وکړه چې دقرار گاه خواته چپاو يوسي، اچې د ديوانو پهشان راتلل.» (۲۰) دهغوي زړه ور تيايي فايدي وه؛ برتانوي تو پونو دهغوي په سلوگونوکسان وړيل. په دابله ور ځ بل برتانوي پوځ دډگرجنرال چارلس گوگ (Charlaes Gough) ترمشري لاندې يوه آرام نبارته راورسيد ؛ افغانانو چه خپل مړي او ټپيان يې وړل، خپلو قريوته ستانه شوي وو.

داخل انگريزان دخپل خصلت له مخې چې خپل زړه ورمخالفين ستايي، يو څوتنه يرغمل ونيول؛ ديوه برتانوي منصدار په قول، «هغوي ښه سريان وواو د مرگ په خاطريي زښته ديره کړکه وښودله» (۲۱) دري ورځې وروسته رابرتس تولو هغو کسانو ته چې په جنگ کې يې گډون کړي وعمومي ښښنه اعلام کړه.

په کابل کې دبغاوت په موده کې هڅه لنبکړي چې په کندهار کې وي له آرامو وختو نو څخه خوندا خيستې. انگريز انو د اميرشيرعلي خان په وجود کې چې د «دل» ( dil) له وروڼو څخه مهردل خان زوي ويوهمکار افغاني مشر پيدا کړ. مهردل خان هغه څوك و چې داميردوست محمدخان دوا کمنی په دوره کې کندهار اداره کړي و. دغه سړي يعني شيرعلي چې جاه طلبي يې دهغه له قضاوت نه زياته وه دکندهار والي شو او ملکي اداره يې په غاړه واخيستله چې دخپل پلار دقدرت په واسطه چې دخلکو په ياد و خوندي ساتل شوې وه. دخطريوازيني سيمه هرات و چې معزول شوي يعقوب خان دوالي په حيث کارونه سرته رسول.

په دې ترځ کې دانگريزانو حکومت دځای په ځای کيدو ديوه پلان د پاره په تياره کې لاس او پښې وهلې. داڅرگنده وه چې له زيات لگښت اودا يمي پوځي اشغال څخه پرته دافغانستان اداره کول ناممکن و. مشکل داو چې له هيواد سره څه وکړي. مشکل شخصاً پخپله اميرعبدالرحمن خان حل کړ. دی داميرافضل خان يوتعالی اوهوښيار زوی و چې دولس کاله يې تاشکند کې فراري و.

دهغه روسي کوربنو چې که څه هم په بدبيني سره يې حوصله کړې وه

په دې وخت کې پیشنهاد وکړ چې هغه باید دافغانستان دتاج او تخت څښتن وګرځي.
په ښکاره هغوی داینده مرستو د پاره کړمه تقاضا ونه کړه؛ خو هغوی هغه ته
ددوه سوو نفرو لپاره لوازم برابر کړل او دبندرهانو والنغاني ترکستان ته یې ولیږه
چې هلته له هغه سره افغانی والي سلطان مراد خان او دافغانستان دشمالي پوځ
قوماندان غلام حیدرخان په بېره یوځای شول :

دامیرعبدالرحمن خان دراڅرګندید وخبر په یوه ښه وخت کې لیټن ته
ورسید ځکه چې دمخالفې پارټۍ لیبرا نو د جنګ درو مبني لګښت د ۱۳۸۰۰۰۰ پونډو
ناڅرګندکسر په برخه کې انګولل پیل کړي وو. نائب الحکومه له یوي غیر
ډیپلوماتیکي لیوالتیا سره په کابل کې سیاسي منصبدار سرلیپل ګریفن SirLepalGriffin
ته لارښوونه وکړه چې له امیرعبدالرحمن خان سره دسولې خبرې اترې پیل کړي
او له هغه څخه دې په افغانستان کې دهغه دراڅرګندید ودلایل وپوښتي.

امیرعبدالرحمن خان ددې دپاره افغانستان ته نه و راغلی چې پخوانی ملګري
وویني؛ دهغه ځواب دا و چې دافغانستان دتاج او تخت دپاره خپله غوښتنه وسپاري
او له انګریزانو څخه وغواړي چې دهیواد دخپلواکې په تضمینولو کې له روسانو
سره یوځای شي. ګریفن یوشو ورځې وروسته ځواب ورکړ چې لویه بریتانیا په
دې مسأله کې دروسانو هیڅ ډول علاقمندي نه مني. خو انګریزان موافق دي چې
امیرعبدالرحمن خان دکابل حکمراني ومني.

وروسته له هغه چې دغه لیک واستول شو دېرزرد ډیزرایل (Disraeli) محافظه
کار حکومت دلبرالانو (Liberals) په مقابل کې سقوط وکړ او لیټن او دافغانستان
په باب دهغه سیاست له دې سره له منځه ولاړ. دجنګي عملیاتو په موده کې دلیټن
جنګ یوه ستره سیاسي مسئله وه؛ لبرالانو داجنګ ناوړه او دهم بې ګټې بللی او له
دې امله یې دبرتانوي رای ورکوونکو په منځ کې ورته احساسات غني کړل.
دېرزرد کرانبروك (Cranbrook) پرځای دهرتینګتن (Hartington) مارکویس
(Marquess) مقررشو او لارډ ریپان (Ripon) په کښینې کې هندوستان ته دنوي

نائب الحکومه په حیث لاړ. لیټن چې تر پسایه پوري له خپل عقل څخه داده وهندوستان پر ېښود اوپه بې دبه تو ګه یې لیبرالان «له ژخه لرونکوخو ګانو» سره (acorned) تشبهه کړل .

نوی نائب الحکومه لیږال و چې دافغانستان اشغال چې زیات لګښت یې ایجابوه پای ته ورسوي مګر هغه درك کړه چې امیر عبدالرحمن له دې سره مخالف وچې د یوه «برتانوي کاندید» په حیث وپېژندل شي . افغاني مشر په خپل وارسره درك کوله چې غلزي هیڅکله دهغه په مقابل کې صمیمی نه وواوهغوي په لجوجانه تو ګه په پیشنهادشوي قرارداد کې ددغه شرط له منلو څخه انکاروکړ چې له کابل څخه یې د کندهار بیلوالی غوښت. خوهغه بالاخره دغلزو وملکان راضي کړل چې دانګریزانو له خوا وړاندې شوي شرایط بایدومنل شي ددې لپاره چې له افغانستان نه دا نګریزانو وتل تضمین کړواو وروستي تعدیلات به هم منځ ته راشي .
هغه دجولای په ۱۷ ، له ګر یفن سره په چهار ریکار کې و کتل او هلته هغه په رسمي تو ګه د کابل دا میر په حیث و منل شو او په افغاني خزانه کې موندل شوې پیسې له پخوانې توپ سره چې په کابل کې نیول شوی و یو ځای هغه ته مسترد کړل .

په دغه شیبه کې یونساو ره خبرله کندهار څخه را و رسیده .
سر دونالدستیوارت (SirDonaldstewart) چې ښار یې دمارچ په ۲۷ د کابل په لور په یوه مارش کې پریښې وپه لاره کې دغلزو یوه لښکر ته ماتې ور کړې وه ، دغه کارپه کندهار کې قوا کمزورې پریښوده اود ایوبخان له خوا چې دهرات والي وديوې حملې باعث وګرزیده چې له یوه لښکر سره چې تقریباً اته زره افراده یې لرل دکندهار خواته پرمخ تلل و. انګریزان که څه هم له دغه حرکت څخه خبرو و، په زیاته اندازه اندیښمن نه وو ځکه چې له افغانانو سره مخامخ جګړه سخته نه ده. دګرجنرال جی. ر. اس بوروس (G.R.SBurrows) له ۲۷۳٤ عسکرو سره هلمندته ولېږل شو چې هلته افغاني والی شیرعلی خان له دوه زر

افغاني عسکرو سره انتظار کاږه په یوه سوځونکې لمر کې له دولس ورځو ډیرو لو نه وروسته انګریزانو له خپلو متحدینو سره تماس ونیوه خوصرف دومره یې ولیدل چې افغاني لښکرې تېتیدلې وې او کوښښ یې کاوه چې له ایوبخان سره یوځای شي .

دجولای په ۲۲ ، ایوبخان هلمند ته ورسید او ددوو یوځونو ترمنځ دسپروعسکر ویولړجزئي جنګونه پیل شول . بوروز په یوه سخت حالت کې وځکه چې ایوبخان په کندهار باندې په برید کولو کې ددوه ممکنو لاروچانس درلوده او تو دوخه زیاته وه. له سرواوهوسامرکزونو څخه پیغامونه چې هغه یې هڅاوه چې «په ایوبخان باندې یو ګوزار وکړي » صرف دهغه په ناکرارۍ کې زیاتوالی راووست. (۲۲)

دجولای په ۲۶ ، بوروز خبر شو چې ایوبخان دمیوند دقریې له لارې دکندهار خواته پرمختګ کاوه . دانګریزانو یوځ سمد لاسه وخوځید ه چې دایوبخان مخه ونیسي . دجولای په ۲۷ ، میوند ته نږدې په محمود آباد کې چې هلته افغانان لادمخه په محاصره کې وو دانګریزانو پرځ په ناڅاپي توګه دافغانانو پرپوځ باندې ودانګل اوجنګ پیل شو. په اوله کې جګړه دتوپونو جګړه وه په کومه کې چې انګریزانو په اریانتیا سره ځانونه تر افغاني توپ ویشتو نکو چې له کابل څخه وو تیټ احساس کړل :
افغاني توپ ویشتو نکې ښه روزل شوي وو او خپل توپونه یې په نوونه یې طریقې سره وچلول. تریو څو ګړیو وروسته دقبایلي خلکو یو ډله چې له یوه تنګې څخه راوتلي وه کله چې د انګریزانو له لیکو سره مخامخ شوه بې اختیاره یې په خپل سر پرهغوی باندې برید پیل کړ. دې ډلې د جبکوبز را یفلز ( Jabcobs·Rifles ) په دووتولیو باندې ګوزار وکړ چې ترماتې وروسته په بمبئي ګرینا ډیرز (Bombay Grenadıers) باندې دسقوط په حال کې ورغلل . بمبئي ګرینا ډیرز هم په خپل وارتوتې توتې شول او تول بیرته په ویره سره په اروپایي شپږ شپیتم کنډک (European Sixty-Sixth Regiment) باندې ورو غورځیدل .

بوروز زښت ډیر کوښښ وکړ چې بیا عسکر سره مرتب او تنظیم کړي ، خو

ښهري وعسکرو دې ته غاړه کېښوده چه حمله وکړي او حالات دې حدته رسېدلي وو چې له سمېدو او بهتر کېدو څخه يې خبره تېره وه . زياتره له عسکرو څخه هغه چې اوس يوه دله وه کندهار ته، چې اېرې وې، لېونۍ توګه وتښتېدل، خو شپږ پټم کندک سخت مقاومت وکړ او د ميراني سره تر آخره پورې وجنګېده . ټول شپه تښتېدلي عسکر چې په ستونزو سره د کندهار خواته تلل، د تندې او وېرې له امله او خوريدل لو څخه په عذاب شول . له بله مرغه د هغوی له بنو ط العوافغانانو د مسافر و د ښار بارلو ټول ځنډولي و، خو کله چې ژوندي کسان دامن ځای ته راورسېدل ۱۱۳۰ تنه يې ورك وو او يو زرر خيزتوپکونه، ۲۵۰۰۰۰ ګولۍ او ټول نقليه وسايل د افغانانو په لاس کې وو .

دغه ماتې چې په ناسمه توګه د ميوند د جنګ په حيث شهرت لري، يوه له يو شمير ماتو څخه وه چې د نولسمې پېړۍ بر تانوي پوځ په اشيا کې د مخامخ جګړې په موده کې زغملې وه . داسې ښکاري ده چې جنرال بورو ز هر هغه څه، چې ممکن وسر ته رسولي واي؛ افغانانو خپله فتحه دغير منظمو عسکرو د ميراني له برکته ګټله، چې د زيانونو پروايې نه لرله او خپله حمله يې سر ته ورسوله . د ايوبخان عسکرو د توپچي له افرادو نه پرته، ډېر لږ څه سر ته رسولي و او د هغه سپاره لښکر ځان صرف د نيول شوي لښکر ګاه د لوټولو د کار د پاره ساتلي و .

دغې تباهی د برتانويانو د پاره يو وېره چې خوشحالي يې هم لرله پيدا کړه او هغوی ته يې هغه عسکر ور په ياد کړل چې « د افغانستان په د ښتو کې تږيان او پرېښودل شوي وو » او د خوني افغاني مير مينو د چړو قرباني شوي وو . زياتې اوږه پيکه توګه پېره مصور شوي خيالي افسانې چې د دې ادبي بقاياوې نور نو د حقيقت پر بنسټ ولاړې نه وې او حقيقت دا وچې د قبايلي خلکو ډېره مهمه وسله يوه چاړه وه . د يوه برتانوي صاحب منصب د رپوټ پر اساس چې هغه لېږل شوی و چې د ښځو لو مراسم وشاري « جندونه ځنګه چې د هغو په برخه کې راپور ورکړي شوی و نه د هغو اندامونه پرې ك شوي و او نه د جنګي عمليا تو په موده دغه کار سر ته رسېدلي

وه او که څه هم شاوخوا ته په ځینو بانـدې رښتیا هـم زیات تېرونه وو ، ماهیځـکلـه هغسې چې د ځینو خبریالانو په واسطه بیان شوي وېه دا رنګه د کرکې وړ بـربـریت باندې دلاس پورې کولو دیوه رښتیني مثال په باره کې هم وانه وریدل . (۲۳)

ترتیاهې وروسته دا په کندهارکې جنرال پرایمر وس (Primrose) ته چې د خوا شینۍ بوروز لـه خواورسره مرسته کید له پرېښودل شوچـې ضعیفه شوې موراال بیاژوندی او قوی کړی .

دجولای په ۲۹، دایوبخان دپوځ تر وار رسیدو دمخه ټول افغانان له ښـار څخه ایستل شوی وو. افغانانو دتل په شان ونشو کړای چې پرا ستحکاماتو باندې کړو مه اغیزه ولری ، خود برتانوی ایسارشو و عسکرو ناڅاپی حمله لـه یوې سختې ماتې سره مخامخ شوه اودیوالونو ترشالېنکرې ځای په ځای شوې چـې دمرستې لپاره انتظار وکـازی .

مرسته په لارکې درارسیدو په حال کې وه. لومړی پلان داوچې له هنـدوستان څخه دلښـکرو په واسطه چـپاوراوري خورابرتس پـه کابل کې دموقع تقاضاوکړه او په متقاعدکو ونکې توګه یې استدلال کاوه چې سپاهیان دافغانانو اند ول نه وو: داګست په ٦ هغه دیوه پوځ په مشری چې تقریباً لس زره افـراده یـې لرل له کابل څخه، کندهارته روان شو. یوه ارابه هم ونه ځرخیده؛ ټول تجهـیزات او مهمات پرآسونو یا پرکچرو داتوزورو غیرنظامی خلکو پراوږو بانـدې باروو. دوه ویشت ورځې وروسته پوځ ۳۱۰ میله لار کندهارته، په یوه مارش کـې وهلې وه چـې ند رتا دکندهار له مسافې برابـره وه .

ایوبخان دانګریزانو دنږدې کیدو په خبر سره د کندهار له کلا بندی څخه لاس واخیست په غوندیو کې یې یو دفاعی موقف غوره کړ چې دښار شمال ته پرتې وې. داکتوبر په اوله رابرتس یوه عمومی حمله پیل کړه چې په دې حمله کـې هغه درک کړه چـې افغانی غیرمنظمو عسکرو په زړه ورتیاسره مقاومت وکړ که څه هـم په داسـې حال کې چـې دایوبخان پوځ په خواشینۍ سره هرات تـه وتښـتید .

دي جګړې دافغان او انګلیس پر دوهم جنګ باندې پرده کش کړه. په بریتانیا کې حکومت او اولس دواړه علاقمند وو چې هغه څه، پای ته ورسوي چې بې ګټې مساله ثابته شوې وه. یوازې کابل تر اغیزنا کې اداري لاندې واو د کابل دوامداره اشغال یوازې امیرعبدالرحمن خان کمزوری کولی شو ای چې هغه، لا پخوا دخپلو اتباعو له خوا له انګریزانو څخه د طرفداری په وجه، تر اشتباه لاندې و.

داګست په ۱۱، دکابل تخلیه پیل شوه او د ملکې ویکتوریا QueenVictoria له کلکو اعتراضونو سره په وایت هال کې (Whitehall پریکړه وشوه چې له کندهار څخه لاس واخلي. ملکه، قانع وه چې کندهاریانو هیله لرله چې د عیسوي واکمنۍ ګټې وساتي. مګر دهغې نظر برتانوي منصبداران تر اغیزې لاندې راوستلی ونشو دچاچې تومانچې یې په لاسو نوکې وی او په کوڅو کې ګرځیدل یا هغه پیرد ارانو چې دایې ضروري ګڼله چې شاتر شاو دریږی. له نیمه مرغه کابینې ته، سم معلومات ورکړل شوی وچې ریپن (Ripon) ته دسمدلاسې شاته کیدنې او تخلیې امر صادر کړ. والي شیرعلیخان په ناخوالی سره دانګریزانو جیره او په هندوستان کې پناه ومنله ؛ او داپریل په ۲۱ ښار دامیرعبدالرحمن خان یوه منصبدار محمد هاشم خان ته وسپارل شو.

هر هغه څوك چې ددغه جنګ پیښې څیړي ددي جنګ او داکلینډ دافغاني ماجرا تر منځ ورته پیښو ته متوجه کیږي. هري یوې ته، هندوستان ته د روسانو ګواښ په واسطه لمن وهل شوي وه او په کابل کې دیوه روسي هیئات دحرګندید وپه واسطه منځ ته راغلي وه. داواوس څرګنده ده چې دغه دانګریزانو له خوا وېرې یې اساسه وی. داچې روسانو پر هندوستان باندې د کندو نو او دافغانستان دغرونو څخه په تیریدو سره بریدکولای شواې، پرلاره کې یې د لښکر کښیو ستر ننګی ز غملاي شو اي اودیوی خطري په حیث بر تانوي هندي تکره پوځ ته رسیدلی شواې، داتول تردې اندازې پوري غیر محتمل بریښي لکه چې فرض کړو افغانانو چې دټولو نورو یرغلګرو په مقابل کې مقاومت کړی و، څو قزاقانو (Cossacks) ته به لار راغلاست ویلی وي.

بې له شاك څخه، تورل هغه څه، چې انگر يزان يې په لته کې وو دسولي دخبر واتر وله لارې تر لاسه کيداې شول؛ خو دنو دلسمې پېړی مزاج له اسيايي حکمرانانو سره د سولې دخبر واتر ودپاره هغه ضروري حوصله نه درلوده.

جنگ د دواړو خواو دپاره گران تمام شو هندوستان شل مليون پوندو او درې زره عسکر وله لاسه ورکړل؛ افغانستان له دينه هم زيات اودرو ند تاوان و زغمه ځکه، چې دافغانستان مړه شوي کسان دهغو کسانو په منځ کې له خورا ښو او زړه ور کسانو څخه، وو کوم چې خپل ډېري او چړي يې د بهرنی تو پکونو په مقابل کې په رقابت کې په کار اچولې وې. دامير شير علي خان پر تخت بياندې د کښينوا ستلو نه وروسته يو محل بيا، په اقتصادي او سياسي بر مختلك باندې چې شوي و زيات نظارت او کنترول حتی له دينه هم د زيات زيان سبب شو او يو محل بيا له خارجي څخه د افغانانو کرکه او بې باوري زياته شوي وه ، د متعصبينو او مير تجعينو قدرت زيات شوي وا و دحکومت صلاحيت کمزوري شوی و.

زياتو تاريخ ليکونو د برتانوي عسکر و او دهغوی سپاهي ملگرو زړه ورتيا د لېنسرز ((Lancers) ) بريدونه او درابر تس او دهغه دا فرادو مارش ثبت کړی دی. خو يولږ شمير تايخ ليکونو دافغاني کروندگرو په باب ليکنی کړی دې. کله چې د غه کروند گر دانگريزانو له توپخانې سره مخامخ شول دهغوی ځ پل بيرغونه له پخواز پاته په ويا ړ سره و ړل. (٢٤)

ژوند د سرو گلانو بستره نه دی

(امیر عبدالرحمن خان)

# لسم څپرکی

## امیر عبدالرحمن خان، (پولادي امیر)

دامیر عبدالرحمن خان په څېر له سترو پاچاهانو څخه دلږو کسانو څخه دومره زیاته کړکه شویده لکه چې دامیرعبدالرحمن خان څخه شویده. که چېرې دغه د بې رحمه شخصیت خاوند دافغانستان و اکثر لاسه کړله هغه وخت راهیسې یوازې یوڅو کلونه تېرشوي دي٭ خوپه هغه وخت کې د هغه دوا کمنۍ څرګندې نښې نښانې په زیاته اندازه لامنځه تللې وې. دهغه مترو که او لږ ژونده شاهي ماڼۍ داسې بریښي له بهرانې چې کابل ته په تیریو تندۍ ګوري؛ دښار په منځ کې د هغه مقبره له پامه اوېږي. څو تنه او دزیاتو خلکو هېر شوې عکسونه دهغه تور بخن مخ او وري سو- څوونکې سترګې چې ځلالري دهغه دسرداری ظرافت سره څرګند وي. د ده ملت هغه د«خوني»په نامه یادوي ــ چې هغه و ـ او همدارنګه د وانګلسیانو ملګري»یې یولې چې هغه نه و، که څه هم دهغه دو کش په سیمو کې دابو ناوړه محکومیت دی. سره له دې تر لو هغه له زیاتو جهتونو څخه یو برجسته پاچا و، هغه یو داسې سړی و چې څېر کیتابي لرله، څرګند تضاوت یې کاوه او د اوسپنيزې ارادې خاوند و یعنې یو دول افغاني اتم هنري (AfghanHenryvIII) و.

امیرعبدالرحمن خان په ګډ ودي او بې نظمي کې دیوه هیواد پر تخت کښېناست او یو ملت یې ترشا پرېښود . هغه د خپل شخصیت په قوت خپل ملت له منځه یو

٭ دا دلیکوال یوه تېروتنه ده ځکه چې له هغه وخت را هیسې یو څو کلونه بلکې زیات کلونه تېرشوي دي. (مترجم)

پېرېو څخه وا و يسته ا او يـوه د ا سې څـه نـه يـې را ووسا وه چې لـه اتلسمې پېړۍ سره يې ورته والى درلود . دغه دوا کمنۍ په پيل کې افغانستان دکسته‌نوا وسخت ګيرو قبايلي مشرانو له خوا اداره کيده چې هغوی پرقبايلي ملوک‌الطوايفي باندې ټينګګ ولاړو و . غوربي افغانستان دهغه‌دوراره اودښمن ايوب خان له خوا ټينګګ وساتل شو چې هغه يو منلـي اوفعال مشرو او په ميوند کې دخپل فتحې له امله مشهور او پر ملايانو باندې ګران و. دامير عبدالرحمن خان د تش په نامه قلمرو په مرکز کـې د ازادو قبايلو غرغر موجود وچې له تـېر يګنيو ، قبيلوی جنګونو او لوټماريو سره عادت شوی وو. دهغوی په نااو اروا غرني تياتو بي کې تقريباً لاس تـه نه راتلونکي غلزي چې دقبيلو يوه خورا لويـه قبيله ده او کرکجن خوا بدی لوبي غوښتونکي دراني موجودوو.دکا فرستا ن په په غرونو کې کافران او سيدل چې خپله ميرا نه يې د مسلما نـا نو د سرو نو پـه پريکوا وکې حساب کړه. دمرکزی غرونو له هرې خوا څخه راغونډ شوو مغولي هزاره ګانـو له خپلـو پښتنـو او تاجکوګاونـډ يانـو سـره پـر له پسې جنګونه و کول . (۱)

هغـه سيمـه چې دبانــدې وا قـع وه د پارس ، روسيې اولويـې بريتا نيـې له خوا اداره کيدله اوددې سيمې لـه سرحدونو څخه، چې حد ود يې تا کل شوی نه وو په دايمي ګوابڼ سره دفاع کيدله ،کله چې په دامپرياليزم عڅيه (مداوجزر) لاهم پورته کيده . دننه په افغانستان کې يو يالحي پوځ ، يو بې نظمـه حکـومت ، يوه تشه خزانه اودبې کفايتي او بدويو متجاوز نظام موجود و .

شل کلنو کوښښو نو دغه ستو نزې حل نه کړې ؛ بياهم، امير عبدالرحمن خا ن دخپل سلطنت په دوره کې وکړای شو چې خپله واکمنې پياوړې کړی او خپل ملت دخان تابع وګرزوی چې تر هغه دمخه هيڅ وا کمن دا کا ر نـه وکړی اووې کړای شو چې ديو وخت دپاره دکورنۍ جګړې دوره پای ته ورسوی ؛

امير عبدالرحمن خان په ۱۸٤٤ کال ياد همدې کال په‌شاوخوا کې زيږيدلی دی؛ افغانان

دلېږ يدو ليتو ته په يې تفاوتی سره گوري. په کابل کې دهلکتوب له دورې څخه ور وسته هغه ولاړ چې له خپل پلار افضل خان سره يو ځای شي چې نو موړی دامیر دوست محمد خان دريم زوی وهغه چې دافغاني ترکستان دوالي په حيث، بې خدمت کاوه. په ديارلس کلنی کې امير عبدالرحمن خان دتاشقرغان والي شو، دا يو داسې مقام وچې هغه په داسې حالت کې ترلاسه کړ چې په عمر وړو او په عقل پوخ و او په خپل ځان يې باور درلود او په ځوانمردی سره يې دادنده په غاړه واخيستله.
دوه کاله وروسته چې دهغه پلار دتفتيش په غرض يو سفر وکړ وی ليدل چې د بهار ګيو خلک خوشاله وو او ديوښه دليل له مخې ماليات راټول شوی نه وو چې په نتيجه کې دغه تجربه چې په ځوانی کې يې له قدرت څخه دخپلو لو په ګټه او طرفداری کار اخيسته پای ته ورسيده
څو کاله وروسته امير عبدالرحمن خان بياد خپل پلار خپګان او ستونځې وليدې او داځل ديوه راپور له مخې هغه «شراب څښل او هندی بنګ يې څکول.» پخپله دامير عبدالرحمن خان په قول، هغه دهمدې عمل په خاطر زندان ته واستول شو او ديوه کال دپاره يې ځنځيراو زولانه کړ (يوه کيسه چې باور پرې نشي کيدای). هغه خوشې شو او په ترکستان کې ورته دافغانی پوځ قوماندانی ورکړل شوه چې هلته هغه څو کاله دبدخشان د ازبکو مير انو پر ضد په جګړو کې تير کړل . (۲)
دامير دوست محمد خان ترمړينې وروسته، کومه جګړه چې د تاج او تخت پرسر باندې په ۱۸۶۳ کې پيل شوه ، هغه په روښنی څير کی بيان شويده . په هغه وخت کې امير عبدالرحن خان تقريباً نولس کلن وترزياتی اندازې پورې دځوانه سردار دوړ والي او قابليت په سبب افضل خان او اعظم خان وکړای شو چې ديوی لنډی مودې دپاره دامير انو په حيث حکمرانی وکړي، خو تر ۱۸۶۹ کال پورې نوموړې ورورونه او امير عبدالرحمن خان دروسانو په منځ کې يو فراری و. له همدې ځايه امير عبدالرحمن خان دانگريزانود يرغل په هرج ومرج کې ميدان ته راووت چې دقدرت دپاره خپله بريالی هڅه وکړي .

په شپږ ديرش کلنی یاپه همدغسې بوسن کې چې دهغه دوپار دوره وه، نوې امیر دېخې ځوانی په زیات زور او قوت کې او پوره غښتلی و . امیر عبدالرحمن خان پوداسې سړی و چې متضاد خصلتونه يې لرل ، کیدای شي چې هغه هم سخی او حق شناس وای او هم ظالم او بدګمان ؛ د هغه دکرېکتر دوه قطبیتوب ښايي په دی حقیقت کې څرګندشی چې دهغه لپاره دوه بهز ره پوري خارجيان ګلید ستون او بسمارك وو . هغه دخپلې پاچاهی په ساتنه کې دتردد او وسوسې کومه نښه نه درلوده او حتی نن هم دهغه دشکنجو او اعدامولو یاد ونه په افغانی بازارونو کې یوه لړزه راولی . هغه پر اسلام باندی یوه ټینګه عقیده درلوده مګر دهغه لیرا لتیا تل داسې عیاریدله چې دهغه له سیاستونوسره موافقت ولری. يو دهغه له زیا تو څرګند و ځانګړنیا وو څخه سرداری ظرافت وچې اجازه یې ورکوله په خصوصی حالت کې پر هغه حیثیت باندې ملندې وهی چې هغه په دخلکوترمنځ په جدی تو ګه ساته .

وروسته له هغه چې انګریزانو افغانستان تخلیه کړ او امیر عبدالوحمن خان کندهار ونیوه ډیره موده لانیره شوی نه وه چې وراره یې ایوبخان له يوه پوځ سره چې دولس زره افراد يې لرل دهغه ښار په لور يې مارش وکړ . ګرشك ته نږدې دغه لښکری دامیرعبدالرحمن‌خان له يوه پوځ سره مخامخ‌شوی چې دغلام حیدر له‌خوا قومنده ورکول کیده.جګړه تنده وه او په اوله‌کې دامیر عبدالرحمن خان خواته راو ګرځیده کله چې هراتی سپاره لښکر خپل دچتکی تیښتنی همیشنی دود تعقیب کړ . خو په ناڅاپی تو ګه دایوبخان دجنرال حسین علی خان او اتیاتنو عسکرو له خوا یوی خوراکلکی حملی هغوی ته پوره‌بری وربه برخه کړ.وروسته له هغه ایوبخان‌پرمخ ولاړ او کندهار یې ونیوه .

دغه څرګنده تباهی دامیرعبدالرحمن خان په واسطه په کامیابی او خوشالی بدله شوی وه. په دی دلیل چې ایوبخان هرات یې مدافعینو پریښی و اوهغه په ترکستان کې خپل کومانـدان قدوس خان ته امروکړ چې پر هغه ښار برید وکړی قدوس خان له يوزر از بکی سپرو افراد وسره دهندوکش ددې شاو خـواته په

ترات‌سره راغی او هرات ته راورسید پخوا له دې چې ایوبخان پوه شي چې د هغه دنظامي عملیاتو اډه تهدیدیږي . دامیرعبدالرحمن خان گومان سم و. ایوبخان خپل ټول پلویان له ځان سره د کندهار په لوریوه مارش ته بیولي و واود هرات سا تنه دیوی وړی چاوڼي په غاړه وه چې ډیر ژر تسلیم شوه .
تقریباً په عین وخت کې امیرعبدالرحمن خان په کابل کې یو نوی پوځ جلب کړاو د کندهار خواته یې پرمختگ وکړ چې پر لارکې له زرگونو قبایلي غلزیو سره یو ځای شي. ایوبخان سمدلاسه کندهار تخلیه کړاو ښارته نږدې یې یو دفاعي موقف غوره کړاو کله چې هغه له جنرال را برټس سره مخامخ شوزیات دفاعي قدرت یې درلود . امیرعبدالرحمن خان د جگړې په باره کې په لاندې ډول ولیکل :
زما دسلطنت ددورې له پیل نه رومبۍ دادتولو روزل شوو عسکرو دپاره معمولې دود وه څوری به چې هره دله تر بلې قوې ولیدله، هماغه شیبه به یې کمزورې د له پرینبو دله اوله قوي دلې سره به یو ځای کیدل. دغو ځلورو کندکو نولیدل چې جگړه زما په گټه پای ته رسید له ځکه نوسمدلاسه یې دزاره ښارله لوړاو هسك څخه خپل د توپکو خولي راو گرځولې اودایوبخان د پوځ پر، اصلي قسمت باندې یې گولی و اورولې چې زما له لښکر وسره په سختۍ سره جنگیده. «۳»
ایوبخان او دهغه ملاتړ د هرات خوا ته پر یوې لارې و تښتیدل چې په دې وخت کې ټول له هغې لارې سره کاملاً اشنا و. هغه چې ښار دامیرعبدالرحمن خا ن له خوا کلابندو مونده یې خپلې تیښتې ته دپارس خواته دوام ورکړ. په پای کې هغه هندوستان ته لاړاو هلته یې دانگریزانو جیره ومنله اونوریې نو له افغانستان څخه لیدنه کتنه و نه کړه .
په دې وخت کې امیرعبدالرحمن خان تش په نامه دافغانستان د واکمن په حیث هغه وکړه چې په بې طرفانه توگه دبډو داستعمال ، وژنې عذاب او تگې له لارې په هیواد باندې دحکومت ا غیزه ناکه کنترول ته پراختیاور کړي. دهغه کارگران و ، هغه په خوراصداقت سره اعلام کړه ، «هر ملا اود هرې قبیلې اوقریې

مشرځان یوځېلواك او آزاد پاچا فکر کاوه او تقریباً ددوه سوه تیرو کالونو لپاره له دغو ملا یانو څخه ډېر زیات تر و آزادي د هغوی د ټولواك له خوا هېڅکله سلبه شوې نه وه .... د دغو کسانو ظلم او ناروا د زغملو ور نه وه» (٤)

دامیر عبدالرحمن خان یو له لومړنیو هڅو کاتو څخه دا و چې پوځ قوي کړي. هغه د عسکري خدمت په برخه کې د جبري عسکرو پر ځای یې یو ډول اجیر عسکر منځ ته راوړل او په نظم سره یې عسکرو ته معاش ورکول پیل کړل. حتی دې کار هم یو اغېزناکه پوځ منځ ته رانه ووړ ځکه چې خواشیني تاجکان او هزاره گان چې د عسکري یو نامناسبې وظیفې دپاره جلب شوي وو د هغې د سرته رسولو لپاره یې چندان روحیه ښکاره نه کړه. له بله مرغه امیر عبدالرحمن خان غلام حیدرخان چې یو وفادار او ټکره ماد وون و درلود لکه څنگه چې ریډچیف (Redchief) د کپلنگ Kipling په دغه اثر کې Balladofthe King Jest رول درلود. مانا دا چې لکه څنگه چې غلام حیدرخان چرخي د امیر عبدالرحمن لپاره یو وفادار او ټکره لاس لاندې سړی و همداسې ریډچیف د کپلنگ په دې اثر کې (د ټولو کارپاچا قصیده) یو وفادار او ټکره ماد ون .

دامیر عبدالرحمن خان د شلو کالو سلطنت د دورې په موده کې د هغه پرځ او حکومت د درو بغاوتونو په وسیله وازمویل شو. له دغو بغاوتونو څخه لومړی بغاوت په ۱۸۸٦ کې په غلزو کې پیل شو چې هېڅکله یې پر خپل بدگمانی باندې غلبه ونه موندله، چې د انگریزانو پر ضد جنگ کې امیر عبد الرحمن خان د هغوی یو لږ څه همکار غوندې و. د هغوی په نظر د جنگ دوه قهرمانان محمد جان وردك او ملا مشك عالم وو چې وروستنی مړ شوی و او ړومبنی چې ډېر زیات تو سړی و نیول شوی و او پر ته له شك څخه د امیر عبدالرحمن خان په لمسون وژل شوی و.

د ۱۸۸٦ د دوبي په وخت کې غلزائي قومونو غزني ته نږدې مرحوم ملا مشك عالم د یوه زوی ملا عبدالکریم په مشرۍ یوه بلوا پیل کړه (دې وروستي شخص ته چې ملا مشك عالم وامیر عبدالرحمن خان چې هم یې ترینه کرکه کوله او هم ترینه ویرېده یو بد عالم نوم ور کړی و او ورته یې په سپکه نظر کتل» (٥) په افغانستان کې د غلزیو

هره بلوا یوه جدي ستر نزه ده ځکه چې دا یوه لویه قبیله ده او همدارنګه د دې قبیلې
غړي جنګي مهارتونه لري. امیر عبدالرحمن خان په یوې مځې کې طلا او وسله
دواړه په کار وا چول چې د پاڅون مخه ونیسي. هلته په دې کې هیڅ شك نشته چې که
چیرې غلزیان په خپل مخالفت کې یو موټی وای امیر عبدالرحمن خان او دهغه پوځ
به لږ چانس درلودای؛ مګر دالې په شان هغوی دننه د قبیلوي دښمنیو په واسطه سره
جلا شوي و. امیر عبدالرحمن خان یو څو تنه پرغمل ونیول چې دا یوه څرګنده ونه
وه چې هغه د غوړ بړونکو خلکو د پخلا کولو ضرورت درك کړی و. عبدالکریم
هندوستان ته وتښتیده مګر دهغه د پلار قبر وسپړل شو او د قبر محتویات یې په یوه
کنده کې وا چول شول. امیر عبدالرحمن خان اعلام کړه، «په دې نړۍ کې ناپوه
ملایان دخلکو د بلې هرې طبقې څخه د زیاتو جنګونو او وژنو سبب ګرځیدلي دي» (٤)

دامیر عبدالرحمن خان د کامیابۍ یو دلیل دا و چې دهغه ستونزې د دې پر ځای چې
همزمان وي پر له پسې وې؛ خو دا بله بلوا دیره موده وروسته جوړه نشوه بلکې
زر جوړه شوه. هغه څوك چې دامیر عبدالرحمن خان لپاره یې افغاني ترکستان اداره
کاوه دهغه د تره زوی اسحاق خان د امیر اعظم خان زوی و او په دې
دول هغه یو داسې سړی و چې د تاج او تخت دپاره یې ځینې ادعاګانې درلودې.
امیر عبدالرحمن خان له قدرت څخه دخپلوانو په ګټه او طرفداري د ناوړې استفادې له
خطرونو څخه خبر و او معمولا محتاط و چې خپل خپلوان له مهمو پستونو څخه لرې
وساتي مګر هغه اسحاق خان دیوه بې خطره سړي په حیث ګڼلی و ځکه چې هغه د
نقشبندیه طریقې له پیروانو څخه دیوه پیر و په حیث خورا زیاته مذهبي لیوالتیا لرله چې
دخپلو خلکو کښیو (ریاضتونو) او پرهیزګاریو په وجهه مشهور و.

خو د ۱۸۸۸ په لومړیو وختو کې جاسوسانو امیر عبدالرحمن خان ته دهغه د تره
زوی د نا ارامه کوونکو فعالیتونو راپورونه راوړل. د دې لپاره چې امیر عبدالرحمن
خان هغه وازمویي، په لغمان کې اوړني ارام ځای ته لاړ او هلته هغه په دروغو د
خپل د مرګ راپور رجوړ کړ. ځکه نو اسحاق خان سمدلاسه د تاج او تخت ادعا وکړه.

امیر عبدالرحمن خان چې خپلې بدګمانۍ ګانې تائید کړې وې، دکابل یو ځیسې دخپل یو پسرو ځ جنګیالي غلام حیدرخان چرخي په قومنده شمال خواته ولیږه اود بدخشان والي غلام حیدر توخي ته یې امرو کړ چې د لوړیدیځ لورته یو لښکر ته لار شوونه وکړي. دسپتمبر په ۲۳، دواړو لښکرو یو له بل سره تماس و نیوه او شپږ ورځې وروسته یې داسحاق خان پوځ تاشقرغان ته نږدې په یوه اوږده او خونړۍ جګړه کې بوخت کړ. دافغانانو او روسانو دتشنج د دغه دورې په موده کې په افغانستان کې، (۷) شمالي لښکرې په جنګي وسایلو ډیرې ښې سمبال وې او یو ازې یوې پېښې برې دامیر عبدالرحمن خان په برخه کړ. دجګړې په موده کې دغه ځینې عسکر دازبکو د سپرو افرادو دیوې ډلې له خوا نیول شوي وو. خوشاله ازبکو پریکړه وکړه چې خپل بندیان اسحاق خان ته یوسي. خودغه وروستني شخص چې اسحاق خان و لیدل چې دغه سپاره افراد دهغه خواته په تراټ راتلل او چې دهغو په منځ کې یې دامیر عبدالرحمن خان عسکر و پیژندل نویې یوه غلطه نتیجه واخیستله. هغه پرخپل آس باندې سپور شو او له اوسپین ځخه په تیریدو سره یې ځان یوه دامن ځای ته ورساوه اود هغه پلویانو یې له خپل مشرځخه په یوه مغشوش حالت کې جګړې ته ترلمر پر یوتوپورې دوام ورکړ او پس له هغې تسلیم شول. او اسحاق خان د روسانو د یوه میلمه په حیث ځای په ځای شو او وروسته له هغې یې ځان مذهب ته وقف کړ.

داځل امیر عبدالرحمن خان یوه سخته جزا اندازه کړه؛ بغاوتونه هم زیاتیدل اوازبکان برخلاف دغلزیو اسانه اهداف وو. داسحاق خان له منصدارانو ځخه زیاتره په توپونو الوزول شوي وو؛ په سلګونو عسکر رانده شوي وو او خپلې کورنۍ یې دغلامۍ په دود پلورلې وې. دیرغلو شدت دبریتانیې په پارلمان کې د تبصرې یوه موضوع وګرزیده او دهندوستان نائب الحکومه امیر عبدالرحمن ته یو پوښتنلیک ولیکه. دسر زورې عبدالرحمن خان دغه ځواب چې «انګلیسان هم بغاوتونه نه خوښوي» هغوسپاهیانو ته یوه ځرګنده اشاره وه چې هغوی تر خپلې بلوا وروسته په ۱۸۵۷ کې په توپونو الوزول شوي وو.

دری کاله وروسته یوبل بغاوت پیل شو او داخل بغاوت د مرکزی لور وسیمو په مغولی هزاره گانو کې منځ ته راغی. هزارگانو د شیعه مسلمانانو او پر دیو په حیث برسیره پر نژاد په مذهب کې هم تل د خپلو گاوندیو له لاسه کړاوونه زغلمي دی او کله چې موقع ورته په لاس ورغلې ده خپل کسات یې اخیستی دی. (۸) هغوی دیو وخت لپاره د امیر عبدالرحمن خان واکنمی منلی وه خود ۱۸۹۱ په پسرلی کې هغوی یاغی شول او دامیر عبدالرحمن په قول یې مخانونه دیوه جلاملت خلک اعلام کړل. (۹) هزاره گانو تاریخونه لیکلي نه دي او دا ممکنه ده چې د افغاني مالیه ته لوونکو حرص دی دهغوی د بلو اسبب گرز یدلی وی. حتی دا ممکنه ده چې امیر عبدالرحمن خان بغاوت په کارا چولی وي چې له هغه څخه دوسایلو په حیث د پښتنو د استحکام په هغو لو کې کار واخلی. په هرحال، د ایرازنی موقع وه په کومه کې چې هغه له پښتنو قبیلو څخه مرسته تر لاسه کړه.

هزاره گانو چې دسیمې څیز والي او پخپله دهغوی ثابتي زړه ورتیا ورسره مرسته کوله دغو کلونو لپاره له خپلې سیمې څخه دفاع وکړه خو په پای کې یې دغلام حیدر خان چرخي له خوا چې تل فتحه دهغه په برخه وه په اورزگان کې مات شوی وو. په زرگونو هزاره گان مریان شوی وو، دهغوي توان او زغم له هغوي څخه دیر بنده کار گران جوړ وي. زیاترو نورد پناه گاه لپاره هندوستان او پارس ته وتښتیدل.

دامیر عبدالرحمن خان خاورم او وروستی داخلی ستر تکو یا نښته د شرقی افغانستان له کافرانو سره وه چې د پیر یو دپاره یې د خپلو مسلمانو گاوندیانو پر ضد د تباهي بو جنگ پر مخ بیولی و. د مسلمانانو زیاتره مشران چې په هغو کې گود تیمور هم شامل و د دغو کـافرانو د بیخي ورك کولو هڅه کړی وه، د کافرستان دسیمې په واسطه مات شوی وو. اوس نو امیر عبدالرحمن خان دهغه هڅه په هڅه کې و چې د زورور تیمور له وسه پوره نه وه او امیر عبدالرحمن خان له دې څخه خبر و چې ددغو مشرکینو لاندې کول او د اسلام پر دین باندې د هغوی مشرف کول به دهغه اعتبار زیات کړي. په تیره بیا د دیندارو په منځ کې یعنی دهغه چا په نزد چې هغه پښوی تر یو یې

اندازی بدگمانه‌و. همدارنگه‌انگریزانو دکافرانوپه‌مورد کې علاقمندې ښکاره کوله او یوه زړه و رېرتانوي مامور سرجورج سکات رابرټسن دکافرستان مرکزي برخې ته یو سفر کړی‌و. (۱۰) په‌دې دول ځلورافغاني پوځونه په مختلفودول سره په‌پنجشیر، چترال، لغمان او بدخشان کې د کافرستان په پولو کې متمرکزوو.

د۸۹۶، په ژمي کې دغو پلټنې کتارونو چې یوه ټکي یامرکز ته متوجه شوي وودیوې ناڅاپي حملې په واسطه کافران ونیول او تقریبا په څلوېښتو ورځوکې یې په‌آساني سره فتحه په‌برخه شوه. خو دغه‌بریالیتوب یو پر دمین بـریالیتوب نـه ګڼل کېږي پ‌دې دلیل‌چې زیاتره کافران لاهم په لیندیو سره مسلح‌وو. دافغانانو ترفتحې وروسته پرنومورې سیمې باندې دنورستان نوم کښېښودل شو او زیاتره کافران داسلام پر دین باندې مشرف شول. یوشمېر له هغوڅخه په لغمان او پغمان کې میشته‌شول او یې محمکو تاجکان ولېږل شول چې دهغوی ځایونه‌ونیسي.

دغه‌اقدام په لویه بریتانیه‌کې دعکس العملونو موجب وګرزېده چېرې چې کافرانو دکپلنګ (Kipling) اونورو لیکوالو د رومانونو له برکته‌یوڅه‌شهـرت درلود. څرنګه چې زیاتره خلک په‌دې عقیده ووچې کافران عیسویان وو، مذهبي تولنو چې په‌هغه وخت کې په خپل اوج کې وې‌دیوه سپینځلي اعتراض سـا نـده پیل کړه چې د هغوی داعتراض اصلي مطلب دنائب الحکومه‌په‌واسطه امیرعبدالرحمن خان ته انتقال‌شو. امیرعبدالرحمن خان چې دهغوی اعتراض‌یې په خپلوچاروکې یو دول یې ځایه لاس‌وهنه ګڼله‌او خپل قاریې په‌دې کې پټاوه‌هغوی ته‌یې په‌صمیمت سره په دې دول ځواب ورکړچې ما«په‌کافرانوکې کوم‌عیسوي پیدانه‌کړ.» (۱۱)

دشوروشرونو نه ارامه کولو او دداخلي فشارونو له لارې کولو څخه وروسته چې څه وخت دامیر عبدالرحمن خان دپاره باقي پاتې وهغه په دغه وخـت کـې هڅه وکړه‌چې په افغانستان کې داخلي تشکیلات منځ ته‌راوړي. یو څ دیوه‌سیستم له‌مخې چې داته نفري سیستم (هشت نفری سیستم) په نامه سره یادیده‌بیا تنظیـم اوجوړ شوی و اودغه‌سیستم پر اساس هرې قریې ته امرشوی و چې له اتونفرو

څخه يو نفر و ټاکې چې د دوو کلونو دپاره عسکري خدمت ته ولیږل شي او هره قریه مجبوره وه چې د هغه دیونیفورم، ځارنی او ساتنی لګښت ور کړي. نیپوتیزم ( Nepotism ) د خپلوانو طرفداری) له غوره اغیز وسره چې دافسرانو پر دله باندې ئې لرلې تر پخوا لږي شوې وې. دادامیر عبدالرحمن خان له خوا د کوم تردید له سببه نه بلکې له دې سببه وچې د هغه زیاتره خپلوانو دامیر شیرعلی خان، یعقوب خان، ایوبخان او اسحاق ملاتړ کړی واو اوس یې په فراریت کې ژوند کاوه. همدارنګه امیر عبدالرحمن خان هڅه وکړه چې خپل عسکر په نوی یا عصری وسلې سره سنبال کړي. خو څرنګه چې هغه ونشو کړای چې د هیواد له محدود و طبیعي منابعو څخه د کافی حربی مهماتو دپاره پیسې ورکړي، د هغه عسکر ولږ وکړای شو چې په خپلو نو وتوپکونو سره مشق وکړي. په امیر عبدالرحمن خان باندې دیوه عسکر له خوا د مستقیم ډزو کولو څخه وروسته داختی لږ عاقلانه وګڼل شوه چې د عسکرو دپاره دې حربي مهمات برابر شي.

همدارنګه ملکي حکومت له سره جوړ شو. خزانه په دوو ځا نګوویشل شوه چې یوه یې شاهي او بله یې دولتي ځانګه وه. او د واړه شاهي ماڼی ته انتقال شوې وې چیرې چې له ویرې څخه لږ زیدونکي مامورین دامیر عبدالرحمن خان تر نظر لاندې ساتل کیدای شول. د دولت زیات عایدات د صادراتو او وارداتو له ګمرکي محصولاتو او د دولتي ځمکو له عاید څخه لاس ته راتلل که څه هم امیر عبدالرحمن خان د تیودو رز Tudors په شان له چاسره چې هغه یې زیاتو لحاظو ته ورته والی درلود د ځمکو په ضبطولو کې له فعالیت څخه کار واخیست. دامیر عبدالرحمن خان د سلطنت په دوره کې د بدو او د غلامانو د بندیانو پیښې ډېرې کمې شوې ووچې سختې او مرګ کي جز اګانې يې لرلې.

امیر عبدالرحمن خان د خپل حکومت چې یو بشپړ مطلق العنان حکومت و شاو خوا ته یوه عامه نمایندګي جوړه کړه چې ظاهري بڼه یې دنما یندګی او مشورو وه چې البته هیڅوک پرې غولیدای نشو. یوه عالي شورا او یوه لویه جرګه له هغو مشرانو څخه جوړې شوې وې کوم چې امیر عبدالرحمن خان غوره ګڼل چې په

کابل کې یې وساتې ؛ خو دهغوی وظیفه کاملا مشورتي وه او حتی مشوره هم ډیره لږه ترلاسه کیدله.

قانون دامیرعبدالرحمن خان دپاره یوه خاصه ګټه درلوده. په رسمي توګه دهیوادشرعي قانون هماغه اسلامي قانون وځنګه چې دابو حنیفه له خوا بیان شوي دی دا قانون لکه څنګه چې پیښیږي داسلامي قوانینوڅخه یو خورالیبرال قانون دي داسې ګومان کیده چې قاضیان عدالت چلوي ؛ خو په عمل کې امیرعبدالرحمن خان اکثرا دغه مسئولیت پرغاړه اخیسته اودتعامل پرځای به یې له امرڅخه کار اخیسته. دهغه جنایي قانون یو وحشت ناك قانون وځکه چې هغه په دې ټینګه عقیده درلوده چې زیاته ویره یو داسې قوت دی چې دجنائي پیښو مخه نیسي. شکنجه هم پر له پسې وه اوهم تخیلي ،له بدمرغو بند یانوڅخه توقع کیدله چې خپل خواړه رانیسي اوپه زندان کې دخپلو ورو کوټو کرایه ورکړي. دامیرعبدالرحمن خان زیاتره قضاوتونه په، کابل کې دمقیمواروپایانو له خوا لیدل شوي وواو هندوستان ته راپورونه ورکړل شوي و وچیري چې هغه یاد داشت شوي وو اود کپلنګ په واسطه ثبت اوخوندي ساتل شوي وو. داسې ویل کیدل چې له کابل څخه، اوږدغزنلدي دپاسه دتوپ غږ له دغو دروشیانوڅخه شاید دهرشي ما ناور کړي دغرمې وخت ، دامیرعبدالرحمن خان دمرګ یادځینوبدمرغو مجرمینو د اعدام ما نا او دراپورونو پراساس هره ګړي دهغه دمرګ خبراوریدل کیده مګر د هغه مرګ ته زیاتې ورځې پاتې وې. سره له دې هم دابايد په نظر کې ونیول شي چې امیر عبدالرحمن خان قصداً خپل شهرت دبیرحمې په برخه کې زیات کړ او دهغه د جزا ګانو زیاتره کیسې پخپله دامیرعبد الرحمن خان په واسطه خپرې شوې وې. په حقیقت کې دهغه پریکړو اکثراً یو دول ستوغ اونیمګړي عدالت اود استثمارشوي شخص په برخه کې خواخوږي څرګند وله. دکابل کوتوال یا د پولیسو افسر هغه څوك چې د خپلو شهواني غوښتنو د ترسره کولو دپاره د کابل دخلکو په لوتو پسې ګرځیده او له خپل قدرت څخه یې کاراخیسته،

دژمې په یوه شپه کې چې دیخنۍ درجه منفي صفر وه په یوه پایې پورې و ترل شواو په او بوخشت شو ددې د پاره لکه څنګه چې امیر عبدالرحمن خان ویلی و، چې (دهغه توده وینه سړه کړې.) یوې ښځې چې له خپل بودا اوبې غاښو مېړه ته یې طلاق غوښته دامیر عبدالراحمن خان په امر یې خپل غاښونه ویستلي وو؛ یوناتوای چې تل به یې خپلو مشتریا نو ته له تیا کلي وزن څخه کمه دوډۍ ورکوله دهغه په خپل تناره کې اچول شوی و. (۱۲)
امیر عبدالرحمن خان له روسانو سره دخپلې استوګنې په موده کې دغربي تکنالوژۍ ځنې شیان لیدلي وواو دهغو کیفیت یې نما نځلی و. په نتیجه کې هغه دول دولخارجي متخصصین استخدام کړل اوهغوی ته یې وعده ورکړه چې زیات معاشونه ورته وکړي او دهغوې دساتنې ذمه وارې یې هم وکړه. دوه اروپايي ډاکتران کابل ته راوستل شول چې یو یې دامیر عبدالرحمن خان د ناروغتیا څخه څارنه وکړي چې هغه یو دول دبند وخوږو او بله یې یوه ښځه وه چې میرمنې له نسائي ناروغیو څخه وژغورې. یو مهندس، یودجبه خانې منصبدار، یود دباغۍ متخصص او یودغاښو ډاکتر راغوښتل شوي وو چې یوه کوچنۍ او په زړه پورې خارجي مهاجره دله جوړه کړي. (۱۳) دغاښو ډاکتر دخپل عاید تصدیق وکړچې هغه یې امیر عبدالرحمن خان ته دزیات اوځایدونکي سیټ غاښونو د برابر ولو د لارې لاس ته راوړې و چې امیر عبدالرحمن خان له دغو غاښونو څخه ددوومقصدونو دپاره کاراخیسته یود سیاسي اغیزې اوبل دژوونې دعمل داڅېزې دپاره: له یو ه مقتدراطرافي مشر سره به یې دخبرو اترو په ترڅ کې مکث کاوه غاښونه به یې له خپلې خولې څخه ایستل اود خپل دسمال سره به یې هغو ته ځلا ورکوله. ددغې معجزې په باب دغاښو دجوړ ولوله صنعت سره نا اشنا کسانو ته یو ریپوټ دخارق العاده قدرتونو له امله امیر عبدالرحمن خان شهرت تائید کړاو زیات خلک په دې عقیده ووچې دغه قدرتونه به دشیطان سوغات وي. خو دغو شوتنو خا رجیانو په سختۍ سره دسیمې په کلتور باندې زیات تاثیر اچولی دی ځکه چې افغانانو ته امر شوی وچې ددرد په ډېر و

خطرناکو حالاتوکې هم ځانونه له هغوې څخه لرې وساتي : دغه احتیاط رښتیا هم ضروري نه و؛ افغانان صمیمي وواو هیڅ یو خارجي دهغوې دلاسه کوم ربړ او زیان نه وزغملی .

دامیر عبدالرحمن خان دسلطنت ددورې ان په‌هماغه لومړې وخت کې پخواله دې چې هغه دانګریزانو پرضد ودریـزې او په یوه وخت کې کله چې دروسانو له خوافسشارونو دی ته اړ ایسته‌چې په‌دې برخه کې فکروکړې ، هغه دنائب الحکومه لارډدوفرین Lord Dufferin بلنه ومنله‌چې له‌هندوستان څخه‌لیدنه‌وکړي. په‌راواړندی کې دانګریزانود رباړ په احتیاط سره‌بندوبست وکړچې دلوبی بریتانیی له‌قوت اوبرم سره‌امیر عبدالرحمن خان تـر تاثیر لاندې راولی؛ هندې‌پوځ په بشپړ نظم او ترتیب سره راتول شو او دهندوستان راجاګان (شهزاده‌ګان چې خپلی قیمتی جامی یی اغوستی وې حاضروو چې دهغوې دشتمنی او خود نمـایی ښکارند وی وی. امیر عبدالرحمن خان یو کللك سرى و چې تـر اغیزې لاندې راوستل شی هغه د بنګال لانسرز(Bengrl Lancers)دتالندې او بریښناپه شان حمله بـې‌له‌هیجان‌اوتبصرې‌څخه ولیدله او چې په‌جواهروښکـلې کړل شوي راجاګان یـې ولیدل نویـې پوښتنه‌وکړه، «هغوی سرې دي که ښځې ؟»هغه‌له ډیرومیلمستیاووڅخه‌په یوه میلستیاکی‌یوه‌خطابه وکړه په کومه‌کې چـې ځینوله میرمنوڅخه داوریدل ونکوپه مخ‌کې پټ وخندل : امیرعبدالرحمن‌خان‌مـکث وکړاولارډدوفرین ته یـې څرګنده‌کـړه چې هلته ښځې هم حاضرې وې. نائب الحکومه په دې اعتراف وکړ چې هلته‌په میلستیاکې ښځې وې اوزیاته یـې کړه چې انـګریزان برخلاف دافغانانـوپه کورکې دخپلومیرمنود ساتلوپه .فکورې باندې عقیده نه درلوده. امیر عبدالرحمن خان مخ راواړاوه چې په میلمستیاکی حاضر کسان وازمېي اووې منله چې‌داخبره به حتماًحقیقت ولري؛ خوهغه‌دهغوی دخیرولیدلوته دوام ورکړاوپه‌میلمستیاکې دحاضرینوله‌خیروڅخه‌یې درك‌کړه اولاهم په‌دې‌عقیده وچې هغوی ښکـلې‌میرمنی‌حتماًپه‌کوروکې‌ساتی.(١٤) کومه‌اغیزه‌چې برتانوي قدرت په امیرعبدالرحمن‌خان باندې دهغه په هندې‌سفرکې

کړي وه دهغه په برتانوي ضد روش کې چې په زیا تیدونکي توګه یې وده موندله منعکسه شوې نه و . هغه خاصتاً د هندوستان لـه حکومت څخه کرکه کوله او پرې بدګومانـه وچې دهغه ویناوې او سیاست په سمه توګه لندن ته نه انتقالوي او اصرار کوونکې هڅې یې و کړې چې له برتانوي حکومت سره یوه مستقیمه مخابره منځ ته راوړي اوو رسره مستقیم تماس ولري. انګریزان راضي نه وو چې داومني؛ څو څرنګه چې هغوی علاقمند ووچې دامیر عبدالرحمن خان ملګرتیا تینګه او خوندي وساتي او په دې یې باوردرلوده چې ښايي لندن دراولپنډي داستقامت په پرتله په هغه استقامت کې زیات بریالیتوبونه ترلاسه کړي ، نـوا میر عبدالرحمن خان ته په ۱۸۹٤ کې رسماً بلنه ورکړل شوه چې انګـلیستان ته سفرو کـړي .

په دې وخت کې امیر عبدالرحمن خان ناروغ واو داشکمنه ده چې آیا هغه به ځان په هره پیښه کې خپل ملت سره تر دې اندازې پورې په خطر کې اچولی وي که نه . له بلې خوا، نایب الحکومه ته کوم چې او س لپسانډ ون (Lansdowne) بلل کېده ، دخبر نه ورکول او له هغه څخه دمشورې نه غوښتلو دیره ښه موقع له لاسه ورنکړل شي ؛ نو امیر عبدالرحمن خان یوله خپلو زامنو څخه دلیږلو په واسطه روغه وکړه .

کوم یو چې ټاکل شوي و دامیر عبدالرحمن خان دوهم زوی نصر اله خان وچې هغه یو پرهیزګار او غمجن سړی و چا چې له خپل ټول عمر څخه دوه کاله دې ته وقف کړي وو چې قران شریف حفظ کړي. څرنګه چې هغه له انګـلیسانو څخه سخته کرکه کوله او په دې برخه کې مشهور هم وداشکمنه ښکاریده چې د نصر اله خان حیثیت به د کافر وسیمې ته ددغه سفرپه واسطه زیانمن شي ؛ رښتیا هم داممکنـه ده چې پـلار یـې هیله کړې وي چې ښايي دغه سفر دهغه طبیعت او مزاج آزادي او ترقي غوښتونکی وګرزوي؛

افغانـي شهزاده د ۱۸۹۵ کال دمې په میاشت کې لندن تـه ورسید او دیـوه رسمی استقبال په ولولو کې ېږ ورړل شو. برتانوي اولس چې د کپلنګ د لیکنو او دخیبر دری په باب دلیکنو په واسطه معلومات ترلاسه کړی و ، یوه افغانی عالی رتبه میلـمه دلیدلو شو قمن و. نصر الله خان ملکې ویکتوریاته یو لیک وړاندی کړ چې دهغـه دپلار له

خواواوپه هغه کې د کابل اولندن ترمنځ دمستقیموسیاسي مخابرو دتاسیس هیله څرګنده شوی وه.

لارډسالیزبري Lord Salisbury دملکې له خوالخواب ورکړچې دغه دول مخابرې به په دواړوپایتختونوکې سفیران ایجاب کړي اوپه کابل کې دبرتانوي سفیرانوهغه مخکینۍ تجربې ښې تجربې نه وې ـ داخبره دېرنس، مکناټن او کیوګناري تجربوته لزاهمیت ورکول دي.

نصرالله خان په انګلستان کې هیڅ شی درك نکړل چې دانګریزانوپه مورد کې خپل افکاروته تغیرورکړي او کله چې بیرته کابل ته راغی ترپخوایي زیات له انګلیسانوڅخه کرکه اوبیزارې څرګنده کړه.

هغه خپل خاطرات دګرځندوی په دود په یوه کتاب کې ولیکل چې پلا ر یې دبین المللي دوستانه روابطوسره ددلچسپیوپه خاطردهغو دڅېریدومخه ونیوله.

دانګریزانوله خوادامیرعبدالرحمن خان دپیشنهادردول دهغه دپه قهرېدلو موجب وګرزید، هغه په لاندې دول ولیکل :

«زه نه غواړم چې په مشخص دول دکوم یوقدرت نوم واخلم مګر... ځینې قدرتونه یوې ژورې ته ورته دي چې هغه تر هغه وخت پورې دسرې وینې څښلوته دوام ورکوي ترڅوچې هغه سړی دکوم دردله احساسولوڅخه پرته مړشی .... ځینې قدرتونه دخپل زوراوفتوحاتوپه واسطه نوي هیوادونه نیسی نوربیا هغوی دچل ول، خیانت اودهیواددمشرانوترمنځ دکورنیوجګړودراپیداکولواوجګړوته دلمن وهلوله لارې نیسي په خپله هغوی ځانونه دپردې ترشاغلي ساتي.»(۱۵)

دوخت په تیریدوسره دامیرعبدالرحمن خان طبیعت اومزاج نرم شوا وعلت به یې بنایي داوچې هغه درك کړه چې مرګ دهغه خواته نژدې کیده مګر زیات غالباً له دې سببه نرم شوی وچې هغه خپل ټول احتمالي مخالفین له منځه وړي وو. دهغه مهمه اولویه هیله داوه چې لکه ویکټوریا زیات عمرژوندو کړي کومه چې ده پس له ځانه څخه دهمدغه دورې دخوراستړې ټولواکې په حیث پیژندله.

دهغه غوښتنه په ښکاره ترسره شوه ۰د۱۹۰۱ دمی په میاشت کی هغه په سختې ناروغی اخته شو دا ناروغی د پښتو رگو التهاب او نقرس څخه یو مختلطه ناروغی وه یعنې دهغه د کورنی یو تپینگار کوونکی دښمن چې دهغه وجودیې فالج کړ څو دهغه دماغ یې روغ رمت پریښود. دسپتمبر په ۲۰ یوې حملې دهغه ښی ارخ فلج کړ. اته ورځې وروسته هغه په یو خلاص دربارکې دافغانستان اداره اوواك یې خپل ترټولو مشر زوی امیر حبیب الله خان ته ورکړ او له دې سره جوخت یې یو کتاب هم ورته ورکړ چې په هغه کی دحکومت کولو دفن، دولتی چال چلند او سیاستمداری په برخه کې ځینې لارښوونې موجودې وې. هغه د۱۹۰۱ داکتوبر په ۱ ، تقریباً صرف په شپږ پنځوس کلنی کی مړشو څو دخپل ټول عمر یو زیات شمیر تجربې بې له ځانه پریښودې.

په افغانستان باندې «دپولادي امیر» دنفوذ یادهغه دپراخه وروالی یاقا بلیت په برخه کی کوم شك نشته. هغه داسیا په تاریخ کی یوله څو رازباتو ځیرکو او هوښیارو پا-چاهانو څخه واو لارد کرزن چې په هیڅوجه یو ملگری نه و، امیر عبد الرحمن خان یې د خپل عصر او زمانې یو نامتو سری باله - یو باتور (accdade) چې له خپل ځان څخه سوابل هیڅ ته یې دباتوری لقب په اسانی سره ورنه کړ.

کومې لارښوونې چې امیر عبدالرحمن خان خپل زوی ته پریښې دی له معنا څخه دکې او ارزښتناکې دی ځکه چې هغه لاتر اوسه پورې دافغانستان دبهرنی او کورنی سیاست بنسټ دی. امیر عبدالرحمن خان لیکلی دی «په دې کې شك نشته» څو افغانستان یو داسې هیواددی چې یا به یوه قوی او مشهوره پادشاهی اوسي یا به دځمکې له مخ څخه بیخی له منځه لاړشی. په موجوده حالت کې افغانستان یوه داسې وضع لری چې یې له پوځی خدمت یا کار څخه په مادی لحاظ هیڅ یو خارجی حکومت ته په درد نه خوری. په دی وروستی هدف کې چې هغه پوځی خدمت دی کیدای شی چې افغانستان دیوه بهرنی حکومت په دردو خوری او له هغه حکومت سره مرسته وکړی چې ښایې دافغانستان له لارې په تیرید وسره په یو بل خارجی هیواد باندې برید وکړی. څو پخپله دافغانستان لاس ته کول به لږ تر لږه د پنځوسو یا شپیتو کلونو دپاره دهر

پهړ نی حکومت دپاره یوه ښه پانګه اچونه نه وي....

دافغانستان سیاست باید دخپل دوو قوي ګاوند یو په مقابل کی دوستانه او صمیمی وي په تیره بیا دهغه یوه په مقابل کې چې په دې وخت کې ډیر لږ تیري کوونکی او دهیواد لږ دښمن دی چې غواړی دافغانستان هیواد له لاري تیرشی بایې د خپلو اکی په چارو کې لاس و وهی . (۱۶)

دکورنیو چارو په باب امیرالرحمن خان خپل جانشین ته په جدی توګه وویل چې دخانانو او ملکانو شورا ته دزیات واك له ورکولو څخه ډډه وکړي تر هغې چې داسې وخت راورسیږي چې ددغې شورا غړي پوره تعلیمیافته او سی؛ او کله چې داسې وخت راورسیږي «دافغانستان خالك به خپل ځانو نه دخپل امنیت په خاطر اداره کړي.» هغه همدارنګه خپل جانشین ته خبرداری ورکړ تر هغې چې خلك چمتو نه وي داصلاحاتو دمنځ ته راوړلو څخه ډډه وکړي او خپله وینا یې دشیخ سعدي چې چې دده داشعارو داقتباسو لو لیوال و په شعر سره پای ته ورسوله:

هغه ځیرك ځوان دپیسو امیانی په خپل جیب کې خوندي ساتي چې هغه هر لار وی ته دکیسه براوغله په سترګه ګوری .

بل هیڅ افغانی پاچادراتلونکی نسل له لاسه دومره زیات کړاو نه او بدویل نه دي ګاللی څومره چې امیرعبدالرحمن خان زغملي دي. اوسني افغانان دهغه ددیورن له تړون څخه چې له انګریزانو سره یې لاسلیك کړی دی ډیره کرکه کوی یعنې یو عمل چې افغانان یې هیوادته یو خیانت ګڼي.دهغه له ظلمونو څخه لاډیره موده نه ده تیره شوې او دهغه دخپلوانو خاطره چې دده دغضب او زیات احتیاط قربانی شوی دی لاتراوسه پورې ژوندی ده. زیات افغانان دجاسوسي او اطلاعاتی سیستم چې هغه معرفی او دودګرځولی و ،پراختیا دهیواد دپرمختلك په لار کې دیوه خنډ په حیث بولی :

په دې انتقادونو کی حقیقت پروت دی،خو هغوی دامیر عبدالرحمن خان دواکمنی په دوره کې دافغانستان وضع او حالت په نظر کې نه نیسی .پرله پسې خونړی جګړه

داخلي ناکراري، مغشو شوالي او هرج ومرج او د رقيب امپرياليزم ثابت فشار دې
تولو د امير عبدالرحمن خان دهغو مخه ونيوله چې غوښتل يې امنيت تامين کړي،
دقانون درناوی وشي اوملي آزادي ترلاسه کړي. امير عبدالرحمن خان يوکلک
سړی و، څو څنګه چې هغه ليدلی دي هغه وپر کلکو خلکو باندې حکومت وکړ.

دامير عبدالرحمن خان ترمرګ وروسته په بازارونو کې داکسې ويل کيدل چې
اسماني رنګه لمبې چې دهغه له مقبرې څخه پورته کيدلې ديوی علامې په حيث ليدل
شوي دي چې داشغال ګر روح په دوزخ کې و. په حقيقت کې دهغه مقبرې ته دري
ځله اوراچول شوي و - دا دموږ کا نوله خوايوه هڅه وه چې غوښتل يې له مړه
ژمري څخه خپل کسات واخلي.

هر چا ته خپل خپل وطن کشمیر دی
«پښتو متل»

# یوولسم څپرکی

## دامپریالیزم معراج

دنولسمی پیړی وروستی کلونه په اسیا کې دتشنج کلونه وواو په ځینو وختونو کې دروسیې اولویې برتیانیې ترمنځ جګړه پېښیدونکی برښیدله. دچتکې پراختیا مخه هغه وخت ونیوله‌شوه کله‌چې روسیه درامنځ ته کیدونکی جاپان له مخالفت‌سره مخامخ‌شوه؛اودانګریزانوروښې اشغال دهندوستان «دامپراتوری په خول کې یو خوراځلانده غمی » په‌ګډون یوه اندیښنه او ځور وګرزیده. دغو کلونو د ستری لویې ( Great Game ) اوج په نښه کړ چې لو بغاړی یې دروسیې اوبریتانیې اجنتان ووچې دلوبو میدانونه‌یې بازارونه اودلرغونو ښار ونو تنګی کوڅې وی او جایزه یې نیمه وچه وه. دسپاهیانوله بغاوت نه‌وراندی دانګریزانو فعالیتونه چې د همزمان صنعتی او امپریالیستی ځوا کونو په‌واسطه تحریک شوی وو په هندوستان باندی تمرکز موندلی وو. هوښیار ځوان کسان دمانچستر او بر منګهم دلړو (دمه) اودودپه منځ کې له ژوند څخه وتښتیدل اودکښتی په وسیله یې دهندوستان سوا حلوته سفر وکړ چې هلته تر ینه پاخه‌کسان جوړشی او د پونا په‌باب له‌خپلو کسیو سره په داسی‌حال کې بیرته خپل وطن ته راستانه شی چې دملاریا او تند مزاجې( Choleric ) په‌ناروغیو اخته اوسی . په ملیونونو روپی چې دبریتانی په صنعتی سندوخچو کې‌توی شوی وی‌څه ناڅه په‌لنګ‌اغوستونکو اتباعو

باندې دامپراتورۍ دسیاسي او اقتصادي کنټرول له سببه و. په داسې حال کې چې دفابریکې خیرونه کاګرانو په خوښۍ سره د«اتلانو سره نري کرښه»
(Thinredlne of heroes) او د ترلاس لاندې افسرانو او د داګې مشرانو کارنامې لوستلې خوراتشریناتي بدځینه مذهبي مبلغانو دبودا، براهما او د محمد (ص) پر ضد په جګړه لاس پورې کړ. دزیاتره انګلیسانو لپاره هندوستان یو دماجرا، لیوالتیا او چانس ملک وچې هلته دافسرۍ رتبو له پلوه فاصله نه مرا عتیږي او د ویکتوریایي انګلینډ سپاه لسوارې رنګ دځلانده لمر په واسطه روښانه کیداې شي.
له دغه ملي خواوهونکي او مشکل حالت سره د تزارې روسیې ویره ملګرې او هم یې تریوې اندازې پورې له تزارې روسیې څخه ویره منځ ته راوړه کله چې تزارې روسیې خپل نفوذ په منځنۍ اسیا کې پراخ کړ او هندوستان ته زیاته نږدې شوه. نور نو دانګریزانو مشرانو په افغاني ماجراګانو کې دلچسپي نه درلوده ځکه چې په افغانستان کې دهغوې اقتصادي تاوان اثبات ته رسیدلې و او همغه هیواد نه یوازې دیو ځوبلکې دزیاتو سیاسي شخصیتونو لپاره ادیره ګرزیدلې وه. په عمومي توګه، دبریتاني اولس دروسانو دبې رحمه پرمختلک په برخه کې اندیښمن وا او دیوه غوره ممکن دفاعي سرحد دجوړولو په فکر کې لویدلې و.
په ۱۸۴۲ - ۱۸۳۹ کې دآکلینید له غمجنې تجربې او په ۱۸٤٦ کې د انګریزانو دپنجاب له الحاق نه وروسته زیاتره بریتانوي مامورینو دلارنس «ماهرانه عدم فعالیت» یا «بیرته اندوس ته» د سیاست په اوربانديې اتکاو کړه. خو دغه پروګرام له قوي مخالفت سره مخامخ شو کله چې روسانو خپل وړاندې تګ ته ادامه ورکړه او داد محافظه کارګوند د ۱۸۷٤ کال له مخې او دنائب الحکومه په حیث دجنګیالي لارډ لېټن له را رسیدو سره په بشپړه توګه له منځه لاړ. دافغان او انګلیس له دوم جنګ سره دبرتانوي انتخابونکو خپګان اوس قدرت ته دلیبرالانو Liberals له راګرزیدو سره مرسته کړې وه. او څرنګه چې دهغوې انتخاباتي مبارزه په همدې مساله باندې پرمخ بیوله

شوې وه، نو دانګریزانو دمخ په وړاندې سیاست (ForwardPolicy) پوځ‌ل بیااعلام شو. که څه‌هم دلاردانو مجلس ( Houseoflords ) چې د محافظه کارانو قوي سنګر دي تر پایه پورې خپل موقف ټینګ وساته.

دیرژر لیبرالان له هماغه مشکل سره مخامخ شول چې په تیر وخت کې یې د «ماهرانه عدم فعالیت» سیاست مخه نیولې وه : روسان متمایل نه وو چې د سیمه یزې ګټې موقع لەلاسه ورکړي که څه‌هم هغوی دګلیډستون لیوال وو اوقدرت ته د محافظه کارانو دراګرځیدو لپاره علاقمند نه وو چې له سلاویانو څخه یې بیم او ویره درلوده . دروسیې جنوب ته یوه سیمه پرته وه چې هلته کوچیانې قبیلې مشته شوي وې چې هغوی په اوتماری روږدي وې او دمریانوسوداګرې به یې کوله او لکه د ختیځ هندوستان کمپنی ( East India Company ) په شان چې د مغولي هندوستان له دورې ورسته یې په هرج ومرج کې مخ په وړاندې تللې وه دروسیې پراخیدونکی دولت هم د قرغستان ، قزاقستان او ترکمنستان داګونوته وخوځیده .

روسان په‌طبیعي‌ډول دمنځنۍ اسیایی قدرت سیاست دلویې په‌میزکې له‌خپل غوره دریځ څخه خبر وو. بارون دې ستال (Baronde Staal) ته لیږل شوولارښوونو د روسانودریځ پوره څرګندکړ. بارون دې ستال دتزاري روسیې سفیر و . سترو تاریخي درسو نوموړي ته ښوولي دي او موږ دلویې بریتانیې ملګر تیا باندې حساب نه شو کولی اوپه داسې حال چې موږ لویې بریتانیې ته په هیڅ ځای کې ځانونه نشو وسولی ، بریتانیه کولی شي چې موږ ته د اروپادلویې وچې د متحد یانو په وسیله ګوزارراکړي . هیڅ ستر ملت به داسې دریځ نشي منلې . ددې لپاره چې له دغه دریځ څخه وتښتو، دامپراتوردوهم سکندر همیشنی خاطرې چې په منځنۍ اسیا کې یې زموږ پراختیا تنظیم کړه موږ ته لارښوونه وکړه چې اوس په ترکستان او د ترکستان په بیدیا وو کې یوپه‌کافي اندازه قوي، دریځ ترلاسه کړو چې په افغانستان کې دمداخلې دګواښ په وسیله د انګلستان مخه ونیسو . (۱)

افغانستان دروسانو او انګریزانو دعلاقمند یو په‌نتیجه کې دخپل قوي ګاونډیو

د فشار له امله د خپلې آزادۍ دخوندي ساتلو په برخه کې له ستو نځې سره مخامخ و.

افغاني امیر یعنی عبدالرحمن خان نه دروسانو خواته، او نه دانګریزانو خواته تمایل درلود؛ هغه دخپل ملت له ټولو تعصباتو سره چې له هغه سره یې لرل له افغانانو څخه یو افغان و. بنا یې په باطن کې هغه دلویې بریتانیې په پرتله له روسانو څخه زیات ویریده ځکه چې هغه ولیدل چې دروسانو راندې تګ د یوه پیل په دود یو له طبیعی پر له پسې ودې، زیاتوالي او یووالي څخه و، لکه څنګه چې هغه پخپله داسې څرګند کړه: (پیل یو ځای په بشپړه توګه از میې پخراله دې چې هغه خپل قدم په هماغه ځای کې کیږدي او کله چې هغه هلته یو ځل قدم کیږدي بیا له هغه ځای څخه نه وځي.»

وروسته له هغه چې په ۱۸۸۰ کې انګریزانو افغانستان تخلیه کړي و، ډېره موده لا تېره شوې نه وه چې په منځنۍ اسیا کې دروسانو فعالیت دتشنجاتو دبیا منځ ته راوړلو موجب وګرزیده. په دې سیمه کې دانګریزانو اوروسانو داړیکو لېاره بنسټ د کلارنډن، ګورټ چکوف (Clarendon– Gortchakoff) د ۱۸۷۳- ۱۸۷۲ ناڅرګند تړون و په کوم کې چې روسانو موافقه وکړه چې افغانستان دهغوي دنفوذ له سیمې څخه بهر واوهغه دشمال خواته سیمه دخپلوا کو ترکمنو سیمه وه. (۲) دروسانو له مخ په وړاندې تګ نو او پر ترکمني قبیلو بـاندې دهغوی دتـدریجی کنټرول پر اختیا څخه ډېر ژر څرګنده شوه چې دا یوازې د کاغذپر مـخ یوه وعـده وه. دغه عملیات دومره موفقانه وو چې تر ۱۸۸۱ پورې یې دمروې (Merv) څخه چې دروسانو اوده رات افغاني ښار ترمنځ پرته ده او دانګریزانو په نظر (هندوستان ته دداخلید ومهم او اساسي لار (ده، نورې ټولې سیمې یې ترخپل نفوذ لاندې راوستلې پخپله مروه یوه اواره بیدیا وه چې په هغې کې تقریباً ۲۰۰۰۰۰ تپیك ترکمنان (Tekke-Turkomen) اوسیدل چې هغوی ته روسانو په ډیر سپك نظر کتل.

یو روسي مبصر داسې لیکلي دي، «ترکمنان زښت ډېر حسود خلک دي؛ هغوي ددرنښت یا خـجالت له افـکار و څخه بې برخې دي، او بالاخره هلته په ټولو ترکمنو کې له هره پلوه دمروې دتپکانو په اندازه یو غیرجالب قوم نشته. (۳) چې دغسې لیکنې

دراتلونکې اقدام لپاره یوبنسټ کېښود. انګریزانو د تیکانو د اخلاقي معیار و نو په برخه کې کومه دلچسپي نه درلوده؛ مګر دهغوي اندېښنه هغه وخت زیاته شوه کله چې هغوي ولیدل چې روسان دیو ځای څخه مخ په وړاندې ځي چې هغه له هرات څخه صرف دوه سوه میله لري واو دغه وړاندې تګ دانګریزانو اندېښنه نوره هم زیاته کړه کله چې روسانو اعلان کړه چې دمروې خانانو غوښتي وو چې دروسانو ترحمایې لاندې اوسي .

ګلیډسټون او دهغه حکومت په یوداسې موقف کې نه وو چې دکوچیانې قبیلو د یوې ډلې په خاطر دجنګ خطرومني چې دهغې زیاتروغړو دبریتانیې په باب هیڅکله څه نه وو اورېدلي. بسمارك په همدغه شببه کې له روسانو سره یوتړون لاسلیک کړی و، فرانسه په مصر کې دا نګریزانو تر تسلط وروسته مخا لفه وه؛ بې باکه جنرال ګاردون په سودان کې لنړ فعالیت کاوه چې یو حکومت ته چې ځان یې دسولې دپاره وقف کړي وبیادا د ورکړي . له دغوشیانو څخه با خبرو روسانود مروې په برخه کې دانګریزانو اعتراضاتو ته په نرمو کلماتو ځواب ورکړاو دهغوي په فکر پنجده اصلي مشکل وڅکه چې ددغه ځای موقعیت نامعلوم واوهلته لوتماري قبیلې میشتې شوې وې .

له مروې نه تر پنجده پورې تقریبا دسلو میلو په اندازه یوه بله فاصله موجوده وه چې انګریزانو یې اړ ایستل چې روسانو ته خبرورکړي چې پنجده دافغانستان دسرحدونو په داخل کې موقعیت لري. دروسانو دکنترول دغه ډول پراخیدا پریو شوم هدف دلالت کاوه چې هرات دهغوي دېر لري او نهایې هدف و. په پای کې انګریزانو پیشنهادو کړ چې یو مختلط سرحدې هیئت دې وټاکل شي او هر کله چې دغه پیشنهاد دسنټ پیټر سبورك (St. petersburg) او کابل له خوامنل شوی و، سرپیټر لومسډن ( Sirpeter Lumsden ) دانګیریزانو نماینده معرفي شوی و. لومسډن زرد مجلس ځا ی ته حا ضر شو: کله چې هغه د۱۸۸٤ کال دنوامبر ۹، دسا تونکې له یوې ډلې سره چې ۱٦۰۰ نفره یې لرل پنجده ته ورسید، پوه شو چې هغه دروسا نو داستا ځی جنرال ځیلینای (General Zelenoi) دنشتوالي له سببه په کارپیل نشوکولي. جنرال ځیلینای ناروغ

اوله پر له پسې وروورو ښه کېدونه یې خوښي ښکاره کوله. هغه لندن ته خبرورکړ چې د پنجدې واحه په مصئونه توګه تر افغاني کنترول لاندې وه چې داخبره رښتیا وه ځکه چې افغاني امیر عبدالرحمن خان له هغه وخت راهیسې نوموړې سیمې ته لښکرې لیږلې وې چې روسانو پرې دعوی کړې وه. د پنجدې اوسیدونکې غله ترکمنان وو چې له افغانستان سره یې ازې اړیکې لرلې. کله کله هغوی د هرات والي ته یوه اندازه باج ورکاوه، خو د دغه باج تلافي به په چټکۍ سره په ماهرانه توګه د غلا دپاره د جوړ شوي پلان په وسیله کیدله.

په سیمه کې روسي پوځي منصبداران نه دانګریزانو دعقایدو پر اساس اونه دافغانانو دادعاګانو پراساس ماتیدای شول. د هغوی مشري دتکت په اصطلاح دګروال علي خانوف (Ali Khanoff) په غاړه وه چې اصلي نوم یې مسعودعلي و. نوموړی له زیاتو دسیسه جوړونکو څخه یو یې مخه توطئه ګروچې دهغه مخفي چالاکیو او په مهارت سره دچارو سرته رسولو عملونو یې دامپراتورۍ دپاره د پوځونو تر هغو زیات کار یا خدمت کړی دی. علي خانوف اودهغه اندیوالونو دسیمې داینډې په باب خپل مشخص نظریات لرل او هغوی د خپل وجدان په پرتله په سنت پیترسبورګ کې د بهرنیو چارو دوتر دغو ښتنو په وسیله زیات اغیزمن کیدل.

لومړنۍ هرڅه وخو با تو راوزړه ورنه و؛ کله چې دروسیې پوځ د نږدې کیدو آوازې خپرې شوې، هغه وویریده او د ۱۸۸۵ دفیبرورۍ دمیاښتې په ۲۰ هغه برتانوي لښکرې له پنجده څخه وایستلې او دګروال ویست رجوې (West Ridgeway) اوپنځوس نیزه بازان یې ترشاپریښودل. دمارچ په ۲۵، روسي قواوې څرګندې شوې او افغاني لښکر کوټ ته مخامخ یې سنګرونه ونیول. لومړنۍ چې برتانوي حکومت له دغه حرکت څخه خبرکړ نو یې له روسانو څخه دتوضیح غوښتنه وکړه اودمارچ په ۲۸، دبریتانیې حکومت له روسانو څخه داد ترلاسه کړچې دایوسوله یز حرکت و. دوه ورځې وروسته روسانو بې له خبر داري څخه حمله وکړه.

دایوه مختصره جګړه وه . افغانان چې شمیر یې تقریباً دوو زروته رسید ه او
مشري یې د جنرال غوث الدین پر غاړه وه د یر خـرا ب مجهز کـړل شوي وو ؛
زیاتر و عسکروته داسې کارتو سونه ورکړل شوي وو چې ټول یې پوچ شـول .
تقریباً څلور سوه افغانان ووژل شول ؛ دروسانو تلفات جزئي وو . انګر یزانو په
جګړه کې بـر خه وانه خیستله مګر فوراً وتښتیدل ـیو بد بخته ا فسر خپل سا قدا ره
بوټان په هندوستان کې د خپل ملګـر و شکست او د روسانو خو شالی ته ترشا پر
ښودل . دغه، تیښته البته دویرې نتیجه، وه بلکې په یو دغسې حالت کې دراکښیل
شوو ترلاس لاندې مامورینو دزیاتې ویرې نتایج ښایي مهم او جدي وو . (٤)

ترجګړې وروسته دتلګراف سیم له مشهد څخه په نامعلومه او مرموزه توګه
خرابه شواو داپریل تر ۹، پورې لندن ته رپوټ ونه رسیده. هیوادتګکان خوړلـی واو
ګلیډ ستون په غضب و ـڅه ناڅه دیرې وجداني مسالې پرتوګه او څه ناڅه ددې مسالې
په وجه چې په خرطوم کې یې دانګریزانو تباهـي اوج ته رسوله او د خرطوم
مسالې داویره رامنځ ته کوله چې خپل حکومت رنګ کړي . دغه په چټکۍ سره
دیوولس ملیونوپونډو داعتبار دترلاسه کولو د پاره درای اخیستلو غوښتنه وکـړه
اواحتیاط یې راو غوښتل اوهند ی پوځ یې سمبال کړ .

په حقیقت کې ګلیډ ستون لیوال و چې له جنګ څخه ډډه وکړي اوروسا ن
که څـه هم هغوی په کلکه عقیده درلوده چې علي خانوف او جنرال کو ماروف
چې په پنجدې کې پوځي کومانـدان و، په ښي اړخ کـې وو ـخپل دجګـړې د
کړ ماندانانو دعمل په واسطه وارخطا شوي وو . له یوې دیپلو ماتیکې تبادلې وروسته
دروسیې دبهر نو چارو څانګې پشنهاد وکړ چې په دغه موضوع کې دې ددنمارک
پاچا منځګړ توب وکړي . دبریتانې حکومت له دغه پیشنهاد سره موافقه وکړه او
پس له هغه یې هڅه وکړه چې خپل هیوادوال قانع کړي چې حکومت ستر بری ترلاسه
کړی و ـیو کار چې حتی دګلیډ ستون دبحث ور مها رت څخه وتلی اولو ړو.

د پنجدې د جګړې په وخت کې عبدالرحمن خان (دافغانستان امير) په هندوستان کې له نائب الحکومه لارډ دوفرين (Lord Dufferin) سره ملاقات کاوه . هغه په ارامۍ سره خبر ترلاسه کړ او له انګريزانو څخه يې وغوښتل چې دخپل قول در ناوی وکړی او دتيرې په صورت کی له افغانستان سره مرسته وکړی .
نائب الحکومه چې زيات وارخطا شوی و امير عبدالرحمن خان ته داد ورکړ چې له دينه زيات تجاوز به دجګړې دپاره يو علت وی ؛ او وروسته له هغه يې څرګنده کړه چې لويه بريتانيه راضي وه چې نور ورانسدې لاړه نشی او امير عبدالرحمن خان ته يې خبرورکړ چې هغه ته بايد ۲۰۰۰۰ پلته يز توپکونه دوه دتوپ بطرۍ اولس لکه کلدارې ورکړل شي .
دامير عبدالرحمن خان عکس العمل دمسخرود ک عکس العمل و: هغه وويل «څرنګه چې دانګريزانو حکومت اعلام کړيده چې داحکومت به له ماسره دهر خارجي دښمن په دفع کولو کې مرسته وکړی» «نو دارښتيا او پرځای ده چې افغانستان بايد .... دانګريزانو له حکومت سره څنګ تر څنګ ودريږی .» (۵)
دامير عبدالرحمن خان مقصد دا و چې افغانستان به احمق وی چې دخارجي قدرتونو په خبرو باورو کړی او تراوسه پورې چې څه وعدې شوې دی هغه به پر ځای نشي هغه شيبه چې وضع بدلون ومومی . په ۱۸۹۵ کې لارډ کرزن له امير عبدالرحمن خان سره وکتل ؛ کله چې هغه توضيح کړه چې داد هغه حکومت نه و چې دپنجدې دمسالې په وخت کې په قدرت کې و ، بلکې داد ګلېډ ستون ليبرال حکومت و ، امير عبدالرحمن خان په زړه ورتوپ سره وخندل . هغه متاثرو ، هغه وويل ، چې زه بويغمبرنه يم چې پوه دی قادراوسم چې څه دول برتانوی حکومت به په اينده کی قدرت په لاس کی ولری .
په عين وخت کې اروپايي صدراعظمان مصروف وو پريکړه يې کوله چې د شمالي سرحد حدود بايد په اروپا کې وټاکل شي نه په هماغه ځای کې يوه پريکړه چې لومسدون يې چې له قاره خوتيده دې ارکړ چې استعفا وکړی . او په يوزښت

ډير غير نظامي دو د سره ځپلي مافوقان تـنـبه کړي . هغه هوارز الي په کوم کـي چـې پس لـه هغه دسرحـد پـه نښه کـول دوام ومو ند تري.وې انـدازې پـ.و ر ې د سولي په خاطرد مذاکـره کوونـکوله خوابيا ن شوی د ی چې هغو ې له سيمې سره بلديت نه در لوده او هغوي دسپوږمی (دپنجدې سيمه له سپوږمۍ سره تشبه شويده) ديوه ښخ په برخـه کې معلومات در لوده ځود هغی اه بل مخ څخه بې خبره وو. په نظر کې وو چې سرحدد ذوالفقارپه غاښې کې چې دپنجدې له جنوب لويد يځ څخه تقريباً اته مياه فاصله لري ، پيل کړي اومروچاق(Maruchak) لورته حرکت وکړي اوله هغه ځاې نه دخواجه سالارپـه کاې کې داموسين خواته حـرکت وکړي چې الکساند ر برنس پنځوس کاله پخوا په خپلو سفرونو کې هغه ذکر کړې و.

موافقی ته تررسيد وورو سته دانگريز انو له سرحدي هيأت سره (چې په دی وخت کې دډ گروال ريجوې له خواورته قومنده ورکول کيده دروسانو يوه دله يوځاي شوه چې مشري يې دډگروا ل کوهلبرگ (Cnolonelkuwbeg) پـه غاړه وه او ور سره يوافغاني هيئات يوځاې شو چې مشري يـې دقاضی سعدالـدين پـه غاړه وه او پيل يـې وکړ چې ا صلي سرحد سروې کړي. افغاني هيئات چې زده کړه يـې په انجنيرې کې نه بکلي په شرعي علوموکې وه داصلي سرحدد سروې په کار کـې يوځنډ وگر زيده ځود سرحد په نښه کول دخواجه سالار پـه خاطر لـه يوې يې ځايه پلټني څخه وروسته(۱۸۸۸دجنورى په۸، پاې ته ورسيدل چې لاتراوسه پوري ورك دی . (٦)

له هماغه وخت راهيسی زماني شابته کړې ده هغه څه چې دروسا نو د جنگ دو تـر ديوې موافقا نه غلاپه حيثيت گڼله په حقيقت کې يوتا وان و. هغه صبر چی د بهرنيو چارودد و ترله خوايي دفاع کيدله په يقين توگه به دهند وکش غرونو ته در روسې دقلمرو دغزيدني موجبه گرزيدلې واې او دد ې پرځاې چی په دغه ثابت سرحد پاندې ودريږي دشمالي افغانستان ازبك او ترکی قومونه به يې په شمال کې دهغوي له هغوخپلوانو سره يوځاي کړي واي چې له هغوي سره يې نژادي اړيکی درلودي.

که څه هم دافغانستان اوروسيې سرحد ترزياتې اندازې پورې د دغه قرار داد پراساس په تنبه شوې وختيځ ته دشغنان او روشان دسيمو موقعيت لاهم ناڅرګندو. دغه سيمه افغانانو ته چندان په زړه پورې نه وه ځکه چې دغې سيمې له کابل سره تقريباً ارتباط نه درلود اوله ډېرو غرونوڅخه جوړه شوې وه چې په هغې کې نيستمن تاجك اوقرغزيان مشته شوي وو. خوداسيمه روسيې اولويې بريتانيې دواړو ته په زړه پورې وه ځکه چې دې سيمې دروسې او هندوستان دواړو له قلمرو سره سرحد درلود .

په ۱۸۹۱ کې يوروسي منصدار دګروال يانوف دې سيمې ته داخل شو او له ده سره يو شمير عسکرهم ملګري وو چې په ظاهر کې دمارکوپولو پسونو پسه لته کې وو مګر په حقيقت کې ديوې تاکلې پوځې وظيفې دپاره ليږل شوي وو. خوهغه دخپل دښکار له وخت نه يوڅه وخت دې وقف کړ چې د پامير سيمې په شاريز کې يوه عسکري پوسته جوړه کړې اودهندې پوځ يو بل زړه ورلوبغاري کپتان ينګهسبند Captain younghusband ونيسي چې هغه هم د پامير سيمې په شاو خو اسيمه کې بې هدفه ګرځيده. کله چې يانوف دسا تونکوله يوې لويې ډلې سره په ۱۸۹۲ کې بيرته را ستون شو ، هغه له يوه افغا نې تورن سره چې شمس الدين نوميده اودولس عسکروله يوې ګزمې سره مخامخ شوتر تندواوغضبنا کو خبرو وروسته نرموړي روسي افغانې تورن پرمخ يوه څپيړه وواهه؛ شمس الدين په خپل وارپه هغه باندې ډزې وکړې.

ګولۍ دروسي دکمربند پرسګك باندې دلګيدوله امله منحرفه شوې وه ـ بنايي له بده مرغه له همدې امله تول افغانان په هغه جګړه کې چې په نتيجه کې منځته راغله وژل شوي وي . (۷)

عبدالرحمن خان په افغانې قلمرو کې دروسانو دافغان وژنې دعادت په بيا پيښيد لو باندې په قهر شو. هغه سمدلاسه انګريزانو ته په جدې توګه ووېل او اعلان يې کړه چې ده غوښتل چې تول افغاني عسکر دپا مير له منطقې څخه وباسي ، انګريزانو

لورخيالات درلودل . هغوي مصمم وو چې د روسیې اوهندوستان تـر منځ یوه سیمه چې د دال حیثیت ولـري وساتي اود دگر وال هو لډ یچ (Holdich) په قول، «هغوی د دې موضوع په باب دامیرعبدالرحمن خان له نظریاتو سره زیات علاقمند نه وو.»

(۸)امیر عبدالرحمن خان له زیات تشویق نه پرته موافقه وکړه چې دیوه مختلط سر ـ حدي هیئات پریکړه ومني اوتولي افغاني لښکرې دپنجه سیند له ښيي څنډې څخه وباسي. د ۱۸۹۵ کال دجولای په میاشت کې تـورن جنرال جـرارډ ( Gerard) او دگر وال هو لډیچ چې دلویـې بریتانیې لهخوا یـې نمایندگي کوله ؛ اوپاولو شوفر کوفسکي (Pavoloschverkovski) چې دروسیې له خوا یې نمایندگي کوله ؛ اوغلام محی الدین چې دافغانستان لـه خوا یـې نمایندگي کولـه ، په پامیر وغـو کې دویکتوریا جهیل په څنډو کې سره وکتل. دوه میاشتې وروسته (دهغو هیئتونو کوغرونو داسمانـي رنـګه سترو یخچالونو په منځ کې لـه یوې خطرناکـې پلټنې نه وروسته) دوروستي سرحد دیـره کیښودل شوه .

له هماغه وخت راهیسې دافغان ـ روسیې سرحد په فوق العاده یاار یانـوونکی دول ثابت پاتې شوی دی. له دوهمې نړیوالې جگړې څخه وروسته دیرزر یو افغان شوروي هیئات سره وکتل چې دضروري اولازمي تعدیلاتـو په برخه کې بحث او مذاکره وکـړي ځکه چې دآموسین دحرکت اوری بدلون مومي. دشوروي اتحاد د سولـې مذاکرې پخلاکوونکې وې اودپریکړې له مخې دسیمې یوه ټوټه افغانستان ته ورکړل شوه چې پخوا دې هیوادپه واک کې نه وه. که دروسانو او انګریزانو له رومبني علاقمندۍ څخه، چې له افغانـي شمالـي سـرحد سره یـې لرله سترګـې پټې کړو، هغه سیمه چې پخپله افغانانو ورسره علاقه درلوده لاهم دتاریخ سیمه وه. دا باید په یادولرو چې افغانستان دیوه ملي دولت په حیث دپښتنو دهلو ځلوله لارې منځ ته راغلی چې هغوی په ځانګړي دول دافغانستان په جنوب اوختیځ کې اوسیږي او غرې یـې نورکومه ځایه چې دجنوبـي دیر (Dir) اوسوات سیمو پورې اړه لري دانډوس په میدان کې خپرېږي. دامیر دوست محمدخان له زمانې راهیسې په شرقي پښتنو کې

د افغانانو علاقمندي اساسي عامل وچې دهغوی بهرني سياست ټاکې. رښتيا هم د کابل حکومت وکړای شو چې دغه کلکت او آزادغرنسي خلک څه ناڅه اداره کړي، برسيره پردې دهغوی په کښتېر و لولو کې دامير عبدالرحمن خان نفوذاو پيسو زياته اغيزه درلوده، مګرتر لوامير انو شرقي پښتانه په افغان ملت پورې مربوط ګڼلي وو. امير محمد افضل خان او محمد اعظم خان ديوې مومندي ښځې چې هغه، له همدغې سيمې څخه وه زامن وواو دامير عبدالرحمن خان مورد کرمې درې دبنګښو له قبيلې څخه وه :

په دغه سيمه کې دافغاني صلاحيت کمزورتيا په سرحدي غرونو کې دانګريزانو دپرمختګونو دپاره لـه يوه دليل نه سر بېره يوه پلـه هم جوړه کړه . ديو څه مودې دپاره دانګريزانو قلمرو چې په پښتني قبيلو باندې يې تيری کاوه دپنجاب دحکومت له خوا اداره کيده چې دلاس نه وهنې سيا ست يې تعقيباوه پر ته له هغه وخت نه کله چې به يرغلو نه نه زغميدونـکي وګرزيـدل نـو په نتيجه کې به يوه جزاور کوونـکي هيئات ته امرورکړشو. په او له کې دغه دول يو هيئت يوه آسانه مسئاله وه ځکه کـوم پرمختګ چې د وسلو په برخه کې به نولسمه پېړی کې شوی و پښتانه له هغه څخه خبرنه وواو قبايلي خلک لاهم په تورواو ماشه يې ټوپکو نـو سمبال وو.

د ۱۸۸٤ په پيل کې دنائب الحکومه په حيث دلارډډيفرين له مقرری سره ددغو لوټمارو ګاونډيو په مقابل کې دانګريزانو سياست بدل شو . په قبايلي سيمې باندې د انګريزانو په فشار کې يوه هڅه نغښتې وه چې د پښتنو د دودپر ځای د انګريزانو قانون منځ ته راوړي. دغه پرمختګ څه ناڅه ددې حقيقت لـه امله وشو چې پښتني قبيلې ناآرامه ګاونډيان وو، مګرپه سيمه کې دپوځي زياتيدونکي قدرت او په پنجده کې دانګريزانو دلتې په وجهه د هغوی خپګان هم دخيل و.(۹)

په جنوب کې د دغه سياست مسئول ليت ديوه لايق سياسي منصبدار په غاړه شو چې د هغه نوم سر رابرټ سينډ مين ( SirRobert sand man )وچې دژوب (Zhob) او بوري (Bori) د روپربلوڅانو باندې دانګريزانـو دکنترول په پراخولو کې يې تـکړې قوت اوبدې سره يو ځای کړل :

پښتانه یوه بله موضوع وه . دغړو خلکو په حیث هغوی ته رسیدل گران واو نسبت خپلو بیدیا نیشنو گاوندیانوته جابر وواو برخلاف دهلو خوهغوی دخپلو مشرانو له خوانه کنترولیدل . د پښتنو په سیمه کې دانگریزانوله لومړنیو حرکاتو څخه چې هغوی د خپلې پالیسي پر اساس چې هغه د مخ په وړاندې پالیسي وه، سرته ورسول داوچې دگندمك له تړون څخه دسر غړونې په صورت کې دکوټې داوږگادې پټلۍ له زاړه چمن څخه، تړنوي چمن پورې وغزوي . انگریزانو عقیده لرله چې پخوانی ځای د اوسپنې پټلۍ د پیل دپاره نامناسب و؛ مگرستراتیژیکی نتیجې څرگندوې اود امیر عبدالرحمن خان دغوسه نساکو احتجاجونو موجب وگرځیده چې انگریزانو هغه په نرمه اوپسته ژبه یې اساسه وگڼله . د افغانستان اولویې بریتانیې ترمنځ د ستونزو یوه برخه ددغې دورې په موده کې تصادفاً دآسیایانو په مقابل کې دبرتانوي مامورینود مهربانې رویې په نتیجه کې رامنځ ته شوې وه. دځینو دلایلو له مخې انگریزانو (چا چې یو ځل د افغانانو په برخه کې د ستاینې ور معیار پر اساس قضاوت کړی و) اوس یې داسې گڼله چې هندیان او افغانان اساساً تیت خلك و ـ یو نظر چې هندیانو ته لمسونکی او افغانانو ته په قار ونکی و.

افغانانو ونشو کړای چې شخصي احساسات یو پ خواته کړي ،نو لاچا ریې ځانونه په خطر کې احساس کړل کله چې د مخ په وړاندې تگ سیاست څرگند شو. په ۱۸۸۹ او په ۱۸۹۰ کې انگریزانو زیات پوځي عملیات دشیرانیو ،اورکزیو او عیسازیو پر ضد په غاړه اخیستي وو. همدارنگه په ۱۸۸۹ کې مهاراجا پر وتاپ سنگه په کشمیر کې له خپل واك څخه غورځول شوی.واونومړی هیواد دیوه برتانوي اوسیدونکې تر کنترول لاندې راوستل شوی.و. لـه کشمیر څخه نظامي هیئتو نـه هونزا ( Hunza )اوناگار (Nagar)ته ولیږل شول چې دا دوه په فني لحاظ تر لاس لاندې مگر دحقیقت له پلوه پـه خپل شمال لویدیځ سرحد کې خپلواك حکومتونه وو. دخپلو غړونو په واسطه احاطه شویو هونزانو او ناگار کنجوتا نود kanjutis) ځانونه له حملې څخه خوندي تصور کـاوه .

اودلهه،یارقن (Leh-yarkan) په لار کې یې دولجې او دمریانو په خاطر د کاروانونو

دلو تولو رایج کار باری‌پ سرته رساوه . خونه غرونه اونه له سوی سکندر څخه، د پښت ادعا موثره ثابته شوه؛ هغوی په اسانی وخپل شول او دمشرانو تر کنترول لاندی راغلل چې هغوی به خپل امرونه له انګریزانو څخه ترلاسه کول.

هونزان او کنجی‌ تان پښتانه نه دی او افغانستان دهغوی پر جلا شویو سیمو باندی ادعاګانی نه درلودی، خود غه مثال نارامه کوونکی و. افغانان په ۱۸۹۲ کې کله چې انګریزانو د کرمی ددری توری پښتانه سره یوځای کړل، نورهم وویریدل. د غه حرکت څه ناڅه پخپله د توریو له خوا منځ ته راغلی وځکه چې هغوی برخلاف د تولو نورو پښتنو د اسلام دشیعه مذهب پیروان دی. ددغه عقیدوی اختلاف په نتیجه کې (د توریو حاصل خیز وځمکو ته په جلبونه کې زیاتوالی راغی ) پر هغوی باندی په شمال کې داور کزیو له خوا او په غرب کې دهغوی دترونود زامنو له خوا چې جاجی وو بریدونه وشول. توری هیڅ کمزوری نه وو خوسره له دی هم هغوی په نورو پښتنی قبیلو کې دملګرو دنه لر لو له امله نیمګری وو او بالاخره یې وغوښتل چې دانګریزانو تر کنترول او حمایی لاندی اوسی .

په قبایلی سیمه کې حالات څه ناڅه ددغه ثابت فشار دیو نتیجی په حیث او څه ناڅه له کابل څخه دملاقات کوونکو نماینده ګانو د بهیر له امله په زیاتیدونکی توګه خطرناك کیدل زیاتره قبایلی خلکو په دی وخت کې چقمقی توپکونولاس ته راوړل چې هغه له هندی پوځ نه غلاشوی وویا دافغانستان له لاری دقاچاق په توګه راوړل شوی وواو دانګریزانو نظامی هیئتونه له سیراوسیاحت نه‌خونړیو مسایلو ته راګرځیدل. (۱۰)

دوضع له تحلیل څخه وروسته، نائب الحکومه لارډ لیسنډون (Lod Lansdowne) دې نتیجې ته ورسیده چې پرا بلم یوازی د افغانستان او برتانوی هند ترمنځ دسرحدد په نښه کولو له لاری حل کیدای شی. هغه دخپل تحلیل په نتیجه کې داسې استدلال کاوه، چې انګریزان به وکړای شی چې قبیلې یې وسلې کړی او دخپل صلاحیت په حدودو کې یې کنترول کړی او له سرحد څخه دافغانی اجنټانو او

تولنې والاوو دتيرويد و مخه وفسيي . لـه دې امله امير عبدالرحمن خان څخه وغوښتل شول چې يو برتانوي استازی خپل حضور ته ومني چې هغه د مذاکرو دلاربښوولو او اداره کولو بشپړ اختيارات ولري .

امير عبدالرحمن خان پهدې پيشنهاد سره وپريدلی وڅکه چې دمخ پهوارندې پاليسي له دلې څخه چې اوس په سيمه کې د اقتدارخاوند وه ويريده چې هغه ته به ځينې شرايط ورواندې کړي. څکه نوهغه په يې علاقه گی سره دلينسلهون پيشنهاد ته ځواب ورکړاوهغه ديوه دغسې هئيات منل ردکړل. نائب الحکومه چې سخت په غضب وسمدلاسهيي افغانستان ته دوسلو په تولو ليږ نوباندې تجارتي بنديز ولگاوه اوبرسيره پردې يې داوسپنې، پولادويامسوپر اقلا موهم تجارتي بنديز ولگاوه.امير عبدالرحمن خان خپل غږ دخپلو اتباعو دمنع کولو په وسيله چې د کوپتې داوسپنې پرپټلې باندې لارنشي اولندن ته ديوه ليك چې پههغه کې پرلينسلهون انتقادشوی و دايزلـو په واسطه او دانگريزانو دمالې مرستې چې پهکال کې يهيې دونس لکه کلداری امير عبدالرحمن خان ته ورکولې دردولو په واسطه واخيست ـ دغه وروستی يعنی دمالي مرستې ردونه يو خوراردرونکی کسات و :

لينسلهون دامير عبدالرحمن خان دلجاجت په مقابل کې په همداغه طريقې سره عکس العمل وښووده څنگه چې رومبنې نائب الحکومهلپاتن ښودلی و. داحتمالې جنگ دپاره ترتيبات پيل شوی وواوامير عبدالرحمن خان ته خبرورکړ شوی وچې هرا برتنس له يوې دلې سره چې لس زره نفـره يې درلودل کابل ته ليږل کيـدهٔ دغه پيغام دتهديدېدونکو شرايطو په کلماتو کې څرگندشوی واوامير عبدالرحمن خان له د خبرورکولو په دې کلماتوسره پای ته رسيدلی وچې انگريزانو په نظرکی نـه لرل چې دغير قطعي وعدودپاره انتظار وکاږی څو هغوی به خپله شخصي نتيجه گيری دهغه داعمالو او اقداماتو په رڼاکې وکړی يعنی هغوی به دهغه له اقداماتو هغه خپل نتايج راوباسي : (۱۱)

امیر عبدالرحمن خان چې له دغه اخطار سره مخامخ شوی و په یوه پخلا کوونکې یادښت کې نایب الحکومه ته خبرورکړ چې هغه یو نماینده لیږه چې دبرتانوي هیئات هدف وڅیړی او ددی هیئات دراتګ دپاره پلانونه جوړ کړی. خوهغه خپل استازی ته (ښپین (Pyne) په نوم یو برتانوی انجنیرو) لارښوونې وکړې چې په کراره سفر وکړی. نتیجه داشوه چې را برټس (هغه څوك چې انګلستان ته ځونښان شوی و) پخوا له دې چې پین انګلستان ته ورسیږی له کابل نه انګلستان ته لاړ. څرنګه چې رابرټس دمخ په وړاندې پالیسی دډلې مشرو او همدارنګه یودا سې انګلیس وچې زیاتره افغانانو له هغه څخه کرکه کوله، نو دهغه بیرته راغـو ښتنـه دامیرعبدالرحمن خان دپاره یو بری و.

دامیر عبدالرحمن خان دلیك په ځواب کې لیندسدون هغه ته یوه نقشه ولیږله چې په هغې کې هغه سیمه ښودل شوې وه چه دهغه حکومت غوښتله. نقشې ته یو اجمالي نظر دامیرعبدالرحمن خان ویره په دې دول تائید کړه: برسیره پرچترال، اسمار او مومند، ټولې هغه سیمې چې دشرقي پښتنو له خوا نیول شوې وې په سره رنګ رنګ شوې وې. په دې وخت کې امیرعبدالرحمن په یوه ناوړه خوفناك حالت کې و. هغه خبر وچې د انګریزانو دغوښتنې ردونه به د جنګ مانا ولري ؛ او دخپلو زیاتو اتباعو برخلاف هغه دانګریزانو دپوځې قدرت اندازه او موفقانه مقامت چې یو ناشونی کار و درك کړل. له بلې خوا، هغه دټولو نورو افغاني امیرانو په شان شرقي پښتانه دافغانستا ن یـو له مهمو هر ډول دفاعي واسطو څخه ګڼل. هغه په خپل ځواب کې د افغانستان مو قف په ډاګه توګه داسې بیان کړ : ددغو سرحد ی قبیلو په برخه کې چې د یا غستان په نوم شهرت لري که چیرې دغه قبیلې زما په قلمرو کې شاملې وای زه به په دی قادر وای چې هغوی می دی ته اړې کړې وای چې دانګلستان او زما دهردښمن پرضد وجنګیږی .... زه به په تدریج سره هغوی ارامه اتباع او د لویې بریتا نیې ښه دوستان کړم. خو که چیرې تاسو هغوی زما له قلمرونه وباسی ، هغـوی بـه نـه ستاسو او یا نه زما په درد وخوری؛ تاسی به تل له هغوی سره په جنګ او په مشکلاتو کې اخته اوسی او هغوی به تل چورا وچپاول ته دوام ورکړی... تاسی به په خپل دی اقدام سره چې دغه سرحدی خلك هغه چې زما قوم او زما ددین وروڼه دی

له مانه بیلوی، زما حیثیت زما داتباعو په نظر کې زیا نمن کړی او ما به کمزوری کړی اوزما کمزور تیا ستاسو دحکومت په زیان تماميزی. (۱۲)

دامیرعبدالرحمن خان منطق پر لینسډون باندی کومه اغیزه نه وه کړی. د۱۸۹۳ کال د سپتمبر په ۱۹، هغه دهندی حکومت د بهرنیو چارو وزیر سرمورتیمر دیورنډ (Sir MortimerDurand) له لارښوونو سره کابل ته ولیږه چې په دی تینګار وکړی چې امیرعبدالرحمن خان له هغه سرحد سره موافقه وکړي چې دانګریزانو له خوا ټاکل شوی دی. په افغانی پایتخت کې هیئت په تعظیم سره ومنل شو او کله چې مذاکرې پیل شوې، دیورنډ دیوه داسې سړی په توګه په داد سره په هر ټکی تینګار کاوه چې دزښتې دیرې قوی توپچی قوې له خوا یې ملا تړ کیده. د۱۸۹۳ کال دنومبر په ۱۲، هغه چې ددیورنډ د تړون په نامه شهرت لری ترلاسه شو. امیرعبدالرحمن خان په خپل شمالي سرحد کی رومبنیو ټاکلیو بدلو نو نو له منلو نه علاوه، هغه دسوات، باجوړا وچترال په برخه کی له خپلو ادعاګانو څخه لاس واخیست خو اجازه ورته ورکړل شوه چې اسمار ترینګ وساتي. په نظر کی وه چې شرقي سرحد دیوه مختلط هیئت له خوا دهغو موافقو پراساس چې په کنفرانس کې ترلاسه شوی وې په نښه شي، د کومو پراساس چې زیا تره شرقي قبیلې له افغانستان څخه بیلې شوې وې.

یوسفزي له لاسه تللي وو؛ دارښتیا ده چې یوازې دبا جوړ یوسفزیو له افغانستان سره زیات تماس درلود، که څه هم په کافي اندازه په عجیبه دول د غه قبایلي خلک په خپل افغاني هویت باندې په تینګار کولو کې زیات تاکید کوونکی دی. داپریدي او همدارنګه داورکزیو دسیمو یوه برخه دانګریزانو په برخه شوه که څه هم ددغې سیمې یوه اندازه له سرحد نه ها خوا پاتې شوه. وزیراو مومند همداشان په دووبرخوو یشل شول.

لینسډون ددیورنډ دتړون په باب خورښا له وشکه چې دغه تړون په نظری توګه یو ثابت سرحد تشکیل کړ او دسیمې په برخه کې یې چې تر اوسه پرې منا قشه روانه وه دانګریزانو ادعاګانو ته قانوني بڼه ورکړه. په حقیقت کې د هغه

خو بني له وخت نه پخواتا بته شوه ځکه چې ترون زيات مشکلات منځ ته راوړل او دامشکلات دهغو ستنو نزوپه پرتله چې دي قرار داد حل کړل زيات وو . دي ترون دقبيلو په ارامۍ کې څه مرسته ونه کړه بلکې ياله کا بل ياله د هلي څخه د اداره کوله پرلاره کې يې زيا ت پـرابلم ونه منځ تـه ر او ړل او يو د اختلاف وړ افغاني سيمه يې مـنځ ته راوړه چې په سيمه کې دثبات او استحکام په برخه کې ډيو ستر گرانښ په حيث پاتې کيږي :

زيـاتره او مني افغا نـان له اميرعبـد الرحمن خان څخه د ډيو رند دترون د لاسليکو لو په سبب کرکه کوي نه دهغه دتولو ظلمونو په وجهه چې پـر خلکو يې وکړل . خو دا مشکله ده چې پوه شوچې هغه بل څه شـی سر ته رسـولی شـول ځکه چې انگريزان لجوج او کالک وواو لـه دغـه ترون څخه به د هغه سرغـړونه تقريباً په باوري توگه پر افغانستان باندې دبريو سبب گرځيدلی وای :

دتړون تر لاسليکـت کيـد وروسـته ، تشنج هـغه وخـت زيات شـوکله چې انگريزانو حرکت وکړ چې تر افغا ني سرحده پورې خپل مؤثر کنترول ته پـر اختياور کړی اودیتشنـج دافغاني اجتماعو د فصاحت او بلاغت په واسطه يـې شدت ومو ند. دوی له سرحد څخه تيرشول اوقبايلي په خبردار يوسره وپار ول چې دهغوی په مينه او احتياط ساتل شوې آزادی ته زيان رسيږی . له دغه فريادڅخه چې د اسلام په خطر کی دی ، اوزيات خلک يې سره را تـولول په اغيزمنه توگه کار واخستل شوا ودې ترڅنگه په سودان کی دمهدي دبری او په يونانيانو باندې دترکا نو دبری مو ند لو له را پورو نو څخه هم په موثره توگه کار واخستل شو :

ددغسې پيښو خبر په زياته اندازه تحريف شوې بڼې سره په قبايلي خلکو کې خپور شو ځکه چې ايلچيان معمولاً ملايان ووچې هغـوی په آزادانه توکه ددينـې مسايلو دخپرو لو له امتياز څخه کار اخيسته . ددوهم سلطان عبدالحميد (هغه څوک چې هڅه يې کوله چې عثماني امپراتوري يو څه له رنگيدو څخه وساتي) له خوا اجتماع

دملاپاینده او سید اکبر اخنزاده په شان سرحدي جنګیالو ونکو سره داوږدو مرکو لپاره په کابل کي څرګند شول. د دغه ور وستني سړي یعني سید اکبر اخنزاده په کورکي د انګریزانو له خوا نیول شوي اسناد (سیداکبر په اړ یدو کي یو قدرت و) په سرحد کي د په زړه پوري پرو پاګند لهجه په دې دول څرګندوي: «تاسي محمد یان حتماً باید له احتیاط څخه کار واخلئ کنه نو انګریزان به تاسي تیر باسي چې هغوي اوس په غمجنو حالاتو کي دي ... سلطان عبدالحمید، المانیان، روسان، فرانسویان ټول په ټولو بحري بندرونو کي دانګریزانو په مقابل کي مسلح دي او په مصر کي جګړه دوام لري. انګلستان په دې ورځو کي بې زړه دی.» (۱۳) که دغه ونیار ښتیاواي نو انګریزانو به پر یقیني توګه د خپل بې زړه توب دپاره دلیل درلوداې. داچې دادرواغ وه قبایلي خلکو ته یې چندان اهمیت نه درلوده هغه خلک چې موقع یې نه درلوده چې پسر ته له دي څخه په بل دول خبر شي او قبایلي خلک دغه ملاد وله ایلچیانو ته زیات حیثیت قایل وو.

په ۱۸۹۷ کال کي د انګریزانو فشار، دامیرعبدالرحمن خان توطئې او په قبایلو کي دآزادي مینه سره یو ځای شول چې یوه داسي بلوا منځ ته راوړي چې دسرحد په تاریخ کي خوارخطرناکه بلوا اوسي. بلوا دجنګیالیو وزیر وله خوا د مز ار په دره کي پیل شوه اوله تکان ورکوونکي چټکتیا سره د ملکند ترغا ښې پوري خپره شوه چې په صحیح دول سره د چترال په جنوب کي موقعیت لري.

ددوبې په تود وخت کي خوله کوونکو برتانوي اوهندي لښکرو دپاره مشکل وه چې دقبایلي خلکو مخه ونسیي. قبایلي جګړه ماران له خپلو نویو ورخیزو ټوپکو سره او په غرونو کي له خپل لرغوني مهارت سره خطرناک دښمنان وو چې هغوی په جزئي نښته کي په مهارت سره له ګوریلائي تکتیکونو او تینګي ارادي څخه کار اخیسته. دهغوی دغه تینګار څه ناڅه پرته له شک څخه دهغوی د مشرانو له سببه چې دملایانو یوه دله وه هغه کسان چې دمذهبي تعصب په مینې سره یې دمذهب نغاري دنګولې. دهغوی په دله کي ملا پاینده، دهدې ملا او سید اکبر وو، خود انګریزانو

له نظره څورازیات تکلیف ورکوونکی هغه سړی وچې دسرلوڅې یالیونی ملاپه حیث یې شهرت درلود. دهغه اصلی نوم سعدالله‌خان واوهغه له کابل څخه چې په لارکی نور ورسره ملګری وو راغی یاهمداشان هغه ادعا وکړه‌چې‌هغه د ناڅرګند وملایکو دیوه پوځ له خوا بدرګه کیده.

سره له‌دی، ددغه قبیلوی تعصب په برخه کی انګلیسی لیکوالو له مبالغی څخه کاراخیسته‌چاچې اکثراً پ‌ه‌نیشنلستي‌مخالفت‌باندي‌دمـذهبی هیجان‌اشتباه‌کړي ده. قبایلي خلك ټول مسلمانان وو او د هغوي رهبري هغو ملایانو کوله چې هغوي واضحی خبري بی کولې او پوهه یې نیمګړې وه؛ خوپرته له شك څخه دهغوي د مخالفت‌ستراومهم‌علت‌داوچې‌هغوي‌غوښتل‌چې‌خپله‌لرغونی‌قبیلوي‌ازادي‌وساتې.

هغه څه چې خاصتا انګریزانوته‌پاروونکې‌وداڅرګند‌حقیقت وچې دبلوا اصلی محرك دافغانستان امیرعبدالرحمن‌خان و. دمثال په ډول، په شبقدرکی په‌یوه‌برید کې قبایلی خلك ساپیان شینواري او خوګیانې ووچې هغوي‌ټول له‌افغانستان‌څخه وواود هغوي مشرد هلدی انغانی ملاو. رښتیا هم یو شمیر انغانی عسکر چې په یونیفورم کی وولیدل شوی وو چی هغوی په جنګ کښې برخه‌اخیستله. خودانګریزانو احتجاجونوته‌امیرعبدالرحمن‌خان‌په‌نرمه‌اوپسته ژبه‌په لاندې‌ډول‌ځواب‌ورکړ: زماله سیمو څخه هیڅ یو قبایلی یو دغه ډول عمل په ښکاره طریقې‌سره نشی کولی خوځینی له هغوڅخه دهدی په ملا باندی زیاته عقیده لری‌اودامکمنه ده چې ښایی هغوی دشپې په‌اوږدوکې له هغه سره یوځای شوی اوسی اود غلوپه شان یې پرنا اشنا لارو باندې سفرکری‌وی. داخننګه امکـان لري چی دیودغسې پراخ سرحدپه اوږدوکې په شپه کـېې‌غله‌وڅارو. زما مهربانه ملګریه! یودغه ډول تیاری‌اوترتیب یوازې له دې لارې امکـان لري چې تقریبا لس زره عسکروته د ټولو غرونو په سرونوکې‌وظیفه ورکړو. (١٤)

دامیرعبدالرحمن‌خان « صمیمي ملـګري » دامیرله دوه مخیتوب څخه خبروو مګر دهغوی‌لاسونه تړلـي ووکله چې‌جګړه بـې‌ساري ارتفاعاتوته وختلـه. داپرید

ومرکز یتر اباغ باندې په یوه برید کې انګریزانو تقریباً دولس سوه نفره چې په هغو کې یو جنرال هم شامل و تلفات ورکړل؛ که څه هم هغوی خپل هدف ته ورسیدل خو د هغوی په شا تلنه هغوی ته په ډېر قیمت سره تمامه شوه.

افغان امیر عبدالرحمن خان په ماهرانه توګه، بلوا ګانو څخه کار واخیسته چې خپل منفي شهرت (چې د ملایانو د اعدامولو د کار په نتیجه کې د هغه په سر څخه شوی و) د تقدس په یوې چاپنې سره پټ کړي. حتی له بغاوت نه دمخه په کابل کې د ملایانو انجمن سره وکتل کوم ته چې امیر عبدالرحمن خان د جهاد دلوړ تیاوو او وياړ ونو او د واقعي معتقد ینو د وظیفې په باب یوه احساساتي خطابه ورکړه چې د کافرانو جرړې وباسي؛ په عین وخت کې یو کتاب چې په فرضي ډول دامیر عبدالرحمن خان اثر ګڼل کیږي وویشل شو چې هغوي یې دې ته رابلل چې په خپل ټول قوت جهاد وکړي. دانګریزانو احتجاجونو ته امیر عبدالرحمن خان داسې ځواب ورکړ چې هغه په عمومي ډول او په فلسفي اصطلاحاتو غږیده.

له پر له پسې یو کلنې او قیمتي جګړې څخه وروسته قبیلې په یوې نا ارامې کوارۍ کې ډوبې شوې په داسې حال کې چې تر څلورپینځو زرو زیات برتانوي عسکر په قبایلي سیمه کې یا په سرحد کې پاتې شول. حتی دغه اوربند یا سوله اغفالوونکې وه ځکه چې هیڅ یو برتانوي منصبدار یا عسکر د اجرأت و نه کړ چې د قرارګاهو له پناګاه نه منحرف شي او برتانوي کنترول یوازې په هغه ځای کې مؤثر وچیرې چې په مستقیمه توګه یې دقرې له نحوا ملاتړ کیده. په څرګنده توګه ثابته شوې وه چې دانګریزانو دمخ په وړاندې تګ سیاست یوه ګرانه (پرخرج) ناکامي وه؛ او برتانوي سیاستمدارانو په دې وخت کې د تماس دیوې نوې لار په باب پریکړه وکړه.

نوي پروګرام په ۱۸۹۹ کې د نایب الحکومه په حیث دلارډ کرزن له رارسیدو سره اغیزه وکړه. تقریباً په چټکۍ سره کرزن برتانوي قواوې له قبایلي زون (سیمې) څخه دباندې سیمو ته وایستلې او دنظم ساتنه یې قبایلي سرتیرو یا پخپله قبایلو ته پریښوده. دوه کاله وروسته کرزن دشمال لویدیځ سرحدي ولایت جوړ کړ.

دسیاست له پلوه نوی ولایت په دې ډول په دوو زونو نوو ویشل شو: یوه «ترادارې لاندې سیمه» چې دانګریزانو تر مستقیم کنترول لاندې وه او په دغه سیمه کې ده‌زاره، پیښور، کوهاټ، بنو او ډیره اسماعیل‌خان سیمې شاملې وې او بله یې یوه «ازاده قبایلي سیمه» وه چې دترسلط لاندې سرحد او د ډیورند د کرښې ترمنځ پرته وه. په وروستې یعنې آزاده سیمه کې قبیلي دپنځو سیاسي اجنسیو تر نظارت لاندې ځای په ځای شوې وې - دوابه، ملکند، خیبر، کرم او توچي (Tochi) اجنسي او دسیاسي افسرانو له لارې یې له هغوی سره معامله او رفتار کیده. په حقیقت کې دغه قبیلې تقریباً کاملاً خپلواکې پاتې شوې او هغوی ته زیاتې مرستې ورکړل شوې چې امنیت وساتي.

دغه پیښې دافغانانو دخوښې موجب وګرځیدې که څه هم امیرعبدالرحمن‌خان زیات ژوندی پاتې نشو چې دخپلو دسیسو ثمره یا نتیجه وویني. د اختلاف ور افغاني سیمه دانګریزانو دکنترول له حدود و څخه دباندې پاتې شوه چې لاس پرې نه ولګید لی او انګریزانو تر یوه حده پورې خپل ځانګړی حالت غوره ګڼلې و، څوله بده مرغه یوه توره له یوه څخه په زیاتو څواوکي ګرځید ای شي.

له دغه وخت نه وراندې هغه غرو نه چې په هغوکې ختیځ پښتانه میشته شوي وو د مخفي اجنټانو د زیات تګ را تګ ځایونه ووچا چې کولی شول چې خپل کار له طلا سره پر مخ بوځي - داالبته یو داسې نعا لیت وچې پخپله قبا یلي خلکو ته تر زیاتې اندازې پورې دمنلو وړو.

اوبه چې پرسرواوړی، څه
یوه نیزه څه دوه. (پښتو متل)

# دولسم څپرکی

## امیرحبیب الله خان

کله چې د امیرعبدالرحمن خان تر تولو مشر زوی امیر حبیب الله خان په ۱۹۵۱ کې پرته له کوم مخالفت څخه پر تخت کښېناست، په افغانستان کې دود او عنعنه زیانمنه شوه ـ دغه سخت زړی او بې رحمه پلار ته وروستی خراج . دامیرعبدالرحمن خان بل یوازنی بالغ ولیعهد نصراله خان بر سیره پردې چې دامیرحبیب الله خان یو سکه ورور و تر زیاتې اندازې پورې قرآن شریف ته وفادار و څکه نو امیرحبیب الله خان ته هیڅ خطره نه وه موجوده:

نوی واکمنی یو تیت او پلوند سړی و او څرګنده څېره یې خپل پلارته ورته وه خو یو په زړه پورې او خوش طبع سړی و. هغه ذاتاً یو مهربانه او حوصلمه ناك سړی وه دښې زده کړې خاوند او په یو څوژبو باندې دېر ښه پوهیده . د هغه خورا لوی عیب داو چې شهوت پرسته و. پر خلاف دامیرعبدالرحمن خان (هغه څوك چې جنسی عمل یې دیوه لذت ښوونکی خودڅوندانه دیوه فرعی اړخ په حیث باله) امیرحبیب الله خان د تیمورشاه سرمشق ته مخه کړه او خپله زیاته خوشالی یې په حرم کې لاس ته راوړه. هغه دخپلو زیاتو ښځو او صیغه شو یو ښځو له امله له سلو څخه د زیاتو کوچنیانو پلار شو .

د امیر حبیب‌الله خان لومړنی بهرنی سیاست دده‌دپلار له وروستی سیاست څخه کاپی شوی واوپه څرګنده توګه برتانوی ضدسیاست و . دغه سیاست معمولاً د انګریزانو د اندیښنې سبب ګرزیده په تیره بیاوروسته له هغه چې امیرحبیب‌الله خان ته دروسانو دجنګ وزیر جنرال کروپتکین (Kuropatkin) له خوا یوله غوره مالی څخه ډک پیغام لیږل شوی‌و.

لارډکرزن سمدلاسه خپل مخالفت امیر حبیب‌الله خان ته دیان لیاك دلیږلو په وسیله ښکاره کړچې هند وستان ته سفروکړي چې دغه بلنه په‌ډ دبانه‌توګه‌ونه منل شوه . امیرحبیب‌الله خان ته دکلنی مرستې دبندولوله‌لارې د فشار تطبیقول وهڅه بې فایدې ثابه شوه؛ امیر حبیب‌الله خان په ساده ډول هیڅ کوښښ ونه کړچې مرسته ترلاسه کړي.

ځینې له مخالفتونو څخه د نائب‌الحکومه لارډکرزن له‌شخصیت‌څخه‌راپیداشوی وو.کرزن چې د«مستعمرو دستر ونائب الحکومه ګانو څخه وروستی نائب الحکومه یلل کیده»ـ دایوه‌اصطلاح وه چې‌ښایی پخپله دهغه له خوااختراع شوې وی ـ تر زیاتې‌اندازې پورې خودپرست‌واو د«سپین پوستو دمسوولیت »دمکتب پلوی واوپه دې وسیله یې ځینی له خپل هیوادوالو څخه پارول‌او برسیره پردې افغانان اوهندـ یان دواړه یې په‌غوسه کړل.

پرسیره‌پردې، دپیری بدلیدنه دانګریزانو دتیرې کیدونکو اندیښنو موجب وګرزیده.له‌روسانو څخه‌بیم اوویره چې دیـ ووخت د پاره بی حرکته‌وه د تزارپه بهرنی‌سیاست کې له بدلونونوسره بیاراژوندی شوه او دبویرجنګ (Boerwar) د بریتانیی د لاپی وهل شوی تجریـد کم پـایښـتی و بنودلـه . په یقینـی ډول هاسنه له ۱۹۰۰ څخه تر ۱۹۰۵ کالونو په موده کـی روسي فعـالیتونـه روان وو‌چې دانګریزانوله نظره هغه صرف لمسوونکي فعالیتونه بلل کیدای شي . په منځنی آسیاکې دروسانو پرمختګونو دوام ومونداو دتزارد حکومت دڅرګندونې پراساس چې غوښتل یې «له افغانستان سره نږدې اقتصادي‌اړیکې ولري» په همدې

هیله در وسانو دا وسپنې پټلۍ له تاشکند څخه تر کشکک پورې په افغاني سرحد کې و
غزول شوه. په تبت کې یو سایبیریائي چې نوم یې دورجیف (DorJieff) وله دالای
لاما(Dalai Lama) سره دیوې توطې په جوړولو لاس پورې کړ چې دالای لاما بـر
خلاف درسم او رواج دهلکتوب له سن څخه اوښتی و.(۱) کرزن ددې دپاره چې د
روسانوله طلااوژمنوسره مخالفت وکړي ، دینگ هسبند (هماغه منصبدار چې په
پامیرونو کې دیانوف له خوا نیول شوی و) په مشری یوسیاسي هیئات لهاسا(J.hasa)
ته ولیږه . هیات په لارکې دشپږسوو تبتیانوله وژلو څخه وروسته دتبت پایتخت ته
ورسید اوزریې لاماقانع کړ چې امتیازات ورنه کـړي یا بـهرني نـمایندگان
دانگریزانوله تائید څخه پرته ونه مني .

له دې بري سره سره ، دروسانو د پرووتکو اعمالو ادامه پیدا کړه . حتی دروس ـ
جاپان دجنگ ماتې ونشو کړای چې دافغانستان په برخه کې دانگریزانو اندیښنه
لرې کړي ځکه چې تحقیر شوي روسانوهاندو کړ چې په هیواد کې عمومي نارضایت
دیوه خارجي دښمنی پـه لـوردمخالفت دراوړلولـه لارې کنترول کړي . لارډ
کرزن یو داسې سړی نه وچې روغې یاامتیاز ته غاړه کیږدي اوده غه دجګړې په حال
کې سراعلی کوماندان کیچنر (Kitchener ) لـه خپل زیات غیرت سره د
روسانوله تصادمو څخه یې په زړه کې خیالي ویره درلوده .

لارډ کرزن دافغان ـ انگلیس په برخه کې له مسایلو سره چې په هغو کې یو
خطرناك ځنډ راغلی و ، انگلستان تـه وغـوښتل شـوا وخپل کارونه یـې لارد امپتیل
(Ampthill) ته پریښودل . امیر حبیب الله خان زر اعلان کـړه چې هغه څلریشت
افغانان دنمایندگانو په حیث په نورو هیوادو کې مقررول ـ یو کار چې انگریزانو ته
دامیرعبدالرحمن خان دوعدې په خلاف وچې غوښتل یې لـه بهرنـیو هیوادو سره
یوازې دهغوی دمنځگړتوب له لارې چلند وکړي. کرزن دیوسملاسي بریدپه برخه
کې تینگار وکړ؛ خودبریتانیې حکومت لارومیی دنائب الحکومه گانو خبروته پام
وانگرزولی واوداحل یې پخپله مجادله وکړه اوله امیرحبیب الله خان څخه یې وغوښتل

چې یو برتانوي هیئات خپل حضور ته ومني . امیر حبیب الله خان چې انګریزان یې اوکړي ووچې هغه ته ورشي پریکړه وکړه چې پرخپل بخت باندي له دینه زیات تکیه ونه کړي ؛ هغه دانګریزانو پیشنهاد ته دصمیمي موافقې اویوې وعدې په وسیله ځواب ورکړ چې دهغه ترټولو مشرزوی عنایت اله خان به هندوستان ته سفروکړي. څرنګه چې شهزاده په دې وخت کې صرف شپاړس کان و، دغې وعدې زیات اهمیت نه درلوده .

برتانوي هیات چې مشري ئې پې دسرلویس دین (SirLouisDane) پرغاړه وه ، د۱۹۰٤ کال ددسمبر په ۱۲، کابل ته ورسید. ددې هیئات غړي دکرزن له خواکم شوي ووچې دقدرتونوپه هیئات باندې یې باور نه درلوده. هغوی په نظر کې درلوده چې ددیورند له کرښې نه هاخوا دقبیلوپه منځ کې دافغاني دسیسو نه سوادافغانانودکو یتې - چمن داورګادې لاردمقاطعې دپای ته رسیدوتقاضاوکړی اوپه هماغه کرښه باندې یونوی تړون د هغه یوپه خیر پای ته ورسیده چې هغوی له امیرعبدالرحمن خان سره پای ته رسولی و.

امیرحبیب اله خان مهربانه خولجوج و. هغه به ویل چې دی له کارونوڅخه لکه څنګه چې ووکاملا راضي وځکه چې هغه له روسانو څخه دارنه درلوده او ځان یې یو دومره ستر واکمن ګڼلی و څومره چې دجاپان امپراتورو: وروسته له هغه (په داسې حال کې چې په کارونو کې ځنله راغلی و) هغه یوتړون په خوږې اوله صنعتونوڅخه دکې فارسي لیکل شوې واوله مبالغې څخه ډك ومنځ ته راوړ خوپه هغه کې یې دانګریزانو دغوښتنو یادوونه نه وه کړې . دغه تړون صرف هغه موافقې بیاپه څرګند ډول بیان کړې چې له امیرعبدالرحمن سره شوې وې او (دافغانستان ددولت اوددې دولت دتوابعو دیوه خپلواك پاچا) په حیث امیر حبیب الله خان ته ورانډې شوې. اوامیر حبیب اله وویل چې دازماوروستی پیشنهاد دی؛ انګریزان به یادغه پیشنهادومني یابه هیڅ شی بالکل لاس ته رانه وړې . (۲)

دهندوستان دحکومت له خوامخالفت له غضبه ډك و؛ کرزن چې لاتراوسه

پوري په لندن کې و دمذاکرو دفوري تيالو لوغوښتنه و کړه خو بيا هم ددهلي جګړه
غوښتونکي دانګليسي کابينې له نظره غورځولي وو ؛ دين Dane ته لارښوونه وشوه
چې قرارداد تصويب کړي او د ۱۹۰۵ کال دمارچ په ۲۱ يې قرارداد تصويب کړ،
مسمدستي دامير حبيب اله خان وضع کاملاً صميما نه او دوستانه شوه . (۳)

امير حبيب اله خان دخوشالي دپاره دليل درلوده . انګريزانو هيڅ شي لاس ته
رانه وړل خو کوم تعهدات چې دامير عبدالرحمن خان له خوا ورکړل شوي وو،
دامير حبيب اله خان له خوا دهغو ردونه په بنايي دانګريزانو ديوه بريد موجب
ګرزيدلي وي . امير حبيب اله خان په دي بريالي شوي و چې ۴۰۰۰۰۰ پونډه کلنۍ
مزسته چې په انګريزانو باندې پاتې وه لاس ته راوړي اويوه ضمني موافقه چې
هغه (يوخپلوا کي پاچاو) ترلاسه کړي .خو امير حبيب اله خان ادامه ورکړه چې
[دامير لقب استعمال کړي او هغه دخپل زوی امان اله خان دسلطنت تر دوري
پوري پاچانه بلکې يو امير وچې دشاه لقب د افغاني وا کمنانو له خوا بيا ترلاسه او
استعمال يې بيا پيل شو.

د ۱۹۰۶ کال په جون کې ، امير حبيب اله خان بل بلن ليک ترلاسه کړ چې هندو-
ستان ته سفروکړي چې هغه دغه بلنه تريوه شرط ايښودلو وروسته ومنله چې هلته
بايد پر هيڅ سياسي موضوعاتو باندې بحث ونشي . دهغه دمفکوري دبدلون
دپاره يوله دلايلو څخه له هندوستان څخه دلارد کرزن روانيدنه وه ځکه چې په
افغانستان کې له بريښندنائب الحکومه څخه زياته کرکه کيده .

امير حبيب اله خان چې خپل ورونصراله خان او خپل دوهم زوي امان اله خان يې
په کابل کي دپاچادنايبانو په حيث پريښي وو او يو ولس سوه پيروان يې له ځانه سره
بيول ، ځکه چې په کابل کې دهغې د زياترو له پريښودلو څخه ويريده، د
۱۹۰۷ کال په جنوري کې هندوستان ته ورسيد . هغه دوه مياشتې په هند وستان
کې سياحت وکړ چېري چې هغه ته هرشي وښودل شول چې شايي هغه دانګريزانو
له قدرت سره ترتاثير لاندې راشي او په دغه ښودنه کې زياتره پرپوځي معاينو باندې

خاص تړینګار کیده .هغه په ځانګړي افغاني طریقې سره ځان خپلو میلمه پالوته په زیاته اندازه محبوب کړ ، په امرستر کې یې دسکانو معبدته سوغاتو نه ورکړل، دکلکتې د موسمې دیټې اجتماعی تولنې Freemasonofthe Calcutta Lodge غړی شواو بوشمیر انګلیسی ښځو ته یې دواده کولو پیشنهادو کړ هغه چې ده په خپلو سفرونو کې ورسره لیدلې و.

انګریزانو عقیده درلوده چې داسفر به یو نامناسبه بری اوسی ځکه چې د هغوی مناقشې او شخړی پراساس امیر حبیب اله خان تر هغه وروسته دانګریزانو پلوی و. خو هغوی په دې برخه کې خطاوتلی وو ؛ هغه په هماغه اندازه دانګریزانو پر ضد وځو مره چې دهغه پلار دانګریزانو پرضدو او هیڅ میلمستیا دیوه مربدبیني ګانې له منځه نشوی وړای. هغه څه چې انګریزانو پری دملګرتیا ګمان وکړ هغه دشاه مینه ناك او نرم مزاج او طبیعت و. دی دخپل پلار په شان متجاوزنه واو تر زیاتې اندازې پوری د دسولې علاقمند واو دسولې له ښیګڼو څخه یې ښخوند اخیست ترکومه ځایه یې چې په امیر حبیب اله خان پوری اړه درلوده دغه تجربه په ګټه نه وه ځکه چې له همدې وخت نه را په دې خوا ځینې افغاني مشرانو هم داعقیده په ګونګوسی سره ښکاره کړې وه چې امیر حبیب اله خان دهغو له عنعنوی دښمن سره زیات صمیمي شوي و .

دامیر حبیب اله خان ترسفر وروسته ډیر زر دافغانانو او انګلیسانو داړیکو استثنایي تودوالی خپل عادی سوړوالی ته را وګرځید داخل په روایت هال(Whitehall) کې دځینو کم عقلو دیوي ناوړې پالیسی نتیجه وه. دجاپان له خوا دروسانو ماتې د انګریزانو دار چې له روسانو څخه یې درلوده کمه کړي وه ؛ دغه ببرچې له ډیر پخوانه خلك ورڅخه داریدل په کاغذي ببر بدل شوی و.

دهندوستان برتانوی دفاعی قواوې دانګلسیانو او جاپانیانو ترمنځ د ۱۹۰٤ کال دترون دیوې مادي اوشرط په وسیله پیاوړې شوې وي چې په هغه کې جاپان موافقه کړې وه چې له انګریزانو سره دهندوستان دشمال لویدیځ په ساتنه کې

همکاري وکړی او په‌دې وخت کې الـمان دانګریـزانو او روسـانـو ددوارو د اصلي او ستر رقیب په حیث په ویرووونکي‌بڼه څرګند شو.

تردغسې شرایطو لاندې لویې بریتانیې او روسیې ځینې اختلافات دانګلیسـانو اوروسانو ترمنځ د۱۹۰۷ کال دتړون دلاسلیك کولو په واسطه‌لرې کړل‌انګریزانو ژمنه وکړه چې افغانی حکومت بدل نه‌کړي او روسانو موافقه وکړه‌چې افغانستان دروسانو دنفوذ له ساحې څخه دباندې و.داچې نه انګریزانو اونه‌دروسانو هیئت مناسبه نه وه ګڼلې چې افغانانو ته خبرورکړي چې دهغوی پرهیواد باندې‌بحـث کیده پرافغانی ویاړ باندې یوبل‌ګوزارو.قرارداد ترهغه وخت پوري نه نافذ‌کیده ترڅو چې داد افغانستان له‌خوا تصویبـ شوی نه و او امیرحبیب الله‌خان دقرار داد له‌تصویبولو څخه دده وکړه .داستریا ـ هنګري او المان په مابقل‌کې زیاتیدو نکي دښمنی روسان دې ته اړکړل چې له دغه تفصیلاتو‌څخه سترګې پټې کـړي، هغوی په ۱۹۰۸ کې‌موافقه لاسلیك کـړه .

دموافقې نتیجې دکابل په دربار کې په جنګ لګیا انګریزی ضد دله پیاوړې کړه دلویې بریتانیې او روسیې ترمنځ موافقه هم دیوه عمل اومشق دموقتی پـای چی په افغاني خارجی سیاست کی عنعنه ګرزیدلی وه دافغانستان له ګاونډیوڅخه پریوه باندې فشار اچونه دګواښ له لارې له‌بل سره معامله کول دی .

خوامیرحبیب الله‌خان لاهم په سرحدی قبیلوکې‌نفوذ درلود او هغـه له‌دغـه څخه په اغیزمنه توګه کـار واخیست.چې خپله نارضایتي څرګنده کړی. په شمـال لویدیځ‌سرحدی ولایت‌کې دبریدونوشمیر (دافغاني‌کړوورد رسمي‌بدلون درجه) په۱۹۰۷ کال‌کې له‌شپږ‌پنځوسو نه‌په۱۹۰۸ کال‌کی‌نه‌نوي ته زیات شواو په ۱۹۰۹کی دیوسلو نه پنځوسو یوې‌ناارامه‌کوونـکې مجموعې ته زیات شو .

دانګریزانوپه مقابل‌کې‌د خوټیدونکې ضدیت نـه سوا ، پـه افغانستان کـی لـه لومړی نړیوالې جګړې څخه لږ‌څه‌دمخه‌کلونوسکوت د یوه ځانګړې دیادونـې‌وړ استثنا په واسطه مات شوی و. په۱۹۱۳ کال‌کې‌دخوست ځینوقبیلوپه تیره‌بیا منګلو

بلوا وکړه چې د هغوی پلمه یوه معلومه پلمه وه او هغه داوه چې پر هغوی باندې مالیه اېښول شوې وه . افغاني پوځ دومره نا پوه وچې هیڅکله دومره ناپوهه واو حکومت له نورو قبیلو څخه خطرناکې په ځای مرستې غوښتلو ته اړ کړل شوی و .

څوارلس زره سلیمانخیل ، شینواري اوخوګیاني قبا یلي خلك کوم چې د هیجان اوتحریك لپاره لیوال وو په چټکۍ سره په خپله خوښه حاضر شول - یوه قوا چې له پوځ سره یوځای شوه د منګلو د پاره یوخوراغښ پوځ و . تندان ته نژدې تر یوې ماتې وروسته یا غیانو د سولې غوښتنه وکړه او د افغانې کوماندان نادرخان له خوا ورته د سولې اسانه شرایط وړاندې شول .

ددغو کلو نو په ترڅ کې یومهم داخلي پرمختك په افغاني حکومت او په دربارکې ددلو زیاتوالی و . امیرعبدالرحمن خان چې یو نمونه تولواکو (Toialitarian) دیو دغسې بهیرخطر په یوه هیواد کې لکه افغانستان درك کړی واو په زیاتې بې رحمۍ سره یې دغسې دلې ځپلي وې . له بلې خوا امیرحبیب اله خان زړه سواند او نرم سړی وه . پرتخت باندې دهغه له کښیناستلو نه وروسته ، زیاتره له هغوکسانو څخه چه د پلار د سلطنت په دوره کې یې په تبعید کې ژوند کاوه افغانستان ته را ستانه شول او هلته یې دنوې امیر له خوا تو دهر کلي وشو او اعزازي مقامونه او مسولیت ورپه غاړه شول . یو شمیر له دغو کسانو څخه د یویشت بارکزیو وروڼو اولادونه وو او اکثر آیې په خپلو منځو کې زیاتې اړیکې درلودې ځکه چې هغوی دافغانې دوداوعنعنې پراساس له نژدې خپلوانو سره لکه دکاکا لور ، ماما لور او دترور لور سره ودونه کوي.

دننه په شاهي کورنۍ کې نژدې خپلوان د پاچا سکه ورور نصرالله خان او د هغه دوه تر ټولو مشرزامن عنایت اله خان اوغازي امان اله خان وو. نصرالله خان خپل ورور ته وفادار ومګر دهغه سرزوري مزاج او طبیعت اوله مذهب سره دهغه غیر عادي لیوالتیا دهغه مخه نیولې وه . عنایت اله خان یوچاغ سړی و( په افغانستان کې یوزیات غیرمعمولي مشخص صفت) او د خپل تره په شان په غیرعادي دول پرهیزګار و ؛ غازي امان اله خان چې خپل پلار ته منلی ویو تکړه اوقابل سړی وکه څه هم تر یوې اندازې پورې نامنظم و .

هد غه داخلي دلي نفوذ له‌دايرې څخه د باندې درې مهمې دلې موجود وې . يوه دله چې دمصاحبانو يا يحي خيلو په نامه ياد يدله دسلطان محمدله اولادې څخه جوړه شوې وه چې ددوست محمد خان وروره‌څوك چې دوالي په‌حيث يې پېښور دسکانو دپاره اداره کړې و. يود سلطان محمد خان له زامنو څخه يحيى خان دګيو ګنارې ترمرګ اوړه ۱۸۷۹کال کې د انګريزانو له بيا بريد څخه وروسته يعقوب خان په هندوستان کې په تبعيد کې تعقيب کړی ويعنې يحيى خان هم تبعيد شوی و. دلته د هغه زوی محمد يوسف‌خان پنځه کوچنيان درلودل هغه‌کسان چې په نظر کې ووچې دمعاصر افغانستان په پرمختلك كې يو مهم رول‌ولوبوي. دغه‌پنځه کوچنيان چې عبارت وو له محمد عزيزخان،نادرخان محمدهاشم خان، شاولي‌خان اوشامحمودخان‌څخه‌-تولو په‌هندوستان کې زده کړه کړې وه‌اودامير عبدالرحمن ترمرګ وروسته په‌۱۹۰۱کې بيرته‌افغانستان ته راستانه‌شوی وو‌ ٠نوموړی وروسته چې دامیرحبيب‌الله‌خان له خوا په ښه توګه منل‌شوی وو، زر په‌افغاني حکومت کې لوړو مقامو نو ته‌ارتقاوکړه چيرې هغوی برسيره پر کورنی کلکې وفاداری زيات لياقت اومهارت له ځانه وښوده .

دمثال په ډول،نادرخان جنرال و چې په ۱۹۱۳ کال کې يې دمنګلو پا څون پای ته ورساوه او هغه ته دافغانـي پوځ دسراعلى کـوماندانی پســت مکافات ورکړل‌شو .

په دربار کې يله پياوړې دله دطرزی کورنی وه چې نوموړی درحيم دل‌خان له ګنډې څخه‌و اورحيم دل خان يود «دل» له وروڼو څخه وچاچی دامير دوست محمد خان دواکمنۍ په زمانه‌کې کندهار اداره کړی او هلته يې حکومت کړی و. دامير عبدالرحمن‌خان‌دسلطنت‌په‌دوره کې طرزيانو دمصاحبانو په‌شان په تبعيد ژوند کړی‌واوپه‌دمشق( Damascus ) کې ځای په‌ځای شوی‌ووچيرې چې محمود بيګ‌طرزی غربي زده کړه‌تر لاسه کړه‌اويوه‌سوريايي نجلی يې‌واده کړه.همدارنګه محمود بيګ طرزی‌چې‌دځوان‌ترك ( Young Turk ) دغورځنګ په‌واسطه‌زيات‌تراغيزې‌لاندې

راغلی وا وافغانستان ته یې په خپل راتګ سره دیوه بدلون غوښتونکی په حیث په قلم لاس پورې کړ او یوه جریده یې تأسیس کړه چې هغه دسراج الاخبار افغانیه په نوم یادیدله .

دریمه پاوړې کورنی دچرخی کورنی وه چې دې کورنی څړي دغلام حیدر چرخي اولاده وه چې نوموړی د امیرعبدالرحمن خان تر لاس لاندې سراعلی کوماندان وچې هغه یوله هغو اشخاصو څخه وچې بې رحمه امیرعبدالرحمن خان تل وربانـدې اعتماد کاوه . دغلام حیدرخان دوه زامن غلام نبي او غلام صدیق جنرالان وو چې هغوی په قبیلو په تیره بیاد غلزیو په قبیله کې نفوذ درلوده . په دغو د لو باندې امیر حبیب الـله خان کنترول درلوده چې دا یو نرم کنترول وmگر اغیز من و . هغه دغربـي لارو ارزښت درك کړی وخو هغه په افغانستان کې دابتکاراتو یانو ښتونو خطر هم لیده او راضي نه وچې خپل په زره پورې موقف د هیواد د پرمختـګ پر خاطر په خطر کې واچوی . کله چې زیات خارجی تخنیکران په هیواد کې څرګند شول ، هغوی برسیره پر خپلو ګټورو معاشونو له شاه څخه لږه مرسته ترلاسه کړه .

څینې له دغو کسانو څخه بې مسلکه او بې لارې ما جراجویان وو چې بلـې محکمی ته له سپارنې نه په مصئونه توګه له حرکت کولو څخه دمخه له افغاني میلمه پالنې څخه ګټه واخیسته چې افغاني خزانه په اریانو ونکې توګه تاواني کړی .

ښاي دحبیبې لیسې جوړول دامیرحبیب الله خان له سترو اسهامو یا خدمتونو څخه وی چې هغه خپل هیوادته وکړ چې داښوونځی دافغانستان لومړنی عمومي ښوونځی وکه څه هم په بدګما نی او ناسمه توګه ادعا کیده چې داښوونځی یوازې دهغه اولاد وته دخپل ورکړ لود پاره جوړ شوی و . رښتیا هم دحبیبیه ښوونځی تاسیس مخ په وړاندې یو مهم ګام مشخص کړ . دا ښوونځی دیوې فرانسوی لیسې دنمونې پر اساس جوړ شوی واو په هیواد کې یې غربې ښوونه او روزنه معرفي او دود کړه .

دوغه شوونځي له فارغانو څخه زياتره په افغانستان کې نامتو کسان دي چې په نامتو کسانوکې دافغانستان زياتره اوسني مشران هم شامل دي .

دلومړۍ نړيوالې جګړې پيل په اوله کې په افغانستان کې دلېږي پاريدنې موجب وګرزيده ځکه چې دزياتو افغانانو په نزد جرمني صرف يونوم واو په اروپا کې پېښو هغوی ته لږ اهميت درلوده خو دغه بې تفاوتي جنګ ته دترکانو دداخليدو په واسطه يو ناڅاپه پای ته ورسيده ؛ له هماغه وخت نه را په دې خوا سرحدی غرونه دهغه له پسې دسيسو اووژنکوعملياتو لپاره چاپريال وګرزيده چې په دې عملياتو کې له دول دول چړو اوتقابونو څخه کار اخيستل کيده .

که څه هم افغانانو لکه څنګه چې دترکيې مسلمانو ګاونديانو له ترکانو څخه بدوړل ، نه له ترکانو څخه بدوړل اونه يې له هغو سره زياته مينه درلوده . (٤)خوتر کيې لاتر اوسه پورې له پخوا نه څه ناڅه خپل حيثيت ساتلی دی او دافغانستان دحدودو په اوږدوکې دادمسلمان نشينو تقريباً يوازنی سيمه وه چې له بهرني کنترول څخه ځان وساتي . برسيره پردې ، دبې رحمه سليم له زمانې راهيسې دخليفه ددروندلقب ادعاد ترکي سلطانانوله خواشوې وه . زياترومسلما نانو له ابتدا څخه دغې ادعا ته لږ اعتبار ورکړی واووروستيو ترکي پاچاهانو کله چې هغوی په حرمسرای کې بوخت وودغه لقب پريښی وچې کرارکرار له استعمال څخه ولوېږي .

خو ځيرك سلطان عبدالحميد «ملعون» (له ځوانو ترکانو سره په خپله مبارزه کې دالقب بيا راژوندی کړی و) هيله کوله چې دنوښت غوښتو نکو پرضد په خپله جګړه کې دمحافظ کارانو او ملاوزمه دلو ملاترتر لاسه کړي . په دې دول ترکي سلطان تقاضا وکړه چې داسلام په نامه خبرې وکړي .

هغه يوازنی ځايونه چيرې چې دترکي واکمن ادعا داسلام دسپځلي ليډرشپ (مشري)لپاره په عجيبه دول سره تائيد شوه په هندوستان اوافغانستان کې وو. دپارس شيعه مسلمانانو صرف ترينه کرکه کوله او دنږدې ختيځ شيعه مسلمانان

هغه کسان چې د ترکي و اکمنې واقعیت یې تجربه کړی وزیات متمایل وو چې که چیرې ترکانو خورا زیات کومک تر لاسه کړی وای ، دامرسته به حتماً دشیطان له خوا شوې وای .

په افغانستان او هندوستان کې د ترکې ادعا گانو ملاتړ غالباً له یوه مخ په ترقی نیشنلیزم (ملیت پرستی) څخه، منځته راغی، یاپې سرچینه اخیستله چې دعیسویانو په نړی کې یې عثمانی امپراتوری ته، دمسلمانو د قدرت دیره سنگر په حیث کتل. دکلونو دپاره خطبه په هندی جوماتو نو کې د ترکي سلطان په نوم لوستل شوې وه او پخوا په ۱۸۷۸ کال کې لاردلیتن حکومت ته خبر ورکړی و چې «هندی مسلمانان په هیڅ صورت د ترکیې د سرنوشت بهباب بې تفاوته نهوو.» (۵)

جرمني پلان جوړ وو نکو د برتانوی امپراتوری په زغره کې دغه بالقوه درزیعنی کمزورتیا په نښه کړې وه او د اسلام نړی ته کاملا به عادی ډول راننوتي وو. الماني سوداگران ، مخفی اجنټان او ارکیالوجستان ټول په کار بوخت وو. او الماني طلاگانې په منو نکی یا اخیستونکي اسیایي جیبونو کې لویدلې وې. قیصر په پرله پسې ډول خپل ملاتړ په ټینگه له مبارزې اسلامي نړی سره څرگند کړاود برتانوي حکومت دهندی مخالفینو یوې ډلې هغه کسان چې د «هندي مؤقتي حکومت» ترنامه لاندې Indian Provisional Govevnment سره ډله شوي وو له برلین څخه ملاتړ ترلاسه کړی و. دغه ډله د پښتونې وطن پالو نکو، دوخت زامنو، د داسې جلاشویو کسانو او دبې آزاره لیونیانو یو مخلوط وچې دهغوی مشرمهند راپرتاب وچې د ۱۹۴۵ کال ترو روستي وخت پورې لاهم فعال و کله چې هغه په جاپان کی د یوه اریایي پوځ » (Aryan Army) دیوه مشرپه حیث څرگند شو. د دغې ډلې زیاتره غړي په متحده ایالاتو کې اوسیدلي وو؛ هغوی لږ د پښتونې نفوذدرلوده مگرهغوی د المانیانو په واسطه داداری دپاره یوه مناسبه وسیله برابره کړه. دواړه ترکي او الماني پلان جوړونکي خبروو چې د « حاجي » ویلهلم اخلاص (Wilhelm) به دمسلمانانو په مرکزونو کې وپوښتل شي. له دې امله ترکي مشر انور پاشا (EnverPasha) خپل پلانونه

پرمخ یوورل چې دخلیفه دموضوع په برخه کې دخلیفه رول ولوبوي یعنې خلک یې داستانبول، کربلااونجف له ښاروڅخه، جهادته راوبلل. پس له هغه جهادته هوښتنه یارابلنه دملا یانودشبکې له لاري خپره شوه چې له هغوی سره دترکې، الماني اوهندي نمایندګانوله خوا مرسته کیده .

انګریزانوسمدلاسه اقدام وکړچې ددغه تهدید مخالفت وکړي. دپیسو کومې تخصیصې چې په افغاني سرحدکي قبیلوته ورکړل شوې وې زیاتې شوې هغه، چې اپرید یوته ورکړل شوې وې تردوه برابره زیاتې وې اوجدي کوښښونه، وشول چې بانفوذه ملا یانسوته، پدي ورکړي. د انګریزانوله، ښوطالعونه دهغوی پخواني دښمن ملا پایند، په ۱۹۱۳ کال کی مړ شوی و؛ دترنګزیوحاجی صاحب لاهم فعال واودهغه ملا او تشویقي خبرو مومنند د پارید نسې په حالت کې وساتل. بل دتکلیف سیمه یوه مسلعمره وه چې انګریزانوته دهندوستاني متعصبینوپه حیث معلومه وه اوددې اندیوالانوته دمجاهد ینوپه حیث یا «دعقیدې له پاره جنګیالوته .» دمتعصبینودغه دله، چې مرکزونه یې دباجوړ په چارمرکند اوپه سمستا کي چې دسند په ښي ساحل کې پروت دی وود بر پلی (Bareilly) سید احمد شاه له خوادنولسمې پیړی په وختونو کې جوړه شوي وه اوله هندوستان څخه، دمهاجرینو لپاره چې په هغو کی زیات سپاهیان شامل وویوه پناهګاه وه البته وروسته دهغوی له بغاوت څخه. ددلې دغړوشهرت چې ځانونه یې اسلام ته وقف کړي وواودتولونوروعقید وپه مقابل دهغوی کلک مخالفت په پیاوړ ویوسفزیوکې له چاسره چې هغوی اوسیدل زیاته اغیزه درلوده .

دپښتنوپه غرونو کې د ناکراری یوبل عامل له هند وستان څخه دمسلمانوزده کوونکویوه دله وه چې هغوی په اصل کې د دیوبند ښوونځي زده کوونکي ووچې په متحده ویلاتونو کی دی. دغو کسانوخپل نږدې ارتباطات دهنددخپلواکی له غورځنګ سره وساتل چې دامریکې په متحده ایالاتو کې پرمخ تله او دترکې دا پیندې په برخه کې خورا زیات اندیښمن وو. که څه هم هغوی په ۱۹۱۵ کال کی دتکره بریتانوي خفیه

پولیسانو له خواځارل شوي وواو په هغو کې یې کرار کرار نفوذ کړی و. ځینې له هغو ځخه، په دې بریالي شول چې له سرحد ځخه، هاخوا وتښتي او په کابل کې ځانونه په آمن کې کړي. یاد، مجاهد ینو کې ځانونه خوندي کړي چیرې چې هغوی خپلاو تو طئو ته دوام ورکړ.

دغو تو لوعواملو دامیر حبیب اله خان په دربار کې جنګیالي برتانوي ضدد لــه پیاوړې کـړه چې لادمخه، یـې نه یوازې دپاچادوروړ دنصر الـه خان ملاتړ لاسه کړی بلکې دپاچـاد کشراو مځلي زوی امان اله خان ملا تړیـې هم تر لاسه کړی واو دمستغنفد محمود بیک طرزي مـلا تړیې هم تـرلاسه کړی و. یوازې پاچا اودهغه، یـوځوتنو پخوانیوسلا کارانـو د قبیلو د پارولو دپاره دجګړه غوښتونکو له پلان سره او په پای کې پرهندوستان باندې دیوعمومـي بریـد سره مخالفت وکـړ.

خو امیر حبیب الـه خان چـې زیات ځیرك ونه یې غوښتل چې په دې مخالفت کې ځر ګند اوسي ځکه چې دنخلکوجذ بات په دې وخت کې زیات شوي وواوحتی دهغه نږدې خپلوا ن هم پر هغه باندې د فعالیت نه کولو په سبب شکمن شوی وو؛ د دې لپاره چې د دغه مخالفت جواب ورکړي ، هغه اعتراف وکـړچی هغه ځان ترکي قضیې ته وقف کړی واو په عین وخت کې یـې ځر ګند وله‌چې داجهاد اتباري اوسم نه و ځکه، چـې داپه افغانستان کې نه وشوی . هغه خپلولیوالـو درباریانـو تـه خبرداری ورکړچې هرعمل وځندوي ترهغې چې انګریزان په اروپاکې دجنګ په واسطه کمزوري شوي وو. هغه دهندوستان انقلابیونو ته محدودې مرستې ورکړي اوبې حده یې وستایل اودکابل جریـدې (سراج الاخبار) ته یـې اجازه ورکړه چې پر انګریزانو باندې کلـك بریدونه وکړي . په عین وخت کې هغه په یوه مراود کې چې دمخفي اواتباري پیغام رسوونکو لـه لارې یـې له انګریزانوسره ساتلـې وه ځر ګنده کړه چې هغوی په دهغه دخبروپرځای دهغه دعماونوپه واسطه ترنفوذلاندې راوستل شـي .

ددغه دوه مخیتوب او ریاترشادرې دلیلونه موجود وو. لومړی داچې دتولوالک زیاتید

ونکې لټی له هغه څخه دجنګ حوصله لــه منځه وړې وه. همدارنګه هغه دافغانــې او برتانوي پوځې قدرت دنسبي قوت په برخه کې تر خپلو دربار یانو چې دهغوی دخپل هیواد دلیرې زمانې بریالیتوبونه په یادوو او پــرشانــلنــې یــې هیــرې کړی وې زیاته رښتینې پوهه درلــوده . په پای کې هغه باور وکړ چې متحدین به جنګ وګټي اودافغانستان دناپیلتوب لپاره به خپل امتنان څرګند کړي.

ده ۱۹۱ کال په آګست کې دامیر حبیب اله خان نا کراره مقام کابل ته دیوه ګډ ترکي ـ الماني هیئات درارسیدو په واسطه، کړکیچن شوی وچې داهیئات تقریباً داتیا نفرو څخه جوړ شوی و اومشری یې دتورن اوسکاروون نائیدرمایر او کاظم بې په غاړه وه. ددی هیئات په غړوکی نورتول ووځو افسانوی واسموس چې هغه (په پارس کې یو الماني جاسوس و) اودوه نامتو هندی انقلابیون چې موهندرا پر اتاب او بر کچولو نومیدل، یکښې نه وو. هغوی له بغداد نه حرکت کړی وچې خپله لاریې په پارس کې له برتانوی ګزمه وهونـکو څخه چپوله اودهغوی مطلب د اوچې امیر حبیب الله خان تشویق کړی چې پر هندوستان باندی برید وکړی.(٦)د غوزړه وروقابـلیت لرونـکو خلـکو لپاره هلته دکارله پیل نه ستونځی موجودې وې. پخوا له دې چې ترکان جنګ ته داخل شي. سلطان خلـک جهاد ته را بللی وواویوازی دیوشمیر جزئی بلواګانوسبب ګرزیدلی و . له پارس څخه امیدنه کیده څکــه چــې شیعــه پارسیان په اول، کې زړه نازړه وواوورووسته له هغه چې یو شمیر ترکی تولګیو په مستیوکې شخوته لاس واچوه او کورونه یـی لوټ کړل دښمن وګرزیدل. افغانستان اوامیرحبیب الله خان دکامیابـی لپـاره دهیأت وروستی هیلې وی .

په کابل کی دهیئات غړو ته میامستیااوداستراحت لپاره ځای ور کـړل شـوی ووچې دې دوارو ته هغوی ووسته له هغه چې له پرله پسې خطر څخه دکه دوه زره میله لارېې ووهله، کلـکه ارتیادرلوده .

خوپه توله لارکې دانګریزانوضد جنګیالی دلې له تینګې علاقې څخه نیولې بیاد شاه ترسمې ملګرتیااوورصمیمیت پورې دتودهرکلي اندازې بــدلون موندلی.

[ دهیئات غړو ته کابل ته نږدې د بابر په بڼ کې ځایونه تاکل شي وي او چیرې هغوی له امیر حبیب اله خان سره یو لړ مرکې پیل او د هغه له رعایاوو سره یې په یو لړ توطئو لاس پورې کړ.

دا دېر زر نائیډ رمایر ته ځرګنده شوه چې هلته لږ شي وچې له شاه ځخه تر لاسه شي، که څه هم امیر حبیب اله خان په پوره پاملرنې سره مباحثو ته غوږ کېښېښود او د محوري ځواکونو له مرام او غوښتنې سره یې بشپړه خوا خوږې ښکاره کړه. هغه ښکاره کړه چې هغه راضي وچې پر هند وستان باندې دیوه بریدلار ښوونه وکړي خو هغه غوره وګڼله چې جرمنی یا ترکی پوځ ته انتظار وکاږي چې نائیډ رمایر ورته دادور کړي وچې داپوځ به زر په لار کې وي. په پای کې له یو څ و میاشتو مذاکرو ځخه وروسته افغاني واکمن دیوه نامعقوله ترون مسوده لاسلیك کړه چې په هغې کې هغه د ۵۰۰۰۰ توپونو او شل میلونه طلائي پونډ ونو په بدل کې د افغانی مرستې ژمنه وکړه. نائیډ رمایر پوهیده چې هغه موفق شوی نه و خود هغه سند دملند واو مسخر و څخه دکې لو یې دلاسلیکول کار یې سرته ورساوه او پس له هغه یې د ۱۹۱٦ کال دمې په ۲۲، کابل پریښود چې ترزیاتو خطرونو وروسته پناهګاته ورسید او خپل میړنی دښمنان یې وستایل.

که څه هم دنائیډ ر مایر هیئات په تخنیکی توګه یوه ناکامی وه، خو هیئات دخپل بل پټ هدف په برخه کې موفق و. په داسې حال کې چې نائیډ رمایر او کاظم بې له شاه سره مذاکره کوله دهیئات نور و غړو دهغه له اتباعو سره او له نمایندګانو سره چې له هند وستان نه وو په کار لګیا وو.

هندي انقلابیونو چې هیئات ورسره په چټکې سره په سرحد کې له مسلمانو محصلینو سره په تماس کې وو او دهغوی له لارې یې له قبیلو او پخپله په هندوستان کې مخالفو (د عمومي عقیدې) داو سره په تماس کې شوي وو.

دغه غیر واقعي خوویرونکې پلان چې په هغه کې دغه فعالیت په نظر کې نیول شوی وچې اوج ته ورسیږي داسې طرحه شوچې د ۱۹۱٦ کال په وروستیو وختو کې

بشپړشي کله چې دهندی مسلمانو یوعمومی قیام په نظر کې وچې په روسی اسیا کې له یوې ورته یلواسره متناسب اوبرابروگرزول شي . په نظر کی وه چې په تاشکند کې له جرمني بندیانو څخه پوځ برابرشي؛ افغانستان بایدجنگی عملیاتومرکزاوسی اودبریالیتوب په صورت کې امیرحبیب اله خان باید دهندوستان پاچاهي .

امیرحبیب الله خان ددغه محتمل پلان لپاره دخپل شاهي دلگی تینگې علاقې ته مسکی شو اوهیڅ یې ونه کړل. رښتیاهم دااوس په افغانستان کې یوهعقیده ده چې هغه انگریزان له پرمخهٔ گونو څخه، پر له پسې توگه خبرول ـ دا یو فعالیت دی که دا ثبات ورنه دی خواحتمال لري. په هرحال، دانگریزانو دجاسوسی اداري په اغیزمنه توگه کاروکړ چې دزیاتوخلکو د نیولوله لارې د پلان مخهونیسی په داسې حال کې چې رقیبوجاسوسانو دسرحد په غرونوکی دوژني یوه مهلکه لوبه سرته رسوله. داچې په عین حال کې وحت کې قبیلې پهروغه کې پاتې شوې که څههم ناراموې تقریباً یقنی ثبوت دي چې امیرحبیب الله خان دهندي انقلابیونو ملاتړ نه کاوه. ځینې آله گـولې موجودې وې (مومند ود ترنگزیوحاجی عبدالواحد پهمشری په ۱۹۱۵ او۱۹۱۷ کې پرپیښو ربانديې بریدوکړ خو دنورو قبیلو له خوادهغوی ملا تـړ و نشو اودزیاتـو مالـی مرستو اودالوتکې چې په سرحد کې یوه نوې وسلهوه، تـرگلهې اغیزې لاندې یـې سقوط وکـړ.

که څه هم دامیرحبیب اله خان دلتې حکمت دمحـوري ځواکونو له سقـوط سره اثبات ته ورسید، دمتحد ینوفتحې یوازې د هغه درعایا ووکړ که اوخوابدي دهغوی له سباتي اوراحت غوښتونکی پاچاسره زیاته کړه. زیات پیاوړي درباریان چې په هغو کې دپاچاځینې ډیرنږدې خپلوان هم شامل وو، په دې معتقد شول چې شاه دافغانی عظمت دبیالاس ته راوړلوطلائی موقع له لاسه ورکړې اوهم داچې هغه اسلام ته خائن وځکه چې دترکانو مرستې ته نه وورغلی.

امیر حبیب الله خان که څه هم تنبل و، خو په دې پوهیده او لیدل یې چې دهغه چارچاپیرد کرکې اوقارڅپې راپورته کیدلې. دافغانستان لپاره یوازې یوڅه دپام وړ اغیـز

منه‌گته به نارا ضی نشنلستان غلي او کرار کړي اوده فکرو کړچې هغه، پوهیده چې داځنگه لاس ته راوړی. د ۱۹۱۹ کال دفبروری په دوهمه هغه، دهند وستان نائب الحکومه، ته یولیك ولیکه او په دې لیك بې څر ګنده کړه چې په، لومړي نړیوال جنګ کې دافغانستان بیطر فې دلوبې بریتانیې په ګټوه اوهم یې ددغې بیطرفی‌دسا تلو په برخه، کې خپل رول په لیك کې څر ګند کړ.په بدل کې یې دافغانستان اداره‌یوه بشپړخو دمختاري چې بې ځنډه اوبې بندیزه اجازه‌یکې شامله وي وغو ښتله چې‌له بهر نیوځواکونوسره مذاکرې سرته ورسوي :

هغه، څه، چې له بده مرغه، امیر حبیب‌الله خان درك نشو کړا ی دهغه، پلا ر درك کړي و۔ یعنی امتنان د قدرت دسیاست په محرکه قوا کې کوچنی‌مقـام در اود.له جنګ څخه ستړي انګریزان چې لاپخوا الشمال‌نه‌دکمو نستانو دګواښ له‌ا ملهانه یښمن اوپه عین وخت کې ترقزاقانو مکارانه اوزیات مهلـك وو.هغوی په داسې حالت کې نه‌ووچې دافغانانو تکلیفونو ته پام راوګرزوي. هغـوی په لـنډ دول سره ځواب ورکړچې هغوی به‌دوام ورکړي چې دافغانستان دبهرنیوچارو څارنه‌وکړی.

په دې وخت کې دژمني پایتخت دساتلومشق یاعا دت چې د پښتورله زیان او ضر رڅخه ورو سته پرېښودل شوی وبیاراژوندی شوی وچې له ا سترا حت سره دامیرحبیب اله خان عادتی اره یاعلاقه‌اقناع کړي.دپښتورله‌ور ایندو څخه، وروسته هغه خپل ځانته په جلال آباد کې یوژمنی پایتخت جوړ کړ. په داسې حال کې چې پـه کـابـل کـې به واوره اوریدلـه اوتند با دونه به چلیدل،په نوي ژمنی پایتخت کې په چې د جلا ل آبـاد دښارپـه شـرقـی بـرخـه کـې و د سبراود هندي سبر ونې شنې وې اوپه باغونو کې به ګلان غوړیدلـی وو. د ۱۹۱۸ کال په د سـمبر کې امیرحبیب اله خان چې وروړیې نصر اله خان اوترتولومشرزوی یـې عـنایت اله خان ورسره ملګری‌وودتل په‌شان جلال آباد ته‌لاړ، دخزانی اوپه‌کابل کې دعسکری چوڼۍ یالښکر کوټ چاری یې خپل زوی امان اله خان ته پرېښودلې .

شاه له‌خپلو زیاتو درباریانو سره ځان خپلې‌عادی‌عیاشی اوپه، تیره بیا ښکا کولوته

وقف کړیعنې هغه شي چې دی یې لیکه دزیاتو افغانانو په شا ن زیات لیوال و. هغه دفبرورۍ په لومړیووختوکې دلغمان په سیمه کې دکابل له سین څخه پورې ووت اوهلته دده دښکار دلې دفبرورۍ په ۲۰، دکله ګوش ددرې په لمنه کې خیمه ووهله.

دسهار په دریو بجو دکمپ خلک دتومانچې دیوه ډزې په واسطه راویښ شول. هغوی په بیړه دشاهي لوبي خیمې خواته لاړل اودر باریانو دپاچامړی دهغه په بستر کې پیداکړ؛ هغه په غوږکې په ګولۍ ویشتل شوی وا ودماغ ته رسیدلې وه. دقاتل هویت هیڅکله څرګندشوی نه دی. روسانویوسړي دمصطفی ساغرپه نوم دهغه د قاتل په حیث تشخیص کړی وچې هغه بوجاسوس وچې له اوبې بریتانیې څخه یې اجوره اخسیتله؛ دغه تورپه رسمي توګه دافغاني حکومت له خوا تائید شوی دی.

انګریزانوپه خپل وارسره ملامتي پرافغاني «جنګي ډلې» او په خاص ډول سره پرامان الله خان، نصرالله خان، محمودبیګ طرزي اونادرخان باندې واچوله. د یوې روماتیکې نظرې پراساس داسې ویل کیږي چې قتل یوسړي کړی وچې هغه له یوې کوچنۍ بلوا څخه وروسته ژوندی پاتې شوی وچې دابلواپه لغمان کې کلونه کلونه پخوا جوړه شوې وه چې امیرحبیب الله خان دفري میسن «Freemason» (یوې پټې اجتماعي ډلې چې په ټول جهان کې غړي لري غړی و.)

دامیرحبیب الله خان دمړینې ریښتنی رمزدادی چې هغه څرنګه په دې بریالی شوی وچې ځان له مرګ څخه ددومره اوږده وخت له پاره وساتي. په حرم کې له ښځو سره دهغه مصروفیت اودانګریزانوپه مقابل کې دیوجنګیالي دریځ دغوره کولوپه برخه کې دهغه ناکامي ددې موجب ګرزیدلې وه چې دخپلو رعایاوو اعتماداو دخپلوانوملاتړ له لاسه ورکړي اوزیات احتمال لري چې د قتل عمل دهغوخپلوانو یانوروکسان له خوا چې سلطنت ته نږدې ووسرته رسیدلی وي. په انګریزانوباندې ځکه اشتباه نشوای کیدای چې دهغه پهٔ ژاو سره انګریزانو ته زیات تاو ان واو که ژوندی پاتې وای هغوی ته زیاته ګټه؛ کمونستانوبه یوه انګیزه لرلی وای خوموقع نه. ددې توطئې چې په پراخه اندازه خپره شوې ده دجوړولوپه برخه کې یوځه داسې

پراخ شواهد موجود دي چې هغه په دي دول دي: پخواله دې چې امیر حبیب الله خان دوروستي محل لپاره له کابل څخه لاړشي ، دهغه دوژلو څخه شوي وه او دسراج الاخبار دجريدې دوه تنه قلمي همکاران نیول شوي وو او نوموړې جريده دمحمود بیک طرزي له خوا چلیدله. په افغانانوکې یوه آوازه خپره شوې وه چې طرزي چې لوریې دحبیب الله خان له جانشین مان الله خان سره واده کړی و، د توطې په راس کې واقع و.

امیر حبیب الله خان دپنځوس کلنۍ په عمر مړ شوا او نولس کاله یې سلطنت وکړ، که څه هم په افغانستان کې دهغه دیاد یادنوم درناوی نه کیږي ، هغه یو بد حکمران نه و. هغه دافغانستان یونسل ته یوه داسې سوله او آرامي وربه برخه کړه چې ناآشنا یاغیر عادي وه او دهغه وریښتوب یامهرباني ځینې له تېرو نوڅخه روغ کړل چې دهغه دپلار دربروونکي او ځپونکي سیاست په واسطه پائي شوي وو. هغه په خپل هیواد کې دغربي تکنالوجۍ دمعرفي اوروا جولو کارته په کراره مګر په ثابته توګه دوام ورکړي و. هغه دهیواد ځینې نامتو مشران بیرته افغانستان ته راوستل چې هغه یې نه یوازې د سیاسي عمومي بخشنو داعلام سره سم وبخښل بلکې مهمې وظیفې یې هم ورته ورکړې او دحبیبې ښوونځي دجوړولو په وسیله یې دهیواد راتلونکی پرمختګ له پاره بنسټ کښیښود .

دخره مرگ دسپی اخترديء

( پښتومتل )

# ديارلسم څپرکی

## دخپلواکی جګړه

دامير حبيب الله خان ناځاپي مړينه بې له دې چې خپل جانشين يې تاکلی وي، اوهم په افغانستان کی دلومړني زوی دپاچاکيدو داصلي مراعات نه کيدل ، دپاچاهي لپاره دعنعنوي مجادلودبيار امنځ ته کيدلوماناالرله. لەشاه نەدلې دلې ماشومان پاتې وو مګر يوازې دوه تنه يې لوی، قانوني اومتنفذوو: ترټولومشرزوی يې عنايت الله خان وچې هغه يوپندار نرم طبيعته سړی و ، دی خورازيات مذهبي اوديندار وه واود رهبری يوخو ځانګړ تياوې بې لرلې ؛ دويم ترټولو مشرزوی يې امان الله خان و ، دی دهغوزامنولەجملې څخه وچې لەنکاحي ښځوڅخه زيږيدلي وو نه له مينځوڅخه. دی دخپل پلار دمړينې په وخت کې نه ويشت کلن و . دامير حبيب الله خان ګران زوی امان الله خان که څه هم لندباری ومګردپياوړي شخصيت خاوندهم واويوبل زياتي امتيازيې داوچې دهغه مورعلياحضرته ياولومړنی ملکه ، وه . داسې ښکاريده چې هغه له دغې ميرمنې ځنې جوتې ځانګړ تياوې په ارثې توګه ترلاسه کړې وې. دغې ملکې ښه نوم درلوده او دتندمزاج خاوندەوه اوخلکو به تر ينه دهغې دمزاج په سبب ځنګ واهه او لەپار ولوڅخه، دده کوله او دمحمد سرور دلور په حيث دهغې دنفوذ په برخه کی څه شک نه و. محمد سرور دبارکزيو درانيانو مخکښې مشراو په هيوادکې ځورا پياوړی قبايلي مشرو. (۱)

دقتل په وخت کې عنایت الله خان اودهغه تره نصرالله خان له شاه سره وو، په داسې حال کې چې دچاونۍ او په کابل کې دشاهي خزانې دساتلو مسوولیت دامان الله خان پرغاړه و. شاهي دله‌دشاه له مړي سره جلال آباد ته ستنه شوه‌چې هلته‌له درباریانو او قبایلي مشرانو سره‌په‌یوې غونډې کې عنایت الله خان او نصرالله‌خان دواړو خپلې غوښتنې دسلطنت لپاره وړاندې کړې. دغه‌غوښتنې دامان الله خان دقوت په وړاندې چې خزانه اودهغه دمورنفوذ هم ورسره ملګرې ووسرته ونه رسیدې.

د۱۹۱۹ کال دفبروري په ۱۸، په یوه عمومي جرګه کې چې دشاهي ماڼۍ په انګړ کې جوړه شوې وه، امان الله خان یوه خوځونکې وینا وکړه اولوړه یې وکړه چې دخپل پلار قاتلان به دعدالت محکمې ته حاضر کړي او په عین وخت کې یې د عسکرو معاشونه دوه برابره‌زیات کړل. (۲)خلکو دهغه وینا تائید کړه (هغه په‌څیر کې ځرګنده کړه چې قاتل به‌وبرتانوی اجیرو) یوڅ دهغه له سخاوت څخه خوشحا له شو اوقدر په سترګه یې ورته وکتل په داسې حال کې چې په جلال‌آباد کې د هغه مورخپلې هڅې دقبایلي مشرانودوفا دارۍ دترلاسه کولو لپاره وقفې کړې.

که څه هم نصرالله خان اوعنایت الله‌خان دامان‌الله خان په طرفدارۍ لـه خپلو غوښتنو څخه‌سمدلاسه تیرشول، هغوی دمصاحبانودکورنۍ له غړوسره‌ونیول شول اوکابل ته راوستل‌شول. دلته عنایت الله خان او مصاحبان زرخوشې شول‌اوبیاور باندې شفقت وشو اونصرالله خان په داسې حال کې چې په زندان کې و په ظاهر کې دطبیعې علتونو له امله‌مړشو.

نوی‌تولواك امان الله‌خان په(۱۸۹۰) کال کې په پغمان کې زیږیدلی وهغه‌دخپل پلار اونیکه ‌غونډې یوتیټ‌اومنډلی‌سړی و، دیرښه سوارکار، ښه نښه ویشتونکی اودښکار لیوال و. هغه زیات فعال او تکړه و اوترخپل پلاریې لږ له‌جنسي کارونو سره‌مینه درلوده‌مګردخپل پلارپه‌شان یونرم‌سړی و، ښه‌روزل‌شوی‌واودخورا زیات دیموکراتیك خصلت خاوندو. هغه‌دخصوصي‌تعلیماتوله‌لارې روزل‌شوی‌واودبهرنی

نوي پوبرخه، کې دېوره معلوماتو خاوند و او دغربي کلتور تر اغیزې لاندې تللی و،
سرزوري او احساساتي بې ثباتي او هر دم خیالي دغه کمزورتیاوې وې چې د ژوندانه
په وروستیو کلونو کې (هغه په ۱۹۰۹ کې مړشو) دروحي ناروغۍ پولې ته ورسیدې.

دغه اوله ښځه مړه شوې وه او بیا یې پوازې دوروستي ځل لپاره له ثریا سره
واده وکړ چې هغه د محمود بیګ طرزي نیمه سوریایي لور وه . ملکه یوه جذابه
ښکلې ، ښه تعلیم یافته او هوښیاره ښځه وه او پر خپل میړه باندې یې زیات
نفوذ لاره. په حقیقت کې دامان الله خان زیاتې وروستي ستونځې دغه له خپل تمایل
ځخه چې غوښتل یې په مشخصو افرادو باندې باوروکړي پیداشوې چې له بده مرغه
دغه کسان دهغو کسانو له ډلې ځخه نه وو چې ټل به یې سم قضاوت کاوه . غازي
امان الله خان دلومړي نړیوالې جګړې دهیل نه راهیسې دمشر وطیت غور ځنګ
یعنې په دربار کې دبدلون غوښتونکو دډلې مشروطیت دغورځنګ دله برسیره
پردې چې په کلکه دانګریزانو مخالفه وه داقتصادي او ټولنیز بدلون لپاره یې
لیوالتیا هم لرله. دهمدې بدلون دغوښتلو له امله وه چې غازي امان الله خان روحاني
او محافظه کاره دله چې مشریې دغه تره نصرالله خان وښه نه اسیده. له بلې خوا
دمحمد زیود پښې زیاتره غړي چې په هغو کې عنایت الله خان هم شامل ودنوي
ټولواك علاقه ن وو.

غازي امان الله خان دهغو بدلونو په ځرګند ولو کې چې د افغانستان په باب یې
لرل ،وخت له لاسه ورنکړ. هغه د۱۹۱۹ کال دمارچ په اوله دتاج دپرسرایښودلو مرا-
سمو په وخت کې دري هدفونه اعلان کړل: دافغانستان بشپړه خپلواکي ، دخپل
پلار دقاتلانو جزا او دبیګار سیستم له منځه وړل. دابیګاریوډول جبري کار وچې
دمنځنیو پیړیو فیودالي د ورو بیګار ته ورته و او زیاتره دهغو سیمو مځکه والو
ترینه کار اخیست چې هلته پښتانه نه وو مېشته شوي.

دمارچ په ۳ نوي شاه انګریزانو ته دخپل پاچاکیدو خبر ورکړ. ځرنګه چې
انګریزان دامان الله خان له هغه نطق نه دخپلواجنټانو له لارې لادمخه خبر وو چې د

تاج ایښودلو په وخت کې یې کړې و. هغوی دغه ایلک په مینه ولوست. دا یو دوستانه او غیر رسمي پیغام و مګر په دې پیغام کې ددې خبرې یادونه نه وه شوې چې نوی پاچا دغه قرار دادونو په مراعات کې ځان مکلف ګڼي چې یا دغه د پلار یا نیکه له خوا شوی دی. برخلاف دغه لیک د سوداګرۍ د تړونونو د کولو د پاره د افغانستان د خپلواک او آزاد حکومت اماده‌ګي څرګنده کړه.

په دې وخت کې د بلشویکانو په انقلاب پسې په ټې ساري توګه د چټکو بدلونونو یوه لړۍ را منځ ته شوې وه چې په نتیجه کې داخلي جنګ منځ ته راغی او لومړی نړیواله جګړه له منځه لاړه. په اروپا کې د قوې او سیاست اند ول تو ب چې د یوې پیرۍ د تشنج او مدارا کرو په وسیله تر لاسه شوی و له منځه لاړ. په اسیا کې تر فشار لاندې کمو نستانو لاړو نمیي پیل کړی وچې خپلواو ریدونکو خلکو ته د امپریالیزم شرارت درسوا کولو له لارې د متحدینو د لاس وهنې په مقابل کې ګوزا رونه وکړي.

په اسیا کې د انګریزانو وضع لا د مخه خرابه شوې وه له جنګ څخه ستړي شوي انګریزان د جنګ په کلونو کې له خپلواتلوا او کوښښونو او د خپل ملي قوت د خواشینې ګوونکی ستړیا څخه ورو ستنه نامینده شوی وو. له سیاسي او نظامي کسانو څخه کوم چې خپل ژوند په هندوستان کې خدمت د پاره وقف کړی و، کوم چې په پښتو، اردو، بنګالي او د نمیې وچې په زیاتو نورو ژبو بې خبرې کولې او هغوی چې د شرقي غرنیو او بربندو ناګانو پیژندل او دوی هم ورسره بلدوو زیاتره یې د مانس (Mons) او یپرس (ypres) ښارونو په خاورو کې ورک شوې وو. د هغو پر ځای را وستل شوي یا مقرر شوي کسان د یربې تجربې دوهم بربدمنان وو چې ددې ایوال وو چې وطن ته چې هلته ژوند د یر ښه وو ستانه شي یا کمزوری شوي وزړو پوځیانو ته ور شي کوم چې خپل خپګان د شرابو په واسطه لرې کول. دغه بربدمنان له داسې ستو نځو سره مخامخ شول چې د لارنس (Lawerence) یا الفنستن (Elphinstone) ملاګانې به یې کړو پولې. (۳)

د سولې له منځ ته راتللو سره د هندوستان او بر تانوی را ج (Raj) تر منځ هغه

همکاري چې د جنګ د لومړيو کلونو مشخصه ده، له منځه تللې وه. هندوستان تر زياتې اندازې پورې د جنګ په کار کې برخه اخيستې وه او هغه بخششونه وو رسيدلي چې د لاس ته راوړلو هيله يې کيدله. له ۹۴۳۰۰۰ هنديانو څخه چې په خارج کې يې خدمت کړی وو، ۱۰۶۰۰۰ تنه يې په جګړه کې وژل شوي وو. هغوی د دې د پاره جګړه کړې وه چې نړۍ د دموکراسۍ له پاره بې خطره وګرزوي مګر هغوي داد موکراسي په خپل هيواد کې منځ ته راوړې نه وه.

په هندوستان کې د نارضايتۍ له علتونو څخه يو هم هغه غوسه وه چې فاتحينو په سختو شرايطو کې په ترکيې باندې تحميل کړې وه. له پنجاب څخه زياتو مسلمانانو په برتانوي اردو کې خدمت کړی وو او کله چې هغوی په ستر ګوو ليدل چې هغه به د اسلامي عظمت او برم پای وي نو د ګناه احساس يې قوت و مو ند. برسيره پر دې د متحدينو مشران په خپل دغه فکر ټينګ وو چې هره هغه سيمه چې په هغو کې غير ترکان استوګن وو بايد چې د ترکانو په لاس کې نه وي؛ څرنګه چې په دغو سيمو کې د مکې ښار شامل و، په زياته اندازه داويره موجوده وه چې بنايي د مسلمانانو مقدس ښار د کافرانو تر کنټرول لاندې لاړ شي. (۴)

په هندوستان کې د نا کرارۍ يو بل دليل د هيواد اقتصادي تنګسه وه. د ۱۹۱۸ کال موسومي بارانونه لږ وو او د ۱۹۱۹ کال د و مره لږ و تابه ويل چې دا يوه غمجنه نا کامي وه. دو چ کالي په نتيجه کې هندي بزګران دومره کمزوري شوي وو چې د راتلونکې انفلوينزا اساری ناروغۍ (influenza) په مقابل کې يې مقاومت نشو کولی. دا ناروغي په ۱۹۱۹ کې لږ تر لږه د پنځو مليونو کسانو د مرګ سبب شوه.

د هندوستان منځ ډېر زيا تيدو ګډ و ديو کې دافغاني حکومت اند يښنه د هغو که څه مشکلاتو د مبالغې سبب شوه چې انګريزان ورسره مخامخ وو او دغه مشکلات هم په کافي اندازه جدي وو، مخصوصاً په پنجاب کې، سره له دې هم دد وی له کنټرول نه خارج نه وو.

د دغو راپورونو ډير زياته برخه چې د هند د حالاتو په برخه کې غازي امان الله خان ته رسيدل د کابل په دربار کې د هندي انقلابيو نو له لارې وو کوم چې نه

بوازې ددسیه جوړونکو په څېرخوشبین وو، بلکې دوی هم لیوال وو، چې خپل نفوذ خپلو کور بڼو ته ثابت کړی:

هغوی دانقلاب دخطر اعلان دهرهندي بزګر په شکایت کې‌واوریده اوزیاته هڅه یې‌وکړه چې امان‌اله خان قانع کړی چې په هره شیبه کی دیوې بلوا دجوړید و امکان شته ه

امـان اله خان دی تـه اماده وچې په دی پیشګوئیګانـو بانـدې باور کـړی که‌څه هم دهغه ځینی‌له سلاکارانو څخه شك لاره. که دغه نوی افغا نی ټولواك نـورڅه نـه وځو پـه ځان څره اومتـکی و . او دغسی افـکـار یـی لـرل چې پـر هندوستان باندی حکومت وکړی لکه څنګه چې افغانانو پخوا پری حکومت کړی و، یالږ ترلږه هغه سیمی بیر ته ترلاسه کړی چې یو وخت په جنوب او ختیځ کې نیولی وی. (٥)

البته هغ، درك کړه چې په بری سره دیوداسې پلان سرته رسونه به‌دهندوانـو په ملا تړ پوری اړه ولري اویو څو تنو هندوانو دافغانی حاکمیت په برخـه کې په زړه پوری خاطری لرلی . اودیوه مسلمان پـه حیث تـر دی اندازی یـو یـی نعصبیه انسان وچې‌هغه داسې ویناوی خپری کړی چې په هغوکې یې هندی صفتو نه وستایل اوهم‌یی په هندوستان کې افغانی استا څـوته امـروکړ چې د هند وا نو او مسلمانانودګډی همکاری لپاره کارو کړی. (٦)

کله چې په پنجاب کې‌د یوی سختی بلـوا را پـوروونه کابل تـه ورسیـدل، افغانی حکومت په زیاتیدونکی توګه لمسوونکی ګا مونه اوچت کړل. د ۱۹۱۹ کال د اپریل په ۱۳، امان اله خان یوشمیر سـرحدی مخوروته بلنه ورکړه چې کا بل‌ته راشی او هغوی ته یی وویل چې جهاد دیر زر منځ ته راتلونکی و. په عین وخت کې‌هغ،امروکړچې‌افغانی پوځ‌دی په‌شرقی سرحد کې ځای‌په ځای‌شی‌چیری‌چې د پوځ یوه برخه دجنرال صالح په مشری دکی ته چې د خیبر دری ته دور نڼوتو پـه لارکې پرته ده ورسیده او بله برخه یی د نادر خان پـه مشری متون ( Matun )

ته چې دخوست په ولایت کې دی ورسیده. دریمه برخه یې دعبدالقدوس ترمشرۍ لاندې کندهار ته ولیږول شوه :

برتانویان له دغو حرکتونو څخه زرخبر شول مگر تر پخوا یې دهغوی پهمقابل کې دمقاومت له پاره لږه تیاری درلوده. که څه هم په هندوستان کې دهغوی د عسکرو شمیر ۳۳٤۰۰۰ ته رسیده، خو دهغوی دکیفیت او مورال په برخه کې د ها دسپلینه‌مسلکی اشخاصو چې هلته یې دویکتوریا (Victoria) په نوم جگړه کړې وه تعبیر ناوړه اودخندا وړو. برتانوی جلبیان لیوال وو چې وطن تـه لاړ شی ؛ سپاهیان دبغاوت له امله داغلي شوي وو اودمسلمانانو په منځ کې داسلام په کمزوری شوي دریځ کې دویری له امله داغلي شوي وو.

سره له دی چې برتانوی عسکر کمزوری هم وو، مگر هغوی دافغانی منظمو لښکرو په پرتله لاهم دمؤثریت نمونه وو چې د پخوا په شان ښه مجهـزنـه وو ، روزل‌شوي نه وو او ښه قوماندانان یې نه لرل. افغانی جلبیانو په‌فرضي‌دول میاشتنی. معاش چې دوه ویشت کابلی روپی‌وی ترلاسه کاوه چې له‌یوه دالرسره برابر ومگر دغه‌معاش معمولاً نه وتادیه شوی ها صاحبمنصبانو دځان کړی و. هلته‌افغانی پوځ ارکان حرب ته‌لاره اوله‌کابل نه پرته په بل ځای کې لږه هڅه، کیده حتی‌دغوند ونو دتنظیم لپاره هم‌لږه هڅه کیده. ډیر عسکر په یودول وسلو سمبال وو چې د سنایدر (Snyders) او مارتینس (Martinis) په نومونو یادیدلی او د هغوی دنولسمې پیړی د رومانتیکی وخت اوس تیـرو ؛ دهغـوی ځینې حربی مـهمات له‌شلو کلنو څخه هم زیات زاړه وو او څومره چې د ښه ویشتونې له‌پاره خطرناك وو په هماغه اندازه دهغه دهدف لپاره هم خطرناك وو. (۷)

لکه پخوا اوس هم‌دافغانستان رښتونې پوځی قرت دهغو په جنگیالیو قوتونو کې پروت وچې غړی یې په وسلو ښه سمبال وو او دو سلو په استعمال کې یې ښـه مهارت درلود اودوی دومره په غیر منظمو جنگو کې ماهر وو چې مخالفوانگریزانو هغوی دنړی دیرښه‌گورېلایی اوماهر جنگیالی گڼل .

له دی څخه، او هم‌دا رنګه، د افغانی ایله جاریو له کمزورتیا څخه افغانی پلان جوړونکی چې غوښتل یی په پنجاب کې یو بشپړ اړودوړ را منځ ته شی او هغه دیو ګڼو قبایلی پاڅون سبب شی، ښه خبر وو.

دافغانی هیلو په خلاف برتانوی مشران هم له دغه پلان څخه لږ خبر نه و و. هغوی پوهیدل چې لږ تر لږه ددوو میاشتو ځنډ به ضروری وی چې قبایلی خلکو ته وخت ورکړل شی چې دپسرلنی حاصل در اغوندی و لو کار پای ته ورسوی او همدا رنګه هغوی له دی څخه هم خبر وو چې په پنجاب کې اله‌ګوله پراختیا مومی. دهغوی دغه عقیده چې یو سملاسی اقدام ضروروو چې په هندوستان کې د دې بغاوت د خپریدو مخه ونیسی چې په دکه کې دپیښو له امله تائید شوه چیرې چې دافغانی جنرال صالح محمد په‌وس کې نه وه چې قبایلی یووالی کنترول کړی یا حتی دخپل لښکر حرکتونه او جنبشونه منظم کړی.

د۱۹۱۹ کال د می (May) په ۳، دخیبر یوه دله توپلك والاچې د خیبر په لارکې یې یو کاروان بدرګه کاوه دقبایلی خلکو چې مشري یې دیوه مشهور یاغی زر شاه شینواری پرغاره وه‌له عکس العمل سره مخامخ شوی وه. د ورځې په ورستیو شیبو کې هماغه دلې پنځه تنه پنډییان (جر الیان) چې هغوی په لنډی کوتل کې داوبو په پېره پړوزه کې کار کاوه ووژل. په پای کې له‌مازیګرنه یوه شیبه‌رومی دشینوارو او مومند و قبایلی خلکو تقریبا یو سلو پنځوس کسیزه یوه‌دله له سرحد څخه تیر شوه او دباغ کلی یې چې د خیبر دری په جنوب کې پروت و ونیوه دابایدیاد داشت شی چې په دې سیمه کې سرحد هیڅکله په ښه شوی نه و؛ په دې دول افغانانو هغه باغ چې په افغانستان کې و تینګ وساته او انګریزانو ادعا کوله چې داباغ دبرتانوی سیمی په دوه سوه‌متری ساحه کې دننه و.

دغه حرکتونه درې ورځې وروسته د انګریزانو له خوا دجنګ داعلان موجب وګرځیدل. دهغوی دغه ادعا چې دایو دفاعی عمل وچې په هیواد کې یې انتخاب کوونکو ته مخامخ لفت زیات په زړه پورې وګرزاو، مګر دهغوی دادعاد سموالی

په برخه کې شك موجود و. په دې کې څه شك موجود نه وچې افغاني بريد ونه لمسوونکی وو مگر داشك موجود وچې ديولږ شمير ياغيانو ناوړ وعملونواو د افغاني غير حکومتي عسکرو ديوي دلې حرکتونه په هندوستان باندې يوبريد منځ ته راوړی وی که نه. افغانان يوازې ستراتيژيکې ځايونو ته تللي وو په داسې حال کې چې هغوی په پنجاب کې ډير مختګونو په برخه کې د خبر ترلاسه کولو ته انتظار کاږه. که چيرې افغانانو په کلکه ډير غلې تګل کړی وای، هغوی به په تيري کونکې توګه زيات وړاندې تللي وای؛ هغوی به په سرحد کې يوه اندازه بريالیتوب ترلاسه کړی وای ځکه چه په سيمه کې بېر تانوي سرتيري (دخيبرتوپك والاکسان، دتوچي اووانه جاسوسان) ټول په بشپړه توګه ناراضه وو.

همدا چې برتانويان په جګړه کې داخل شول په چټکۍ سره يې عمل وکړ. تورن جنرال کليمو (Climo) له يوې قطعې سپرو عسکرو او دپلیو عسکرو له دوو ليواګانو سره پيښور محاصره کړ او عسکرو ته يې لارښوونه وکړه چې دغه «دزرګونو ګناهو ښار» کور په کورولټوي. دپسلي خاني افغاني آمر او دري ډيرش نور کسان ونيول شول او پارو ونکي ډير مواد ترلاسه شول. (۸) د مې (May) په ۹، د ګر جنرال جي. اف. کروکر (G.F.Crocker) چې په خيبر کې يې برتانوي پوځ ته قومنده ورکوله د افغاني پوځ په مقابل کې ودانګل چې په باغ کې له غير حکومتي عسکرو سره يوځای شوی و.

دغه عمليات په باغ کې داوبو تأسيساتو ته دزيان رسيدو له امله او د خيبر له توپك والاوو څخه د تښتيدونو له امله چټك شول.

جګړه دسهار په څلور بجو او پنځه څلويښت دقيقو پيل شوه کله چې لمر د غاښي په سپيرو ددوو ځليده. يوازې يولږ شمير لرې ويشتونکي توپونه وارشول؛ پس له هغه انګريزانو ته هوساعسکر ورسيدل چې د هغوی مشري د تورن جنرال فاولر ( Fowler ) په غاړه او هغوی ته يې قومنده ورکوله.

د مې (May) په ۱۱ بيا سهاروختي يوبل بريدوشو څوله تودوخې څخه چې خورا زياته وه ځان وساتي چې د ورځې د فارنهايت له ۱۲۰ درجو څخه هم زياتيدله. د افغانانو

مقاومت لرو، دهغوی توپخانه دانگریز انود توپخانې په شان نه وه اود هغوی عسکرو په پرله پسې توګه دانګریزانو هلې عسکرچې په وړاندې تللې خطا کول یعنې دا په عمومي دول دښمنه ویشتونکو قصوروچې هغوی دغره لمنه ویشتله. کله چې انګریزان د غره څوکې ته ورسیدل ، هغوی ته څرګنده شوه چې افغانان تللي وو او شپږ شپېته مړي یې پرېښي وو. دانګریزانو خپل تلفات چې لږ وو اتومړ وو اونه ویشت ټپیانو ته رسیدل، په حقیقت کې تر افغانانو جل او ګرمي زیات انګریزان وژلي وو.

د مۍ (May) په ۱۳، دانګریزانو پوځ له خیبر څخه ووت او دډکې لوی افغاني کلي یې چې خالي شوي وونیو . هغوی د ښار ګوتي دجنوب په پراخو میدانونو کې یوه پراخه سیمه چې زیاتې اوبه یې لرلې پیدا کړه او هلته یې یو ه موقتي قرارګاه جوړه کړه او له همدې ځایه یې شاوخوا غرونه دخپلو توپکو په واسطه ویشتلای شول. خاوروړ ځې وروسته یو زیات سهمناك دښمن څرګند شو چې داویړ وونکې دښمن بوولوی افغانـي لښکرو چې له مومندو، ساپیو، خوګیانیو او شینواریو څخه جوړ شوی و. تول په وسله ښه سمبال وو او وان دهلکتوب په وخت کې ورته دتوپك استعمال ښودل شوی و.

هغوی چې له خپلو عـادي تکتیکونو څخه یې کـار اخیسته د غـرونـو سرته وختل مورچل یې ونیوه او دانګریزانو پر قرارګاه باندې یې دزې پیل کړې .

بل سهار کله چې انګریزان مخ په وړاندې لاړل چې دغه کړاوله منځه یوسي، هغوی له سختې جګړې سره مخامخ شول. داجګړه دومره سخته جګړه وه چې د انګریزانو مخ په وړاندې تلونکې پلې پوځ دغره له سرنه، تقریباً سل ګـزه لرې ځای پـه ځاي میخ شواو یوه قطعه، چې پنځه دیرش سکان یې لرل په ګډ ودی کې په شاو تمبیده. په دغه خطرناکه لمحه، کې دانګریزانودوه د هاوان تـولګی راورسیدل اوسمدلاسه یې پـه ارتفاعاتو باندې دزې پیل کړې او انګریزان یې له خطر څخه وژغورل .تر یوې سختې مخ نیونې وروسته د انګریزانو پلې پوځ مخ په وړاندې لاړ او مخه یې ونـه نیول شوه او وې لیدل چې بې توپه قبایلي خلك له منځه تللي وو .

دې جګړې په شمال کې پوځي عملیات پای ته ورسول . داپریکړه وشوه چې د

کابل خواته نوروړ اندې تګ زيات خطرناك وځکه چې اپريدي راپورته شوي وو، دخيبر توپك والا تيت وپرك شوي وو ،او اکمالات دخيبرله لارې په کراره سره کيدل اوديوې قوي ساتونکې دلې له خوايې څارنه کيدله . نتيجه داشوه چې برتانوي پوځ پـه دکه کې هاتې شوچيري چې تودوخه زياته اوژوند بې خونده اوزړه وهونکې واوکله کله په غلجکي دول انګريزان هم ويشتل کيدل.

په مرکزي جبهه کې افغانان زيات بريالي وو. افغاني پـوځ په متون کې ځای پـه ځای شوی واومشري يې دمحمدنادرخان په غاړه وه. دی دمصاحبانوله کورنۍ څخه و؛ پولايتي اوتکړه مشرواودميړانې اوغيرت خبرې يې د خپلو عسکرو پـه فوزونـو کی څخولې وې اوهغوی يې ښه تلقين کړي وو. نادرخان د انګريزانو عمليا تولپاره انتظار ونه ايسته، هغه مخ پروړاندې لاړ او په سپين وام کې يې دهغوی پـرمخ تـللې پـوسته ونيوله. هغه پس له ، هغه دانګريزانو دستري جنګي کلا تل خواته دشلوميلو په انـدازه پوآريانوونکی مارش اجرا کړاوخپله، توپخانه يې په پيلانوباندې په يـوه لاره راوړه چې د يوه پوځ لپاره ناممکنه ګنهل شوې وه . هغه پـه يـوه ځای کې موضع ونيولـه چې تقريباً پنځه زره ګزه له جنګي کلا څخه لرې وه اوسخت تـوپونه يې پـرې واوروډ پـه داسې حال کې چې دلې دلې قبايلي خلك له هغه سره يوځای شوي وو ، دهغوی دبريد په وخت کی په خپلو دزوکی زياتوالی راووست .

دغه ناڅاپي موفقانه بريدله تل نه تربلوچستانه پـوری سرحدي قـبـيلي رامنځتـه اوراو يبنې کړې . کله چې ژوب مليشه د خيبر توپك والاو په شان بې اعتباره ثابته شوه داد کرزن(Curzon ) پرپلان بـاندې د منقدينو دادعـا دپـاره يو وروستی ثبوت واود انګريزانو پرمخ تللې پـ ستې په سخته تنګسه کې وې . ټولې پوستې خوشې شوې وې د هغوی د پهشا تمبيدلو په وخت کې دفاع کوونکو په تيره بيا افسرانو ته درانده تلفات واوښتل کله چې هغوی دجګړې په حال کې ځانونه پناهګاته ورسول. داچې جنګيالي مسعودو اودرويش خيلو وزيرو په جنګ ګډون کې کړي وددې ګډون اتـکل لا دمخه شوی و، مګر په جنګ کی دآراموشينواروا وکـا کړوګـډون د انـګريـزانـو لپاره يوګذار وچې اتکل يې دمخه نه وشوی ●

د څېړونکو لا يلو له مخې احتمال لري چې نادرخان پر استحکاماتو باندې د قبايلي خلکو د بريد کولو په کمزورتيا باندې پوهيده) هغه کوم داسې څه و نه کړه چې پر تل باندې چپاو يو سې مګر پر تل باندې يې په ګولۍ اورولو سره قناعت وکړ. دا يو ثيت وپرك او بې اغيزې بريد و او دا انګريز انو د پوځ له وسه پوره وه چې د هغوی مخه و نيسي چې تل ته داخل نشي.

په عين وخت کې تر له مرستة چې تر اوسه کيدای شوه پرلار کې په زياته تو د وخه کې د رار سيدو په حال کې وه. د جون (June) په اوله يو د دا دو پوځ د جنرال آر. ايچ. اف داير R. H·F Dyer په مشرۍ تل ته ورسيده؛ په سبايې هڅه وشوه چې پر افغانانو باندې بريد وکړي مګر د شپې افغانان په ښه ترتيب سره پرشا ولاړل.

په جنوبي جبهه کې پوځ د جنرال عبدالقدوس تر مشرۍ لاندې په کندهار کې پاتې شو. يوازې هغه وخت نښتې وشوې چې انګريز انو د بريد جنرال واپشير Wapshare تر مشرۍ لاندې د سپين بولدك افغاني سرحد جنګي کلا ونيوله. دې جګړې او په چترال کې لږ اخ او دب د افغان او انګلس د دريم جنګ پوځي عمليات پای ته ورسول. دا چې دا معمولاً د انګريز انو د يوه ستر بري په حيث ښرل کيږي لږ تر لږه يې علت دا و چې بهرنيو مبصرينو کيسې د افغاني اړخ په برخه کې څه نه دي اوريدلي.

د هغوی قواوې د خيبر له استثنائي پوځ سره د مخالفتونو په نتيجه کې روغې رمتې پاتې شوې وې؛ نادرخان زيات بری او ويا ړ نه تر لاسه کړي وه په جنوبي جبهه کې افغاني پوځ هيڅ عمليات نه وو ليدلي. اوس چې بالاخره قبيلې راپاڅيدلي وي که چيرې جنګ دوام موندلی وای انګريزان به له خوراکلك مخالفت سره مخامخ شوي وای. په حقيقت کې دوه نور کلونه په کار وو چې يوازې درويش خيل وزير ارامه کړي او انګريز انو د هغې جګړې په موده کې دومره تلفات ورکړي وو چې دا تلفات تر هغو تلفاتو چې هغوی د افغان په جنګ کې ورکړي وو زيات وو. برسيره پردې په برتانوي پوځ کې د کولراسارۍ ناروغۍ پيدا شوه او د زياتو عسکرو د مړينې موجب و ګرزيدله.

په داسې حال کې چې عسکر و ارام کاوه، ديپلوماتان فعال وو. د مې (May) په ۲۸ په داسې

حال کې چې د نادرخان پوځ تل محاصره کاوه نائب الحکومه له امان الله خان څخه یو لیك ترلاسه کړ چې نوموړي پکې لیکلي وچې د صالح خان عملیات ناسم تعبیر شوي و واو افغانانو پر هندوستان د برید کولو بندو بست نه و کړی . هغه همدارنګه د یوې موقتي روغې غوښتنه وکړه . د انګریزانو په ځوابیه لیك کې هغه شرایط چې د هغو له مخې به اوربند ومنل شي داوو: « افغانان باید خپلې ټولې لښکرې له سرحد څخه په شا کړي . . . برتانوي لښکرې باید په افغاني سیمه کې چېرې چې اوس هغوې موجودې دي پاتې شي . . .

برتانوي لښکرې افغاني سیمې یا لښکرې بمباري نه کړي یا به پرهغوی باندې ماشینګڼې و نه چلوي ؛ برسیره پردې تاسې به د اړمنه وکړی چې ستاسې خلك به پر انګریزانو باندې دزې ونه کړي یا به پر برتانوي الوتکو دزې ونه کړي.» (۹)

د غازي امان الله خان ځوابیه لیك دشرحې ، چلنج اوفلسفې یو ترکیب و. هغه ځرګنده کړه چې دافغانستان ملکي اونظامي قواوې دواړه عین قواوې وې او دا ناممکنه وه چې قبیلې له سرحد نه وخوځول شي؛ اووې نشو کړای چې پر الوتکو باندې د افغانانو د دزو کولو مخه و نیسي .« ځکه چې زمونږ داولسونو احساسات چې هغوې الوتکې نه لري ستاسو د الوتکو لیدلو په واسطه سخت راپاریږي.»

هغه په پای کې داسې څرګنده کړه : «دآزادي روحیه ددې سبب ګرزیدلې ده چې د نړۍ په هرګوټ کې د بشر د ځپل شویو طبقو مراوې زړونه راژوندي کړي اودغې روحیې یو فوق العاده قوت منځ ته راوړی دی چې له روغې او برابرۍ سره مینه لري اوپه مختلفو هیوادو نو کې یې ظلم او حاکمیت تقریباً له منځه وړی و.» (۱۰)

داچې انګریزان په عمده ډول د حالاتو یا دشاه دفلسفې له امله تر اغیزې لاندې راغلي وو اوس یې د سولې له کنفرانس سره موافقه وکړه چې په راولپنډي کې جوړ شو. دافغاني هیئات مشري دعلي احمد خان په غاړه وه چې هغه یو دغازي امان الله خان دنیا بې له زړا منو څخه واود برتانوي هیئات مشري د سرهمتن ګرانټ (Sirhlamiton Grant) په غاړه وه . دسولې خبرې اترو یوه میاشت دوام وموندله او ترنهایي حد زباني

ترخې وې. دانګرېزانو ددې خپګان او اريانتيا په ورانديې، افغانانو ديوه مات شوي هيواد داستازو په شان چلند ونه کړ. هغوي ځپلي غوښتني د تول وزير ستان لپاره دزياني مرستې لپاره او دهغوی دځانګړې آزادي او خپلواکي لپاره ورانديې کړې؛ هغوی په ځپل فارغ وخت کې دهنديانو دګټې لپاره لمسوونکې وېناوې کولې او هغوي ته ورته لاسونه پر کول او شاباسي به يې ورته وايه.

د آګست (August) په ۸، يو تړون لاس ليک شو دې تړون پنځو ماد و د برتانوي لښکرو په شاتمبيدل دبرتانوي مرستو قطع کول او دهندوستان له لارې د افغاني جنګې وسايلو بندول ايجابول. دافغانانو دخپلواکۍ څه يادونه شوې نه وه مګر د افغاني هيئات په غوښتنه يوه بله ماده چې هغه دافغانانو دخپلواکۍ ماده وه په تړون کې په ضمنی دول زياته شوه اوله تړون سره ضميمه شوه. دتړون دشرطو نو خبريدل ددې موجب وګرزيده چې په يرغل کوونکو برتانوي استازو باندې سخت انتقاد ونه و شي. برتانوي اولس ته ګرانه وه چې پوه شي چې هغه جنګ چې څومره ځاني او مالي تاوانونه يې لرل او دافغانانو دخپلواکي په باب و، په هغه منتج شي چې دهغه په مؤفقانه بري سره ورته ومنله شي.

برتانوي انتقاد کوونکو په ټينګه غوښتل چې پوه شي چې څنګه يې دامير حبيب-الله خان د وفاداري مکافات دهغه دقاتل ګولي وه دغازي امان الله خان ددښمنی مکافات بايد دهغه غوښتنو ته غاړه ايښوول وي. په برتانوي هندوستان کې زاره واکمنان وغږ مبيدل چې په هندوستان کې دانګرېزانو حيثيت يو کلک ګوزار خوړلی و. هغه څه چې دغو انتقاد کوونکو و نشو کړاي چې هغه درک کړي يا دهغو درنا-وي وکړي هغه مسايل وو چې زيات د برتانوي سياستمند ارانو په اذهانو کې وو هندوستان په جدي توګه ناراضه واو دافغاني جګړې دوام ښايي دزيات تکليف موجب ګرزيدلی وای ځکه چې دعلي ورونو چې هغوي دهندي مسلمانانو دغور دځنګ محکښيان ور په ځرګند دول دامان الله خان ملاتړ کاوه او موهند اس ګاندي (Mohandas Gandhi) دافغانانو هدفو ته تائيد کړي وو. برتانوي مشران په شمال کې په نوي بڼه کې دزړې بلادرا ځرګنديد لو له امله زيات ځوريدلي وو ځکه چه

بلشویکان په افغانستان کې فعال وو او هغوي د روسی لپاره جگړه گټله. اوغازي امان الله خان دهغوي داستاځو د مذلو ر خبروته غوږ ایښوده. په لارکې دوه مکتوبونه دانگریزانو دجاسوس له خوا ونیول شول چې یو یې دغازي امان الله خان له خوا لینین Lenin ته اوبل یې دمحمود بیك طرزي لـه خواد بلشویکانود بهرنیوچارو وزیرته استول شوي وو او دواړه یې دوستانه او د صمیمت ښکاندوي وو. په دریم مکتوب کې اولاهم زیات خطرناك پیغام (چې په یوي ناڅرگندي طریقې سره لاس ته راغلی و مگر پرته له شك څخه په زړه پوری و) یوتزاری پخوانی سیاستمدار میخائیل براوین (Michael Bravine) چې دی اوس یو کمونیست نماینده و دبلشویك حکومت دشرقی تبلیغانو ځانگی ته لیکلی وچې هغه په کابل کې له هندی انقلابیونوسره زیات بریالیتوب ترلاسه کاوه . .

ددغه فعالیت په مقابل کې پر افغاني بهرنیوچاروباندې دانگریزانو کنترول بې گټې ویعني په حقیقت کې داکنترول یوخندوځکه چې برتانوي استاځي یې بیرون ساتل په کابل کې دغیر انگریزاستاځی دساتلوزړه پـالیسي صرف ترهغه وخت پورې اغیزمنه وه چې دیوه روسي پوځي برید گواښ موجودو. خوپه دې وخت کې خطر دوسلو پرځای له نظریاتو او هغو فعالیتونوڅخه چې دهندوستان نا کرار وخلکوته متوجه وو منځ ته راغلی و .

افغانان په دې فکر کې وواولاهم په دې فکر کی دي چې هغوي دجنگ په ډگر کې خپله بشپړه خپلواکي وگټله. په کابل کې یوجوړشوی اغیزناك ځلی دیـوه مرمري زمري ښکارندوي دی چې ددې ځلي پـه تـل کې زمري دانگریزانودځوراوکړاوپه خـاطرپـه ځنځیرونو کې دغبرگیدوپه حال کې لیدل کیږي او دخپلواکي دنمانځلو لپاره داگست (August) میاشت وټاکل شوه. دتل په مقابل کې دنـادرخان جگړې هغه دجنگ یونامتواتل وگرزاوه اوغازي امان الله خان له جنگ څخه لـه یوه داسې محبوبیت سره میدان ته ووت چې په نادره توگه دیـوافغـان تـولـواك پـه برخه شوی دی .

خدای لوی دی خو له شنه اسمانه
با ران نه ا وری .( پښتو متل)

# څوارلسم څپرکی

## دافغانستان څرګندیدنه

افغانستان چې په پای کې بې خپله آزادي په بهرنیو چارو کې لاس ته راوړې وه پیل وکړ چې د ټولو ممکنو وسایلونو څخه ګټه واخلي او په نړیواله کچه ځانته توجه را وګرزوي. محمد ولي خان چې بو ځیرك اولایق تاجك و او دامان الله خان په نظر سره یې زیاته ترقي کړې وه لویدیځ ته دیوه هیئات په مشرۍ وټاکل شو چې له هر هغه ځا سره چې ده کولای شول خبرې اترې وکړي . روسیه ، جرمني ،ایټالیا او متحده ایالات سترځواکونه وو چې بایدله هغو سره ولیدل شي او لومړنیو دریو قدرتونو سمدلاسه خپل رضایت اعلام کړ چې نړیوالې ټولنې ته ددغه نوي سرې درانګ هر کلی وکړي . په متحده ایالاتو کې دهارډ ینګ اداره د ګوښه توب په یوه حالت کې له فعالیت څخه ولویدلې وه او زیات احتمال لري چې دافغانستان د دقیق موقعیت په برخه کې مشکوکه وه. ددې اداري نا څرګند ځواب داوچې دسیاسی تبادلې مسأ له دې حتماً دآینده غور لپاره پریښودل شي .(۱)

لکه پخوا او س هم دافغانستان بهرنی سیاست د دې هیواد د پیاوړیو ګاونډ یو پرکړوو ړباندې ولاړ و په دې وخت کې له شمال څخه ګواښ له منځه تللی و کله چې بلشویکی رژیم د کورنی جګړې او د متحدینو د لاس وهنې په مقابل کې جګړه وکړه او

په حقیقت کې د۱۹۱۹ کال دا کتوبر په میاشت کې ددینیکن (Denikin) له خوا داورال محاصرې دانقلاب ضد لوړه څپه په نښه او ښودله. دغې کمزورتیا دافغانانو صمیمیت یا دزړه له کومې دوستي زیاته کړه چې دهغوی عنعنوي پالیسي داوه چې دګاونډي ملاتړ وکړي هغه چې دیوه خورا لږ فوري خطر مسأله منځ ته اچوله:

زیاتره افغاني مشران که څههم دمارکسیزم له اصلي ماهیت څخه بې خبرو و، په حقیقت کې د، پروپاګنده کې یې زیات شیان وموندل چې هغه ددوی خوښ شول چې کمونیست اجنټیانو کابل ته راوړي وه، په تیره بیا په «بورژوازي امپریالیزم» باندې دبرید لپاره په تبلیغاتو کې او داسیا خلک یې دې ته رابلل چې دخپلو ارو پایې بادارانو د، مقابل کې را پورته شي . دلینین له خوا امان الله خان ته یو لیک چې نسبت مارکس ته یې زیات دماکیا ولي فلسفې سره لرله، دبلشویکانو مرقف په دې ډول څرګند کړ: «مونږ دکارګرانو او بزګرانو دحکومت په نوم خپله ښه هیله څرګنده وو چې له افغاني خلکو سره په سیاسي ملاکرولاس پورې کړو...دشوروي حکومت له لومړي ورځې څخه چې هغوی قدرت ترلاسه کړ تول نړې ته خپله غوښتنه اعلام کړې ده چې هغوی نه یوازې هیله لري چې دنړۍ دټولو خلکو لوی دي کـه واړه دخـود ارادیت حق په رسمیت و پیژني بلکې هغو خلکو ته مرسته هم ورکړي چې هغوی دخپلې خپلواکۍ لپاره مبارزه کوي. (۲)

وروسته له دغه پیغام څخه یو سیاسي استاځی میخایل براوین چې یادونه یې دمخه شوې ده، د۱۹۱۹ دسپتمبر په ۱۲، کابل ته راورسید؛ که څه هم برنس مکناټن او کیو ګناري د، دې کټګورۍ کې شامل نه کړي براوین اومړی رسمي خارجي سیاستمدار دی چې افغاني پایتخت ته داخل شي - براوین که څخه هم بولند پاري شخصیت ونه لرلو یو ښه ژبپوه او یو ماهر مخرب و.

دبراوین دفعالیتو نو په برخه کې انګریزانو ته په کابل کې داجنټانو له خوا

په مناسبه توګه راپور ورکړ شوی واو داسی عقیده موجوده وه چې دغه فعالیتونه چې تر ډیرې مودې پورې یې دوام درلود یاسرته رسیدل په سرحدکې د ستونځی ددوام سبب ووه. په حقیقت کی افغانانو بر اویـن یا هغه وعدې چـې هغه په تینګه سره وکړې ونه منلې او که څه هم افغانانودډیورنډ کرښې په اخوا قبیلو کې ځپلو بې ځایو لاس وهنو ته دوام ورکړ، هغوی نسبت کمونیستي پروپاګندې ته زیات دنیشلستي لوړو ارزوګانو په واسطه پارول شوي وو. څو تر هغه وخت پورې چې په هندوستان کې دبغاوت پرمخ تللې دوام درلود، انګریزانو په هرسرحدی یرغل کې ختمک او لورولیدل. په تر کیې باندې دسولې له تحمیل شو یو شر طونو شخه دهندي مسلمانانو کـرکـه اودترکیـې او یـو نـان تر منځ دجګـړې زیات شوي پیچلتوب بې له شکه شخه په هندوستان کی او په تیره بیا په پنجاب کی دزیاتې خرپر تیا (تشنج) موجب ګرزیدلي وو. بې له شکه دافغانستان حکومـت مرسته وکړه چې دمسلمانو دغې کرکې ته لمـن ووهـي په تیره بیا وروسـته له هغه چې غازي امان الله خان خپل شهرت اووقاردد ادعا په واسطه زیات کړی وچـی د جګـړې پـه ډکـرکی یې د خپـل هیـواد لپاره ځپلـوا کی ګټلې ده.
په حقیقت کی د ۱۹۲۰ کال په دوبي کی تقریباً شل زره پنجابي مسلمانان افغانستان ته ددارالسلام په حیث ولیږ یدیدل. دلته هغوی رز دساره ژمي په واسطه بې زره شول او افغانان که څه هم صمیمي وو په خپـل وار سره د مهاجـرینود بهیر په اندازه بې زره شول. له او هامو شخه خلاص شوې زیاتره کډوال (مهاجرین) بیرتـه پنجاب ته لالهانده او سرګردانه شول چې خپل کورونه پیدا کړي چې دلزمذهبي ګاوند یوله خوا ایول شوې وو.

دې کار په هندوستان کې دغازي امان الله خان حیثیت زیانمن کړ خودانګریزانو اندیښنه یې زیاته کړه چې هغوې اوس په دې قانع وو چې امان الله خان ترکمو نیستي اغیزې لاندې راغلی وهغوې له افغانستان سره نز دې اړیکود پلټلو او ټینګو- لولپاره امان الله خان ته بلنه ورکړه چې دیوه نـوې ترون په برخـه کې دمذاکرو لپاره هندوستان تـه استازې ولیږې.

افغانانو چې تل خوښ وو چې په نوو تړونونو باندې بحث وکړي دمحمود طرزي په مشرۍ يې يو هيئات ميسورۍ (Mussoorie) غړونو ته ولېږه او هلته دانګريزانو دمذاکرو لار ښوونه دهنرۍ ډابس (Henry Dobbs) له خوا کيدله. غونډې غير دوستانه وې ؛ افغانانو ونه منله چې له خپلو غوښتنو څخه، تيرشي او دبرتحلي يې خپل کوربانه دتبصرو په واسطه خپه کړل چې تر مهارت او ادب څخه زيات دحقيقت ښکارندوی وي. کله چې له طرزي څخه پوښتنه وشوه چې ايا هغه موافقه ونه کړه چې هندوستان په فوق العاده توګه ډيره ور(حاصل خيز) وه، هغه ځواب ورکړ چې دا حاصل خيز و خوز ياته يې کړه چې هغه دهندې خلکو چې په ګيډه ماره نه وو اووږې بريښيدل له ليدلو څخه اريان پاتې شو . په دغه شان تبادلو کې کنفرانس بالاخره خراب شو .

د ۱۹۲۰ کال په اکتوبر کې افغانانو کابل ته يوه برتانوي هيئات ته دبلنې ور کولو په واسطه مبادله کړ.د ۱۹۲۱ کال په جنورۍ کې بوتحل بيا دد اهس په مشرۍ يوه ډله افغانۍ پايتخت ته راورسيده او هلته يې له دوو افغاني مذاکره کوونو طرزې او نادرخان سره خبرې اترې پيل کړې . له افغانانو سره خبرو اترو يو-ولس مياشتې دوام و موندو چې پرخپلو غوښتنو بې تپنګار کاوه او انګريزانو د هغوی غوښتنې ناممکنې ګڼلې،په داسې حال کې چې انګريزانو دلارډ کرزن پرروش باندې تپنګار کاوه چې هغه د بهرنيو چارو وزير و . هغه دامير حبيب الله خان دسياسې بريالېتوب راهيسې چې په ۱۹۰۶ کال کې يې لاس ته راوړ دافغانانو پرضد واو په هندوستان کې بې دخپل حکومت دستونځو ملامتې دافغانانو په بې جهته فازولو باندې اچوله. هغه په لندن کې د۱۹۱۹ کال ګرځنده افغانې هيئات ته يوسوړ هر کلې کړې و او په ډانګ پيلې و ويل چې افغانستان دې حتماً دهندوستان له حکومت سره معامله کولو ته،دوام ووکړې.

په عين وخت کې دانګريزانو ويره دافغانانو او شورويانو تر منځ پر صميميت باندې د۱۹۲۱ په، اګست کې ددغودواړو تر منځ دبوه تړون په واسطه زياتيدله چې افغانانو ته

ترڅ پاتې اندازې پورې غوره و . یادا چې غوره به وای که چیرې عملي شوی وای .
تړون د دواړو هېوادو ترمنځ داړیکو له ټینګولو نه پرسیره افغانستان ته دپنجده
سپارل ، په هرات ، میمنې ، مزار شریف ، غزني او کندهار کې د بالشویکانو دقنسلګر
یو جوړول او افغانستان ته په کال کې دیو ملیون سرو زرو یاسپینو زرو روبلو مرستې
ورکول ایجابول . په تړون کې په دې مسالې پانډې چې خوار بلو شیکان
به روبل له کومه ځایه لاس ته راوړي بحث ونه شو :
د ۱۹۲۱ کال دنومبر په ۱۰ ، افغانانو خپل چمتووالی اعلان کړ چې له انګریزانو
سره یو تړون لاسلیک کړي چې دصبرناك دابس دزیاتې ارپانستیا موجب وګرځیده . دې
تړون چې دافغان ـ انګلیس اړیکو لپاره یې یو بنسټ پریښود څوار لس مادې لرلې
او ترهغه وخت پورې داعتبار وړو څو چې په ۱۹٤۷ کال کې انګریزان له هندوستان
څخه ووتل . دتړون لومړنۍ پنځه مادې دسیاسي هیئاتونو او کارکوونکو دتبادلې
په باره کې وې ؛ شپږمې مادې افغانانو ته دهندوستان هاغې خوا ته دنامحدود ترانزیت
حق ورکړ او اوومې مادې څرګنده کړه چې دافغانۍ مالونه به بیړۍ کې راتلل باید
له ګمرکي محصول څخه معاف وي . همدا په تړون کې د دیورنډ د کرښې په ختیځ کې
دپښتني قبیلو دخودمختارۍ څه یادونه نه وه شوې ؛ خو د دلو هر یوه موافقه وکړه
چې بل ته خبر ورکړي که چیرې پولې ته نږدې دقبیلو په مقابل کې د پوځي عملیاتو
فکر و شي . (٤) دغه تړون په نا ممکن وای که چیرې افغانانو خپل د آمو سین هاغه
خواګاونډ یانو په مقابل کې په خپلو کړو وړو کې یو بدلون نه وای راوستی چیرې
چې دبالشویکانو دانقلاب غوغا ، دانقلاب ضد کسانو شور او زوږ او د متحدې ینولاس
وهنه خپل اوج ته رسید له . د دې لپاره چې پوه شو چې دغه بدلون څنګه منځ
ته راغی ، په سیمه کې یو څه دوضع درکول ضروري دي .
دمنځنۍ اسیا سیمې چې دامو سین شمال ته پرته دي دیو څه وخت لپاره دروسانو
ترکنترول لاندې وې که څه هم په سیمه کې دروسي اداره چیانو او عسکرو په شمیر کې
دتاجکو ، ازبکو او ترکمنو په وسیله ترزیاتې اندازې پورې زیاتوالی راغلی و ،

يو ازې خيوا او بخارا تش په نامه سره آزاد و او په حقيقت کی د وا ړ و له روسي حکومت څخه امرونه (دستور) تر لاسه کول .

په دغو سيمو کی چې تو ته تو ته کيد ونکې کند والې يې يو وخت پر لمين پايتختونه وو ، انقلابي ولو لو په بيرته پاتې خلکو کې وده کړې و ه چې هغوی د روسي گوډ اگيانو تر فاسد ې حکمرانی لاندې وو . شورو يانو لا ړ ومبی په تاشکند کې قدرت تر لاسه کړی و حتی د بلشو يکانو له کودتا څخه ، هم دمخه چې د ۱۹۱۷ کال په نومبر کې يې په پتروگراد کې وکړه . دازبکو د منگت (Manguit) قبيلې امير سيد عليم خان د ۱۹۱۱ کال راهيسې په بخارا کې حکمران واود ده کورنۍ د ۱۷۸۳ کال راهيسې د هيواد واك په لاس کې درلود . که څه هم سيد عليم خان ته روسانو لا رښوونه کوله او د خپل نيکونو بشپړه قدرت يې نه درلوده ، هغه کافي واك تينگ وساته چې خپل شخصي هوسونه ترسره کړي ياور څخه خو ند واخلي چې په هغو کې د ملکانو لپاره يوه ليوالتيا هم شامله وه . دغو تمايلاتو انقلابي دلې ته چې جد يد يا (نوی) حزب بلل کيده نور هم د حرکت قوه ورکړه چې غړي يې د ځوانو ترکانو د پر وگرام په واسطه لمسول شوي وو چې په لويد يځ کې او سيدل . هغوی پاريدلي وو کله چې د کرينسکي (Kerensky) دلندې مودې حکومت بخارا ته بشپړه خپلواکي ور کړه او کله چې امير سيد عليم خان دا څرگنده کړه چې هغه په نظر کې لري چې د تيرې زمانې په څير سري استبداد ته وروگرځي . په ۱۹۱۹ کال کی د جد يد له خوا يو قيام چې د منځنی اسيا د سره گارد د يو ځي واحد ونوله خوا يې ملاتړ کيده په نا کامی سره پای ته ورسيده او د زيات ظلم او فشار په وسيله تعقيب شو . خو که څه هم روسيې ته داور گادی پټلۍ له منځه تللې وې ، يو ځلي چې بلشو يکانو بيل و کړ چې په نو روسيمو کی بريالی شي ، هغوی بخارا ته راستانه شول . دلته هغوی ديو څه وخت لپاره د هدی سپاهيانو د يوې قرې له خوا چې مشري يې د جگړوال ميلسن (Malleson) په غاړه وه ايسار شوي وو د متحد ينو د لاس وهنې يوبړا وچې په بشپړ ډول پاتې کيږ ي مگر په نا څر گند ډول ، او هغه پای ته ورسيده کله چې برتانوي قواپه پارس کی مشهد ته وابسل شوه .

داپیښه په یوه داسې وخت کې منځ ته راغله چې هغه وخت دافغانانو او کمونیستانو ترمنځ اړیکې لاهم صمیمي او دوستانه وې . دبخاراپه دربار کې چې هلته افغاني نفوذقوي و امیرته مشوره ورکړل شوه چې له روسي انقلابیونو سره سوله وکړي. سیدعلیم خان چې په بې اعتنائی سره یې موافقه کوله له ویرې څخه په دک شکل یې پیشگوئی وکړه چې « بلشویکان به دکنترول ترلاسه کولو سره سم یې له ټولو څخه خپل غچ دبخارا شریف پرسرپیچلي دولت باندې دبریدکولو په واسطه واخلي.»(٥) د امیر خبره یا پیشگوئی سمه وه . د ۱۹۲۰ کال داګست په ۲۵ فرونز (Frunse) په ترکستان کې یې سور پوځ (RedArmy) ته قومنده ورکوله خپلو لښکروته امروکړ چې له جدیدانو سره کومک وکړي او پر بخارا باندې برید وکړي. داعمل فتحه بشپړه وه. د۱۹۲۰ کال دسپتمبر په، او له پایتخت سقوط وکړ. بخارایي لښکرو لږ مقاومت وکړ که څه هم دافغاني اجیر وعسکرو یوې ډلې چې د امیرسید علیم خان په خدمت کې وه په لیوالتیا سره جګړه وکړه.

دادیرزر بخارایي اصلاح غوښتونکو ته څرګنده شوه چې دامیرسید علیم خان بریالی یا ناکامه په خپل سري استبداد ادعای یوازی زیات مطلق ظلم او فشارنیولی و.سره ګاره چې دسلګونو سیاسي کمیسارانو له خوا تشویق شوی و تصمیم نیولی وچې یوه نوې تولنه جوړه کړي چې هغه دانقلابي یې دیني پربنسټ باندې و لاړه وه یعنې دتولنې محافظ کارانو او مسلمانانو دوا پروته پرته له کفره څخه بل څه نه.

دهغوي دمقاومت اودکمونیستانو د تکتیکونو راپورونه کابل ته له کډوالو (مهاجرینو) سره چټک شول چې هغوی له بخارا څخه وو. دا ټول د غازي امان الله خان اودافغاني مشرانو په نزد اخلالوونکي وو دومره زیات دازبکو او ترکمنو له سببه نه بلکې له دې سببه چې بخارا یو وخت داسلامي برم مرکز و. څرنګه چې کمونیستي فشارونو دوام وموند، په زرګونو ترکمنانو له سین څخه تیر شول او افغانستان ته لاړل. داچې ځینې له دغو تښتیدلیو څخه خپل دقره قل پسونو رمې له ځانه سره راوستلې دهیواددراتلونکي اقتصاد لپاره زیاتې مهمې وې . هغوی ته

دميلمه‌پالنې له مخې تودهر کلي ورکړل شواوپه شمال لويديز افغانستان کښې ورته ځمکې ورکړل شوې.خو دکافرو دخپل هيواددواك ياحاكميت بيانـونه اوددې هيواد پرمسلمان نفوس باندې د كمونيستي كنټرول شدت ياسخيتـو د هغوی زياتيـد ونکي قار اوکرکه را وپارولـه كله چې دله دله كـډ والـو (مهاجرينو) دوام ورکړچې‌دپه زورزناكونې‌اوبې‌حرمتې له کيسو سره جنوب‌لورته‌وتښتې .

غازي امان اله خان چې تل په يې خوبونه ليدل،اوس يې دغت والي (عظمت) (يوتوي خوب ياخيال درلود. داځل داخيال ياخوب دپان تورانيز م ( دځوانو ترکانو هدف) (Pan — Turanism) دمفکورې پربنسټ ولاړ وچې ترمـړه کيدو وورروسته‌په لومړۍ نړيواله جگړه کې دترکې له ماتې سره بياراژوندې شوې وه كله چې ترکي نيول شوې سيمې لـه روسي كنټرول څخه ووتې . په حقيقت کې که څه هم ازبكان ، ترکمنان ،قرغزاودافغانستان‌ځينې‌چارايماق ترکي وو،افغاني مشران نه ترکي وواونه هغوي دگډ هويت زيات احساس‌درلود. خوځرنگه چې افغانستان په سيمه کې يوازنی خپلواك اسلامی دولت و، داغازي امان الله خان‌ته ځرگنده شوه چې شايې‌هيوادېې‌نسبت‌پان توراني غورځنگ (Pan — Turanian) ته ديوه‌پان اسلامي ( Pan — Islaamic ) غورځنگ په حيث چې‌هغه يه يې خوب ليده ديوراتړلو ونکي اويوځاې كوونکي‌تکي په حيث زيات خدمت وکړي .(٦)

دغه عالي‌لويه هيله كابل ته دبخارادفراري اميرد رارسيدوپه وسيله او ديوې بلواپه اوسطه‌چې د١٩٢١كال په پسرلي کې په روسي‌ترکستان كې جـوړه شـوه چې څه ناڅه دپولی دشمالي ازبکوپه منځ کې دافغاني دسيسوپه نتيجه‌کی منـځ ته راغلې وه .

روسانودې پاڅون‌ته دبسماچي نوم ورکړې وچې‌په ترکي کې ورته(باندیت) وايي .دانوم په پای كی استماليده چې په منځنی اسياكی ټـول كمونيستي ضد فعاليتونه مشخص اوبيان کړي . که څه هم هلته‌په‌برخه والو، گډون كوونكو كې لاړې وهونکي وو(په تيره بيااتر کمنوچـې ديره موده يـې غلا كـړې وه اوقكريپ

کاوه چې غلا یو عزلمن کسب دی )، زیاتره له یاغیانو څخه یا خو مسلمانانو وو چې پر مذهب باندې د کمونیستي له امله په قارشوي وو یا ازبك ناسیونالستان وو چې هغوي لیوال وو چې دروسي کنترول مخه ونیسي .

بغاوت داو قی (Lokai) وادي په ازبکو کې پیل شو اوزر یې کمونیستان او دهغوی ملاتړ چې بخارائي ځوان حزب (Young Bokharanparty) وتقریبا لاندې کړي وو . دیاغیانو مشر دسرتیر و دډلې مشراو دآسونو یو پخوانی غل ابراهیم بیاك وچې هغه غایب امیرسید عالیم خان سمدلاسه سر اعلی قوماندان او په مناسبه توگه یې دشاهی غوجلوباشي یاامیرمقرر کړ .

زیاتو افغانانو په بلواکي برخه واخیسته اودوسلواوگولیو بوه ثابته ز یرمه له پولې څخه راتیره شوه . نادرخان په شمال کی انغاني قوماندان مقرر شوا وورته لارښوونه وشوه چې له بسماچي سره مرسته وکړي پرته له دې چې خپل هیوا دپه مستقیمه توگه پکښې شامل کړي. له هغه سره دبسماچي دیوه نو ي مشر له منځ ته راتللوسره مرسته وشوه چې داوی مشر پخپله انور پاشاه وچې هغه د دریگونی اتحاد یو غړی وچې دلومړی نړیوالې جگړې په ترڅ کې یې دترکیې حکمرانی کړې وه. لایق او بې رحمه انور چې داستانبول دیوه مړي مینځوزکی(مرده شوی) زوی و، ځرگندوالي یانو میالیتوب ته دخپل پورته کیدنې په دوره کی له یو ې شهزادگی سره واده وکړ او په ترکیه کی یې ار مینیان له منځه یو ړل. دترکانو ماته او قدرت ته دمصطفی کمال رسیدل چې هغه دا لور رقیب او دښمن و انور مجبور کړي وچې دتل لپاره وتښتي. مسکو ته ور سیدو و روسته هغه بلشویکی مشران قانع کړي ووچې دادهغه تقدیر وچې دمار کس فلسفې ته داسلام له فلسفی سره وفق ورکړی؛ او رښتیا هم دهغه نوم لا هم په اسلامی ملکو کی یو ستر نوم و. انور باکو ته دهغه څه لپاره لیږل شوی وچې هغه کمونیستا نو دختیځ دمظلو موخلکو شورا (Congress of the Opressed Peoples of the East) بللې وه، هغه هلته په چټکی سره ځان له خپلو کور بانو څخه دښکار په یوه سفر کې په ځنگ کړ . هغه بل وخت په بخارا کې ښکاره شو او هلته یې

خلکک دجهاد اوپان تورانیزم لپاره راو بلل. (۷)

دابراهیم بیلك لیاقت او دانور حیثیت د بسماچی داعیې یا مقصدته باارزښته وو؛ خواینديې پهماشینگنو، زیاتو چاودیدو نکو موادو، تنظیم او سازمان پوري اړه درلوده. د۱۹۲۲ کال دجون په۱۲ دانو ر پهلار ښوو ونی ازبك آمن سواران بارسون ((Barsun) ته نږدې په ځپونکې توگه مات شوي وواو دآگست په ٤، پخپله انورافغاني سرحد ته نږدې په یوه اخ اودب کی دیوه نا معلومه (سره) Red سواره سرې د تورې په واسطه توټه (قطع) شوی و

امان‌الله خان ته خبر په داسې حال کی ورسیده چې هغه په شمالی سرحد کی له نادر خان سره مشوره کوله. هغه د یوڅه وخت لپاره دآموسین په شمالکی د څرگندې پراختیا په واسطه نارامه شوی واو په دې وخت کی یې پریکړه وکړه چې په شمال کی دپراختیا غوښتنې له تهولوادعاگانو څخه تیرشی او دپخوا په شان هغه په ختیځ او جنوب کی متمرکز کړي. بې له افغانی کومك څخه بسماچی غورځنگ یوه میرنی خود باندېني بریدونو یوې بې گټې لړی ته سقوط کړی وچی ابراهیم بیلك دوام ورکړچی دیوشو کلونو لپاره دباندېنی برید ونو د بی گټی لړی لارښوونه وکړی. فراری امیر سیدعلیم په کابل کې دیوه قره قلي سوداگر په حیث یو بې‌خوند موجودیت ته ځاي پر ځاي شو چې په دې کار کې یې له افغانی حکومت څخه مالی مرسته ترلاسه کره خود روسیینو خوشالیو لپاره یې وخت ترلاسه نه کر. په داسې حال کی چې دافغانانو او روسانو ترمنځ اړیکې خرابې شوې وې داپه همدې وخت کی وچې انگریزان دغیرعادی پاملرنی ور وگرزیدل. غازی امان‌الله خان چې دانگریزانو غوښتنې یې منلې وې له هندی انقلابیونو څخه وغوښتل چې له افغانستان څخه ووځی داځ، گرانه پریکړه نه وه ځکه چې حتی دافغانستان میلمه پالنه د د غو دا یمي میلمنو په واسطه تر فشار لاندې راغلې وه. زیاتره له هغو څخه روسیې ته لاړل او هلته دهغوی سوړ هرکلی وشو.

په عین وخت کی دکابل لرغوني ښار په ضعیف دول سره جهانی بحث غورځ

کوله کله چې دشوروی اتحاد نمایندګي په ۱۹۳۱ کال کې جوړه شوه اوورپسې
برتانوی، فرانسوي، ایټالوي او ترکې هیئتونه منځ ته را غلل. زیاتره
له دغو بهرنیو څخه خپل زیات وخت افغانانو ته په بډو ورکولو کې تیرکړ چې
د نمایندګانو په حیث عمل وکړي چې کله کله بریالي وو خو ډیر ځله ناکام هم وو.
د دغه فعالیت راپوروونه چې تر یوې اندازې پورې یې کښې مبالغه شوې
وه چې افغانی حکومت ته را اورسیدل لږ کار یې وکړ چې دبهرنیو په برخه کې
ددې حکومت بې اعتمادي کمه کړي.

تر ۱۹۲۲ کال پورې دانګریزانو په مقابل کې د افغانانو موقتی دوستی لاړو
مېنې په شمال کې د دغوي د ځانګړو هیلو له انحطاط او په سرحد کې د برتانوي
فعالیت له بیا پیل کیدو سره کمزوري شوي وه. که څه هم د کمونیست اجنټانو
دسیسو هم په دې برخه کې خپل رول لوبوه خو داریکود سیستوالی لپاره ستر او مهم
دلیل په پښتني قبیلو کې د انګریزانو علاقه وه چه هغه د ډیورنډ د کرښې د هغوي
په خوا کې پرتې وې چیرې چې د افغان او انګلیس د جګړې راهیسې د کرزن پخوانی
سیستم له منځه تللی و. حتی که څه هم بشپړ قبایلي ببلواګډنې په مشکلاتو سره
ځپل شوي وې، جدا یا منفرد بریدونو او یرغلونو نه یوازې دوام موندلی و بلکې
خوراناوړه کیدل. ددې لپاره چې دانګریزانو په وېره کې زیاتوالی راولی، قبایلي
خلک په پوره اندازه د تمدن په ناروغی اخته شوي وو چې هلته په دې وخت کې
د برتانوي مامورینو پر ښځو او لوښو باندې کله کله برید و نه کیدل کوم چې تر دې
وخته پورې نا بربرولی پاتې شوي وو. (۸)

په ۱۹۲۲ کال کې پیښو باندې دیوه کنټرول په توګه، چې سرحدي دنده یې
په زیاتیدونکې توګه نامنلي ګرزوله، انګریزانو د کرزن دساکن سیستم او د
پخوانی سیستم ترمنځ یو روغه جوړه ومنله یعنی تجاوزکاري زیات لګښت ایجابوه.

دقبایلي قومي عسکرو ځای چې دهغوي یې اتباري په افغانی جګړو کې ښودل
شوي وه خاسدارانو او څارندویانو نیولی و هغه کسان چې هغوي له قبیلو

څخه اخيستل شوي وو او هغه کسان چې دخپلو ځانګړو ملکانو خدمت يې کاوه.
دغو کسانو دخپل يوازني يونيفورم په توګه يو خاص لنګوټی درلود ؛ هغوي
خپل ځانګړي رخيز توپکونه مجهز کړل او او ترينه توقع کيدله چې په قبايلي
سيمه کې دقانون او نظم ظاهري بڼه وساتي.

بل نوښت داوچې دنده په قبايلي سيمو کې سرکونه جوړ کړي او په دي هيله
په وړاندي مواضعو کې منظمې لښکري ځاي پرځاي کړي چې هغوي به وکړاي
شي چې په چټکۍ سره د قبايلي بغاوتو نومخه ونيسي پخواله دي څخه چې
دخپريد وموقع پيدا کړي. خو کله چې د مثال په دول، په وانه (Wana) کې په
عسکرو باندي فشار راوستل شو چې په ترغوني کې داغزن مزي لرونکي سنګرونو
شاته ولاړ شي چې دي کارنه دځه شي په برخه کې داد ور کړاونه اغيزمن ثابت شو

په پای کې د کرزن دپلان پراختيا قبيلوته مالي مرستې ايجابولې چې کولاي
شول امنيت وساتي او دهغو کسانو په مقابل کې يې تنبهي عمليات ايجابول
چې هغوي لاهم بر يدکول زيات په زړه پوري ګاڼه. دغه رسوا او بدنامه او بچاړ
کړه ، وسوځوه او وتښته ، پروګرام بايد دفضائي بمبارۍ د استعمال په واسطه
پياوړی شي .

هلته بې له څخه د افغانانوله خوا مخالفت وشو ، په تيره بياددې پريکړې په
مقابل کې چې منظم يونټونه په وړاندې مواضعو کې ځاي په ځاي کړي. په دې کې
افغانانو خپلې خوږي او په زړه پوري د اختلاف ورسيمې ته يوګواښ او يوه اشاره
درلوکړه چې انګريزانو اراده کړې ده چې په آزادو قبيلو باندې خپل کنټرول پراخ
کړي. په دې دول، د۱۹۲۲ کال په وروستيو وختو کې کله چې انګريزانو پيل وکړ چې دغه
پروګرام عملي او تطبيق کړي، افغانانو خپل کسات د قبايلي جنګ تودو ونکو چې
له هغوی څخه يې اجوره اخيستله د قهراوغضب دزياتولو په واسطه او له سرحدنه
هاغه خواته دنورو جاسوسانو دليږلو په واسطه واخيست. نسبتاً دير معاشونه يا مالي
مرستې يو شمير وزيرو،مسعودو،مومندو او اپريدي ملکانو او ملايانو ته جاري شوي وي

چې دغه کسان نه یوازي برتانوي ضد باکې په طبیعي دول جګړه ماروو. برسیره پردې افغاني سرحدي مامورینو په نظر کې درلوده چې قبایلي یاغیان ته پناه ورکړي چې لا په خوابې په اداره شوي منطقه کې پرقریو باندې دناڅاپي حملې کولو، بریدکولو لوټولو او دماشومانو د تښتولو عادت درلوده او پس له هغه به یې د ډیورنډ د کرښې په آخوا کې بیرته امن ځای ته په سپکو ګامو ځغستل. هغو حدودو چې په نښه شوي نه وو یا غیر منطقي حدود وو سرحد د دغه رازشیانو لپاره د ژوند هدف وګرزاوه. وزیرو او مومندو دواړو د پولې په دواړو خواو کې خپلوان درلودل او په مساوي دول غښتلیو او تکړه اړیدو افغانستان ته یوه عقبي لار درلوده. په نتیجه کې لز ترلزه یوز رنفرو چې دبرتانوي پولیسانو له خوا وغو ښتل شوي وو، د ننه په افغانستان کې وو او تر ۱۹۲۳ کاله پورې وضع نه زغمل کېدونکې ګرزېدلې وه. کله چې غازي امان الله خان لسمسر جدنیه آخوا مشرانو ته کابل ته بلنه ورکړه، هغوي ته بې سوغاتونه ورکړل او هغوي ته یې د خپل ملاتړ وعده ورکړه او انګریزانو خپل تصمیم اعلان کړ چې سیاسي اړیکې وشلوي او پوځي ممکن عمل یا اقدام ته یې اشاره وکړه.

دغه کارتند خویه غازي امان الله خان آرام کړ چې هغه څومره چې ددې خطابیو وښودل، تر هغه لزله خپل توان څخه داده وچې دیره برتانوي بریدپه مقابل کې په اقدام لاس پورې کړي. برسیره په دې افغانستان په دې وخت کې له خپلو قبایلي ستونزو سره مخامخ وچې افغاني مشرانو عقیده لرله چې ددغو ستونزو سبب لز ترلزه تر یوې اندازې پورې جاسوسي کول او د انګریزانو له خوا بلدې ورکول و.

د ۱۹۲۴ کال په مارچ کې هلته منګلو او دخوست ځاځیو وه بلوا وکړه. څرنګه چې په افغانستان کې ناڅاپي قبایلي بغاوتونو او بلواګانې زیاتې وې او معمولاً یو شمیر محتاطانه بدوږه وسیله غلي کېدای شول، داپه اوله کې جدي ونه ګڼل شول. بله دا چې هغوي له نورو قبیلو سره اړیکې نه درلودې مګر په حقیقت کې یې په پراخه پیمانه او پر ګډلیه پیاوړو غلزیو او وزیرو سره اختلاف درلود چې ددوی سیمه د هغوی له سیمې سره هم سرحد وه.

داسې عقیده موجوده ده چې اصلاً بغاوت دغازي امان الله خان دځینو تولنیزو اصلاحاتو له امله منځ ته راغلې وځکه چې ددغه بغاوت لارښو ونه دملایانو له خوا کیدله په تیره بیاد متعصب ملاعبدالله له خوا چې دګوډملاپه نامه هم شهرت لري. خوزربونوي مشرعبدالکریم خان منځ ته راغې چې نومـوړي د فـراري امیر یعقوب خان زوی و ؛ که څه هم هغه له یوې مینځې ( صیغه ئي ښځي ) زیدلي و په دې وخت کې یې دسلطنت ادعا وکړه. کله چې افغاني لښکرې چې دپاچو ښاد اداره کولولپاره لیږل شوې وې بې تأثیره ثابته شوې، پرافغاني حکومت باندې فشاروا چول شو چې له نورو قبیلو څخه دمرستې غوښتلو خطرناك ګـامونـه اوچت کړي. یو شمیرمومندو، شینوارو، وزیرو او اپریدو د افغانـي حکومت غوښتنې ته ځواب ورکړ ؛ مګر حتی د هغوی له مرستې سره هم وضع جدي او خطرناکه وه او په یوه وخت کې دیاغیانو لښکر یوازې یوڅو میله له کابل څخه لرې و. که چیرې پیاوړ وغلزیو دمنګلو په طرفداري په جګړه کې برخه اخیستې واي ، پایتخت به په یقیني ډول سقوط کړی واي ؛ خو پخوانـي دښمنې ګانې دچوراوچپا وترهیلـې دیرې قوي وې او غلزي بې طرفه پاتې شول. په پای کې په چاراسیاکې د حکومت بري بغاوت پای ته ورساوه چې د غه بری تربیوې اندازې پورې دهغودووالو تکنو داستعمال په نتیجه، کې دحکومت په برخه شوی وچې دانګریزانو له خوا ورته پورې ورکړل شوې وې. ګوډملا کابل ته راوستل شوا واعدام شو په داسې حال کې چې عبدالکریم په هندوستان کې خپلې پناهګاه ته ستون شو . غـازی امـان الله خـان (افغاني آشوکا (Afghan Asoka) په چټـکې سره دبري یوه نوې ستنه ودرلودله اودغه، یوه یې «پرجهل باندې دپوهې بري ته» اهدا کړه . (۹)

دمنګلو یاو ادرسونه لرل چې ځینوسیاسي کتونـکوته څرګند ووخو هغه په ځان دادو غازي امان الله ته څرګند نه وواوده له نظره پټ وو .

دافغاني پوځ پرله پسې کمزورتیا څرګنده وه او داښکاره وه چې افغاني حکومت قدرت نه درلوده چې د بلوا مخه ونیسي چې هغه دیوشمیرپیاوړ قبیلوله خوا سرته

ورسیده. اضافي لمسون چې انګیزه یې عبدالکریم یاغیانوته پهلاس ورکړي وه وښودله چې مرتبې ښځې چې په مستقیمه توګه یې له هیڅ یوې بورخه، و الوقبیلو سره اړیکې نه لرلې کولی شول چې دحسادت اغیزې لاندې کړي او دهغوی ترمنځ همکاري ته وده ورکړي اوزیاته یې کړي :

افغانان لاتر اوسه پورې په دې عقیده دي چې دغې بلوا ته د انګریزانو له خوالمن وهل کیده چې د غازي امان الله خان له سرحدي خطرناکې پالیسی سره مخالفت وکړي اوخوست ته دعبدالکریم سفرد برتانوي جاسوسانو له خوا برابر شوی و. لکه څنګه چې په دغه دول ترچینې لاندې دچړې ( چاړه تر چینې لاندې پټ ګرځول اوعملیات ترسره کول) په عملیاتوکې معموله ده ، هلته دغه تورکوم ثبوت نشته؛ خوته د دې احساساتی خصلت یادغه دول تورونو ته دافغانانو تمایل اورغبت ثابتولی شي د ایوبې اساسه ده . د ځمکې پرمخ یوازشمیرځابونه ددې شاهد دي چې هلته پټ فعالیتونه د افغاني سرحد په پرتله ثابت او بریالي وو.

دلمسولوعلت چې هرڅه وي،په دې کې شك نشته چې بلوا دامان الله خان دتولنیزو اصلاحاتو پهمقابل کې دقبایلي مخالفت په واسطه پیل شوه. پهقبیلوکې ملایان یوپیاوړی قوت وځکه چې خلکو د هغوی په روحاني قدرت دومره رښتینې عقیده نه لرله څومره چې د هغوی په وینا باورکاوه یعني خلکو د هغوی له وینا ترد هغوی پهروحانیې قدرت زیات عقیده لرله . زیاتروقبایلي ملایانو ددین په برخه کې چې هغوی یې ادعاکوله،او هغه یې څرګنداوه،ژمعلومات درلوده مګر هغوی معمولاً فصیح اودقبایلي خلکو داحساساتو په پاورلوکې لایق وو. همدارنګه هغوی دبدلون په مقابل کې یوه محافظه کارانه ویره درلوده چې اسلام ته تر ګواښ زیات له دې امله وه چې دغه بدلون بنایي د هغوی د امتیاز ځانګړو موقفونو ته زیان ورسوي چې هغوی د خپلو پیروانو دزیاتی ناپوهي په وجه ترلاسه کړي وو.

دغه زیاتیدونکی مخالفت غازی امان اله خان ته څرګندنه واودده له نظره پټ وهغه چې یو ریښتنی اوایدیالست اصلاح غوښتونکی وچې رښتیاهم غوښتل یې اصلاحات

منځ ته راوړې،خو دده پلانونو غیرعملي ارخ درلود . د هغه سخت اوپیاوړي ملي غرور دده د خپل هیواد دبیر ته پاتې کیدې په واسط صدمه ولیده او ددې ترڅنګه دزیاتو افغانانو ملي غرورته هم زیان ورسیده چې دچټکو بدلونو په باب بې معلومات درلوده چې په ټوله نړۍ کې پیل شوي وو . له بد مرغه هغه دزیاتو اسیائي او افریقائي اصلاح غوښتونکو په شان ونشو کړای چې دادرک کړي چې غربي پرمختګ نظر تولیزونمو نوته ترزیاتې اندازې پورې د اقتصادي پرمختګ نتیجه وه . هغه تر زیاتې اندازې پورې د ټولنیزو اوکلتوري اصلاحاتو اړاره کوښښونه کول یادهغه دهخو هدف صرف داوچې د افغانستان بیرته پاتې کیدنه د غربي کارونو په یوې نرۍ پردې سره پټ کړي .

ځینې دهغه له پروګرامونوڅخه د هوښیارۍ اوحکمت څرګندوی وو . په ۱۹۲۲ کال کې هغه د فرانسې شرقي انستیټوت ته اجازه ورکړه چې په افغانستان کې د لرغون پېژندنې کار پیل کړي چې هلته یوازې نې پر مبني پلټونکي د انګریز انوپه یرغلګرو پوځونو کې لیوال اماتوران و ویادمیسن په شان ښخوانی کتونکي اوچیرته چې په نتیجه کې د بشرد ژوندانه د لرغوني دورې په برخه کې د معلوماتو یوغنې کان په حقیقت کې لاس ناوهلي پاتې و . ځینې ګټورې کیندنې د شرقي انستیټوت له خوا او د دغسې قابلو استا ځولکه فوچر (Foucher) اوګودارد (Godard ) له خوا شوي دي خو یوه زیاته اندازه کیندنې پاتې دي چې باید سرته ورسیږي - دایو کار دی چې موجوده حکومت په غاړه اخیستی دی .

دغازي امان‌الله خان له پروژو څخه یله دښوونې اوروزنې په برخه کې وه . په ۱۹۲۲ کال کې دحبیبي او مرنۍ ابادوونکي کارد یودویم ښوونځي په واسط بشپړ شوچې هغه داستقلال ښوونځي وچې کارکوونکي اوستاف یې یوځو تنه فرانسوي ښوونکي وو . په د غوباندې ورروسته یو شمیر نور ښوونځي ورزیات شول چې هغه عبارت وود غازي ښوونځي څخه چې ښوونکي یې په بریتانیا کې روزل شوي تعلیم یافته هند یان وو او د نجات ښوونځي څخه چې ستاف یې المانیان و

وه داپه‌یوه‌هیواد کې چې هلته دنفوس له‌زترلزه په سلوکې ۹۵ نالوستي (بې‌سواده) دي‌یو بې‌مترې اونیمگړی پیل و؛ مگردا مشکله وه چې دافغاني مینه واو پلرونو تعصبونه له مینځه یوړل شي چې دهغوی‌ویرې چې‌ښوونه‌او روزنه ښایي‌دهغوی‌کوچنیان کافران کړي د ملایانو په واسطه دهغوی په زړونوکې ژوندي ساتل شوې وې . دغازي امان‌الله خان تعلیمي‌پروگرام هم هغه تیروتنې ته ادامه ورکړه چې انگریزانو په هندوستان کې په خپل تعلیمي نصاب کې کړې وه‌اوهغه داوه چې تعلیمي نصاب اوپروگرام‌یې علمي اوغیر فني یاغیر اختصاصي مضامینو ته‌محدود کړل‌شوی و .

غازي امان‌الله‌خان له یوځي پروگرام سره‌اړ مینه درلوده‌او ترکیې ښوونکي هغه چې ده استخدام کړي وودې پرځای چې دعسکرو دمورال یا مؤثریت د دبهترکولو په برخه کې مینه ښکاره کړي دخپلو نسبتاً زیاتو سخاوتمندانه معاشونوځخه دگټې اوخوند اخیستلو په برخه‌کې زیاته مینه ښکاره کړه .له بلې‌خوا غازي امان‌الله‌دودانیو په جوړولوکې زیاته علاقه لرله اوځان یې دودانیو جوړولو پروگرام ته وقف کړ . دهغه ستر بریالیتوب د پغمان داوړي ځای په بیا جوړولو کې وچې تقریباً اتلس میله له کابل ځخه لرې دی او هلته هغه پرشیره پریوې سینما او دمسابقې یو خط‌السیر په مصنع الماني سبکث (Style) سره یوشمیراستو گنځي جوړ کړل .لاپې هم زیات کوښښ اولوړه ارزو د رلوده چې یونوی ښار (دارالامان) چې‌له کابل ځخه تقریباً پنځه میله واټن‌لري، دانقرې په‌ترکي سبک سره جوړ کړي .ځرنگه چې دپر اختیا لپاره یې ځای‌نه درلوده نوځهغه دنوي ښار دجوړولو مفکوره یوښه مفکوره وه؛مگر داد پاچا د نورو تشبثونو‌او پروژو په ځیر دهغه دلږ زیدونکي یاد زړه‌نازړه ایو التیا تابع وه اوهیڅکله بشپړه نه شوه .

کله چې غازي امان‌اله خان له یوه پلان ځخه بل پلان ته گامونه اوچتول هغه په‌غربي طریقې‌سره دروزل شو یو ځوانو افغانانو چې شمیر یې مخ پر

زیاتید وملاتړ ترلاسه کړ او له دی سره یې دملا یانو او دنفوس یاد جمیعت دنخورا محافظه کارو غړو دښمني ځان ته واړوله .یو زیات جدي عیب د هغه لند پاری شخصیت وچې له دې سره بې داتمایل هم درلوده چې په معیاو مقربو اوغړو ره کسانو بساندې پوره باوروکړي . دې کار دنورو افرادو چې په لوړو پستو نو کی مقرر شوي وو تر منځ دښمنی گانی اومخالفتو نه پیداکړل چې زیاتره له هغو ځخه نه پاچاسره دوینی داړیکو او دخپلوی له امله ارتباط درلوده . غازی امان الله خان چې د خپل کاملاً دوستانه او دیمو کراتیک خصلت له امله یې خوښول چې دننه په بازارونو کې یوا زې وگرزي او له خپل رعیت سره روغبړ وکړي او هغوی ته لاس ورکړي ، پرسر زوری سری و او تمایل یې درلوده چې دهغه له افکار وسره مخالفت له شخصی دښمنی یا ضدیت سره برابره او یو شان وگڼی . له بلې خوا هغه په اسانی سره دغو ړه مالانو تر اغیزې لاندې راته .

ددغو ناکامیو په نتیجه، کی دپاچا په مقابل کی سوړ چاند په تیره بیاد مصاحبانو یاټیځی خیلو په کورنې کې وښودل شو چې له پنځو لایقو و روڼو ځخه جوړ شوې وه اومشری یې دافغان او انگلیس د جنگ اتل نادر خان په غاړه وه ټول مصاحبان دمحمدزې قوم غړې وواو که ځه هم هغوې دامیر دوست محمدخان لمپښتې نه بلکی دهغه دورور سلطان محمدله پښته، وواو دروتنو یې دپاچاله خوینـدو سره واده کړې و. هغوې له تبعید ځخه وطن ته د خپل دستنید ووخت راهیسې په افغانی حکومت کې لوړ ومقامونوته رسیدلی وو ؛ نادرخان شاولی خان او شامحمود خان درې واړه په افغانی پوځ کی دجنرالی رتبی لرلې :

"دغازی امان اله خان اومصاحبانو تر منځ اصلی درز دپاچا او هاشم خان تر منځ له یوې ځانگړې جگړې ځخه را پید شو. دغه د رز دمنگلو دبلوا په ترڅ کې اوتر بلوا وروسته دیرزیات شو کله چې غازي امان اله خان دنادرخان مشوره په نظر کې وانه نیوله اونادر خان دیودیر شخصی غرور خاوند انسان و. کله چې خپله او پسه

قارنادرخان درك كره چې په پاچا باندې دده اغيزه تر ملكي سلا كارانو لزه وه، نوېې دپوځ دكوماندانۍ له پست څخه استعفا وكړه او په فرانسه كې يې د افغاني وزير مختار په حميت دنده ومنله .

زربې له دې دندې څخه هم دناروغى په بهانه استعفا وكره چې په فرانسوي ريو يوريا French Riviera (دمديترانى په شاوخواكې دفرانس اوايتاليا ساحلي ناحيه ده چې دانا حيه دسيلانيانو اوگرځندوي لپاره يو دتفريح ځاى دې مترجم) كې ځاى پرځاي پرهغې څى چې هلته يې وروړ هاشم خان ورسره يو ځاى شو.

دغوله وظيفو څخه لاس اخيستنوغازي امان الله خان ونه ريږاوه ځكه چې هغه ځان د افغانستان دخپلواكي معمار او يو د ارادى خاوند سړى گانه چې په نظر كې يې درلوده چې دادملي برم اوعظمت خواته رهنمائي كړي. هغه ددرباري خلكو په برخه كې كوم كمبود پيدا نه كړ هغه كسان چې را ضي وو چې دهغه غرور و وستايي او دمشورې لپاره هغه پهخپلې ملكې ثريا، په خپل خسر محمود طرزي اوپه محمد ولى خان باندې اعتماد وكړ .

غازي امان الله خان د ۱۹۲۰ كـال په اوږدو كې ز ياته خارجى پانگه ترلاسه كره چې خپل پلانونو ته تمويل كړي او دغه پانگه يې په آزاد توگه په كاروا چوله چې يو زيـات شمير خارجيانو ته غوره مالي وكړي چې دافغانستان لپاره كار وكړي .
په دغو كسانو كې نه يوازى انجنيران ـ تخنيكران او ښوونكي شامل وو بلـكې يو ـ لس تنه روسى پيلوټان هم شامل وو. دوې راوستل شوي ووچې هغه ديره ابتدائي يانيمگړې افغانى هوائى قوه په نفرو سمبال او په كار واچوي .

ترديره حده پوري افغانانو دكافرانو دغه بهير په مهرباني او ميلمه پالنى سره ومانه، په دې توگه دافغانانو سخت گيرې او تعصب عنعنوي كيسى پسا ى ته رسيږي. دغه دول پيښى ځنگه چې پيښيدلى په حقيقت كې دهريوه بدنيته افغان په پرتله زيات مسافرت كوونكو يا كتونكو په وسيله منځ ته راغلي دي .
په ۱۹۲٤ كال كې دافغانستان ځارندوى هڅه وكره چې د پيپارنو (Piparno)

په نوم یو ایټالیوی انجنیر ونیسی چې هغه، له ځینو فرعي قوانینو څخه سرغړونې
وه او په څرګنده توګه یې اندوله (مختل) و ځکه چې هغه، د خپل کور له دروازې
نه دزې وکړې او له ښارندیانو څخه، یې یو نفر مړ کړ. تر محاکمې او محکومیدلو
وروسته ، هغه ځان له قصاص څخه، وژغوره چې د هغه قصاص د افغاني قانون پر
اساس د مقتول په خپلوانو پورې اړه درلوده مګر د پور په خاطر چې له دولت څخه
یې اخیستی و په یوه کال بند محکوم شو. هغه غالبا د بدوور کولو په وسیله وتښتیده
او د سرحد خواته روان شو او هلته یې ځان د ناڅرګندو دلایلو له مخې افغاني سرحدي
ساتونکو ته تسلیم کړ. داخل هغه په بیړه سره اعدام شو .

دغه پېښه له هیواد څخه بهر د هیجان موجب وګرزیده ځکه چې په هغو ور-
ځوکې له هیواد څخه د باندې پر نورو ملکونو باندې واك لرل یوازې د اروپایانو
امتیاز یا خاص حق ګڼل کیده که څه هم البته افغانستان هیڅکله د دغې موضوع په
ارتباط کوم قرار دادنه وکړې. ایټالوي حکومت احتجاج وکړ، خپل سیاسي
نمایندګي یې وتړل، او په ایټالیا کې یې افغاني دارائي تولې قبضه او ضبط کړه. دغه
حرکت د غازي امان الله خان د بخښنې غوښتلو او د پېړانو پاتې کسانو ته د ځلاویشت ـ
زره ډالرو د ورکړې موجب وګرزیده چې موضوع یې حل او پای ته ورسوله.
د پیپار نو اعدام په حقیقت کې د کابل د کوتوال یا د ښارند وی د امر اقدام یا عمل
و چې د کولو صلاحیت او اجازه یې نه درلوده چې په چټکۍ سره له خپل مقام
څخه لیرې یا له وظیفې څخه، ګوښه کړل شو .

په بله پېښه کې یو لند پاری الماني سیاح شامل و چې هغه په ټپټپې (موټرسیکل)
باندې افغانستان ته راغی. دغه عجیبه ماشین چې د یوه هیواد د سړك په اوږدو کې
یې تکرخوړیو آس وتوراوه چې په نتیجه کې د یوه ده له خاوند سره لانجه منځ ته
راغله . لانجه، په لاس اچولو او نښتلو بدله شوه چې په نتیجه کې الماني سړي یوه
څرخي تمانچه راویستله، او خپل حریف یا مخالف یې مړ کړ. دغه، بی ځایه، او غیر
ضروري قتل د الماني لپاره د څلور کاله بند سبب وګرزیده چې وروسته له هغه

سمندلاسه د شاهانه ذات له خوا ویشل شو. (۱)

ددغو کلونو په ترڅ کې دافغانستان اړیکو ددې هیواد له څپلو پیداوړو ګاونډیو سره عادي بڼې ته بدلون وموند. له ۱۹۲٤ څخه تر ۱۹۲٦ پورې د منګلو بلوا او دشوروی اتحاد دازبکستان اوتاجکستان دایالتونو تشکیل انغانان متمایل کړل چې دلویې بریتانیې په مقابل کې دزیاتې دوستانه رویې څخه کار واخلي. ترقبایلي بلوا وروسته اوډا امکان چې شایې نور و بغاوتونو ته لمن وو هل شي دې ته میلان پیدا کړچې د پولې اخوا په قبیلو کې افغاني فعالیتونه کم کړی او د شوروی اتحاد ددوو جمهوریتونو تاسیس دشمالي انغانستان دازبکو او تاجکو ترمنځ دفشارونو در اتللو یوه نښه وبوښیده. دانغانانو او شورویانو ترمنځ خبرې ترتیا د آمو په سین کې د اورتاګۍ تاپو د تصرف په سر باندی له یو بې لنډی نښتی سره د ۱۹۲۵ کال په دسمبر کی وروستی حل ته ورسیده. خوشرنګه چې شوروی اتحاد دیوې نوی بهرنی پالیسي دپه کار اچولو او دپیل کولو په درشل کی ودهې هیواد عسکر په چټکی سره له زیاتو مقدرتونو سره ویستل شوي وو.

په دې وخت کې دافغان شوروی اړیکو په چټکی سره پراختیا وموند له. شورویان لیوال ووچې د مخالفت هغه دیوال ونړوی چې لویه بریتانیایې دبنست تیزه وه او په سمه توګه یې دخپلو دښمنانو کمزورتیا د اسیایی مخ پر زیاتیدونکی ناسیونالیزم سره تشخصیو له پتیلې وه چې ددوی دخپل ځانګړی اعتبار او وقار دزیاتولو لپاره یو ه مبارزه پیل کړي. هغوی داسې نه ګڼله چې د هندوستان په شیر هیوادونه مارکسیستي انقلاب لپاره چمتو وو، بلکې زیاتره دهغوی مطلب د اوچې پراستعماري قدرتونو باندې فشار واچوي.

په اروپاکې ددغه حرکت په مقابل کې عکس العمل بالکل هغه څه نه وڅه چې شورویانو توقع لرله. دې حرکت په تیره بیا په لویه بریتانیا کې د روسي کمونیزم ویره منځ ته راوړه چې داویره دنولسمې پیړی له روس څخه ویرې ته ورته وه، که څه هم داخل دې ویرې ترزیاتې اندازي پورې حقیقت درلود. دستینلې

بالډوین (Stanley Baldwin) په مشری حکومت چې په هیوادکې د یوه عمومي اعتصاب اوپه امپراطوری کې دیوې عمومي ناکراری له ستونزو سره مخامخ شوی و صرف دې ته زیات چمتووچې دغه ټولې ستونزې د کمونیست اجنټانو په خطرناکو فعالیتونو اوهغوی پورې مربوط وګڼي - یوه داسې وضع چې هغه په لندن کې دشوروي اتحاد دسوداګرۍ دهیئات په دوترونوباندې دیوه برید اوپه پای کې دبریتانیې او شوروي اتحاد ترمنځ د اړیکو دشلیدلوموجب و ګرزیده.

برتانوی مشرانو هم په هندوستان کې دمخ پرزیاتیدونکې ناکراری ملامتی پر کمونستانو اچوله، که څه هم دابه اوس څرګنده شی چې هغوی هلته په نیشتلستی غورځنګ کې یو جزئی رول ولوبوه. دهندی ناسیونالیزم د ثابتې ودې ترشا ریښتنی قوت دموهنداس ګندی رهبری وه چې مسلمانان اوهندیان یې یو الې ته راپلل - ددغه یو والی امکان درسمی انکار کوونکو دخوځو ځلی انکار سره سره برتانویانو ته داوزدی مودې لپاره اخلالوونکی و.

داریانتیا ځای دی چې دیووالی لپاره حرکت دشمال لویدیځ سرحدی ولایت په مشهورو متعصبو مسلمانانو کې خپل خورا زیات قوت ترلاسه کړی وچې دهغه ولایت پښتانه قبایلی خلک دیری پیری لپاره له کافرو څخه په څرګنده ول متنفر وو دغه پر مختګ ترزیاتی اندازی پوری دیوه سړی په وسیله وشوچې هغه خان عبدالغفارخان نو میږی چې کله کله دسرحد ګاندی په نوم هم یادیږی. دی دمحمد زیو دیوه خان (مګر نه درانی محمد زیو څخه ) زوی دی چې پیښور ته نږدی د اتمانزو له کلی څخه دی. دخلکو یو لارښو دستوری یعنی خان عبدالغفارخان یو لیوال او کلک پښتو ن نیشنلست وچې شخصیت او صمیمیت یې هغه په قبایلی خلکو کی مشهور کړ.

په ۱۹۲۷ کال کې خان عبدالغفارخان یو سازمان جوړ کړ چې اول د پښتنی ځوانو افغانی جرګې په نامه یادیده مګر په ۱۹۲۹ کال دخدایي خدمتګارانو په نوم یادشو. ددې سازمان څرګند هدف دګاندي دعدم تشدد د طریقې له لارې د خپلواکۍ

لاس ته را وړل واو ددې سازمان غړو (یونیفورم یو دول کالي) چې زیږ وزمه سوررنګ یې درلود اغوستل چې دارنګ زيات اوارزانه و ـ دایو بد مرغه یاناوړه انتخاب وځکه چې دې انتخاب کرار کرار دیوه فکر دمنځ ته راتللو لپاره لارهواره کړه چې ګواکې هغوی دماسکو له خوا مشغول شوي وواوهغوی ته یې د«سرخ پوشانو» لقب ورپه برخه کړ. په حقیقت کې که څه هم ځینو مشرانو سوسیالیستکې تمایلات لرل یو څو تنو غړو هیڅکله دمارکس په باب څه نه و اوریدلی. (۱۱) که څه هم دخدائی خدمتګارانو غورځنګ دسوراج Swaraj دخپلواکی) دلاس ته راوړنې لپاره وقف شوی و، دادیر مهم و ځکه چې دې غورځنګ پښتنی قبیلې سره یوه موتی کړې. ددې اغیزه په تیره بیا په مومندو اواپریدو کې زیاته وه که څه هم په دې باید اعتراف وشي چې هغوی دعدم تشدد دکتورین (نظر) په یوې عجیبې طریقې سره تفسیر اوتعبیر اوه. دمثال په دول ، مومندو دترونګزیو حاجی صاحب په مشری چې دعبدالغفار له یوې خورسره یې واده کړی و، په یو لړ بریدونو لاس پورې کړ چې پولسه دغو بریدونو څخه ریښتیا هم دپیښور ښار وویراوه:

برتانوي حکمرانانو په سرحد کې دستونزې اوپه هندوستان دزیاتیدونکې اروـ دوړعامل کمونیست محرکین ګڼل، نائب الحکومه لاردارویـن Lord Irwin پـه ۱۹۲۹ کال کې مقننه هیئت ته وویل دکمونیزم دطریقو ناآرامه کوونکې خپریدنه او زیاتیدنه یو څه موده کیږي چې زمادحکومت داندیښنې موجب ګرزیدلې ده. : :

تولې طبقې پوشان ددغو دکتورینو دخپریدنې پـه واسطه تهدیداو وپریږي اود هیڅ حکومت په وس کې نه ده چې له دغه مکارانـه خطرڅخه سترګی پټې کړي. (۱۲) زیاتره له برتانوي مشرانو څخه هم متقاعد وو چې افغانستان اوددې هیواد «راډیکال» پاچا دشوروي اتحاد په لاس کې وو اوپه نظر کې وه چې له دې هیـواد څخه دې وه جبل په حیث کار واخیستل شي چې برتانـوی امپراتوری رنګه کړي. (۱۳) بې له شلک څخه شوروي اتحاد په کابل کـې خپل نفـوذ زيات کړی واود ځینو افغانی مامورینو ملاتړ یې په بیه اخیستی و:

خودا فکربې ماناوچې افغانستان هندوستان تـه دیوه پوځي ګوابس په حیث وګڼواوېوازې دنولسمې پېړی له روس څخه دوېرې دتجدید په توګـه تو ضیح کیداې شي . په پارلمان کې دغه بیانیه چی، دافغانی هوائی قوې دولس کمزورې دوه وزرتې الوتکې پوخطر وبناپه‌ی دسیاسی لاپې په حیث وګڼل شي. خودا مشکله ده چی پوه شوچې سرتوماس هولډیچ Sir Thomas Holdich چې هغه دافغانستان په برخه کې دیو وتلي ماهرپه حیث ګڼل کېده په جدی توګه یې ادعاکولای شوه چې افغانان په مخصوص دول سره یهودې Jowish کموتیزم ته وراوجوړ وو ځکه چې هغوی دده په قول داسرائیلودلسو ورك شوبوقبیلوله پښته وو .

په دغه کړکیچنه فضاکې خوشحال غازی امان الله خان خپل رعیت دخپل تګل دانلانولوپه وسیله چې غوښتل یې اروپاته پوشاهانه سفر وکړي ناخاپه وویراوه .

چنگښه په یوه لوته ودریده

او وې ویل. « زه کشمیرویئم . » •

## پنځلسم څپرکی

## په افغانستان کی اړودوړ •

اروپا ته دغازي امان الله خان دسفرکولو فیصلې یا تصمیم اوورپسې ده ته دایتالیا دپاچا له خوا ایوي بلنې یو تعامل رامنځ ته کړ یعنې تر هغه دمخه بل هیڅ افغاني پاچا له اسیا څخه وتلی نه و اودا په ځان باندې دهغه د داده توب یوه نښه ده . غازي امان الله خان تر زیاتې اندازې پورې داصلاحاتو د منځ ته راوړلو لپاره دخپلو احساساتو په وسیله سفر ته مخول شوی وچې دغه اصلاحات د ترکیې د مصطفی کمال او دایران د رضاشاه پهلوي د نمونو په واسطه زیات پیاوړي شوي وو .

د ۱۹۲۷ کال د دسمبر په ۷، غازي امان الله خان او ملکه ثریا چې یو شمیر درباریان ورسره ملګري وو اود سفر څخه ورا زیات باراو پنډ کی ورسره وو د هندوستان د لیدنې لپاره روان شول او د افغانستان د چارو واکاو ذمه واري یې و زیر محمود ولي خان ته وسپارله . دغه دهندوستان له لارې سفر دهندوستان اوافغانستان دحکومتونو ترمنځ د کړ کیچنو اړیکو سره اړخ لګاوه . کله چې د نایب الحکومه لار داروین سره لرې تبه چې پر موقع به راتلل زیاته شوه اووې نښو کړای چې د یوه رسمي کوربه په

---

• لیکوال په کتاب کی «افغاني انقلاب» راوړی دی . په دغه وخت کی له پیښو نه داسی جوتیږي چې «افغاني انقلاب» نه بلکی «په افغانستان کی اړودوړ» ځکه ماهغه په افغانستان کی اړودوړ بار لی دی .

• دامتل په کتاب کی په پورتنی شکل نه دی راغلی بلکی په دغه (جنګښه پر لوته ختله ، کشمیری ولیده ) شکل راغلی دی .

تو گه عمل و کړي، نو دغه سپکاوی د حساسو افغانانو له نظره پټ نه و. کله چې برتانویانو غازي امان الله خان ته اجازه ورنه کړه چې بندي گاندي سره و ویني، هغه نورهم په غصه شو او وپاریده اوپه غچ اخیستنې کې یې ژیاتې خطابې چې هندوان او مسلمانان یې یووالي ته را بلل ورکړې او د خپل هندي او ریدو نکو په اذهانو کې یې هیڅ شك پرینښود دچې د سوراج د مسألې په باره کې د ده دریځ څه و. دادوار و خواوو ته یو خلاصی او هوسایي وه کله چې افغانانو د دسمبر په ۲۶، په کښتۍ کې ارو پاته سفر وکړ. لومړي توقف چې یې په مصر کې یو ولس ورځنی سفر و بیا چندان بریالی نه وځکه چې غازي امان الله په ښکاره تو گه په مصریانو باندې چې د برتانو یانو تر کنترول لاندې و و دهغوی د مهربانی له امله انتقاد وکړ. هغه همدارنگه پاچا فواد په یوه پوځي معاینه کې دد یرشپو دقیقو لپاره انتظار وساته؛ دغه دول سستي په افغانستان کې نامعلومه نه وه خو په مصر کې د پروتو کرل د یوې جدي ماتونې په حیث و گڼل شوه.

ورپسې داروپا او دبریو درسم گذشت وارراغی. ۱۹۲۸ کال د سولې او ارامی یو گډ و دوخت و؛ دورځپانو مدیرانو داخبارو موضوعات نه لرل او له یوه ازپیژ ندلی شوي هیواد څخه، یو سلطنتي هیئت داخبارد سرلیك لپاره دیر ښه مواد برابر کړل ځکه، چې غازي امان الله خان دیر مهربانه او په معتدل دول سره یو عجیب انسان دواړه و او همدارنگه ملکې ثریا نه یو ازې جذابیت درلوده بلکې ښکلا یې هم لرله چې د دې ښکلا داروپاله شاهي ښکلا سره په غوره تو گه پرتله کیدای شوه.

په ایتالیا کې غازي امان اله خان له پاچا څخه دزیري (داخترد خت) غروندی (Collarofthe Annanciation) * تر لاسه کړ (چې په دغه تو گه یې دغه دوه کسان سره د تره زامن وگرزول) او له پاپ (Pope) څخه یې یو د طلائي مهمیز نښان (Order of the Golden Spur) تر لاسه کړ. وروسته یې بیا د فرانسې او المان له

* د بشارت اختر (هغه اختردی چې هر کال د مارچ ۲۵ د مسیحانو له خوا جوړیږي مسیحانو په عقیده په هغه وخت کې جبرا ئیل د عیسی مور مریم ته خبر ورکړ چې عیسی به له هغې څخه پیداشي فرهنگ کامل لومړی توك ۲۵۲ مخ ۰ (مترجم)

جمهو رورئیسانو دومرگو (Doumevgue) او هینډنبرګ (Hindenburg) څخه زښت ډیر سوغاتونه او نښانونه ترلاسه کړل .

په انګلستان کې پاچا جورج (KingGeorge) او ملکې ماري (QueenMary) له افغاني هیئت سره دویکتوریا په سټیشن (VictoriaStation) کې وکتل او دیوې درویشت ورځنۍ میلمستیا په ترڅ کې ځینې فعالیتونه سرته ورسیدل چې په دې فعالیتونو کې برسیره دا کسفوردا و کمبرج (Oxford-Cambridge) ترمنځ د کښتۍ چلولو د مسابقې له فعالیت څخه دانګریزانو دپوځي ځواك نمایشات هم شامل وو. (۱)

له انګلستان څخه له حرکت کولو نه وروسته غازي امان الله خان مسکو ته لاړ، یو ځل بیا یې دانګلستان په مطبوعاتو کې له اندیښنو نه ډك سر لیکونه راو پارول چې دا انقلابي پایتخت ته دسلطنتي هیئت لومړی سفر و . کوم تود هر کلی چې دجمهور رئیس کالینن (Kalinin) لخوا د افغاني هیئت وشو نبایي د پخوانیو بلشویکانو (oldBolsheviks) ارواګانې یې (ارواح) هرځای چې وي چې لا تراوسه پورې دکریملن (Kremlin) دګنبد وشاوخوا وزروهې شي ر پولې وي.

افغاني هیئت له (U.SS.R) څخه ترکیې ته لاړ او هلته غازي امان الله خان دهغه پرمختګ په واسطه تراغیزې لاندې راغی چې دمصطفی کمال تر پروګرام لاندې شوی و او پس له هغې ایران ته لاړ او هلته دافغاني پاچامهربانه اونرم شخصیت اودسر زوري او په ځان غره رضاشاه پهلوي ترمنځ د پرتله کولو په نتیجه کې یو په زړه پورې اختلاف ولیدل شو. سلطنتي هیئت له تهران څخه کابل ته وخوځیده چې دا کار د سرکونو دحالت په نظر کې نیولو سره یو فوق العاده کار و سلطنتي هیئت له غازي امان الله خان سره دجولای په لومړۍ نیټه په رولس رایس (Rolls Royce) کې راورسید . (۲)

بهرنیو سیاسي کتونکو پر دغه سفر باندې چې د دولت په پیسو سرته ورسیده په تیره بیا د افغاني خزانې دوضعې په نظر کې نیولو سره انتقاد کړی دی. خو په حقیقت کې دغه سفر نه یوازې دافغانستان لپاره د ضروري غوره تبلیغ او معرفې

موجب وګرځیده بلکې اهمیت یې دهغوسوغاتونودارزښت په واسطه چې غازي امان الله خان ترلاسه کړی وو تر هغو پیسوزیات وچې دسفر لپاره ورکړل شوی وی. برسیره پردی، ددې سفرپه سیاسی نتیجوکی له فینلینډ، لتوینا، لایبیریا، پولینډ، سوئزرلینډ، مصراوجاپان سره ترونونه شامل وو. ځینی له دغوترونونو څخه، دمثال په دول له لایبیریاسره ترون صرف د سیاسی ترونونو دزیاتوالی څرګندونه وه څو نورترونونو په سوداګری کی یوزیاتوالی راووست.

دسفرمهمه اودپام ورنتیجه پخپله غازي امان الله خان باندې ددې سفراغیزه وه. افغانسي پاچادهلکتوب راهیسې داصلاحاتو لپاره لیوال و، خوله بهرنی نړی څخه، دلومړي لاس (مستقیم یااصلي) معلوماتونشتوالي دهغه دلیوالتیامخه نیولې وه. دارو پاله نظرې څخه لیدنې اوکتنې هغه، په ژوره توګه نارامه کړکله چې هغه اروپاد خپل هیواد لسه بیرته، پاتیتوب سره پرتله کړ. غازي امان الله وطن ته له ستنید وڅخه وروسته، دیرژرداستقلال په فستیوال کی یعنې د افغانستان دخپلواکی په جشن کی دافغانسي ملکانواومشرانویوه لویه جرګه راوغوښتله چې دغه دول جرګه یوازې په ملي اضطراري حالاتو کی راغوښتل کیده. دغودیادونې وړاوبرجستوملکانو اومشرانوته چې زیاتره له هغوی څخه په غربي کالیوکی نارامه وواوترینه غوښتل شوي ووچې د دغه وخت اوځای لپاره دغه کالي واغوندي، پاچا غازي امان الله خان یوه اوږده ویناوکړه اودخپل سیاسي اوټولنیزواصلاحاتو دپروګرام مهم ټکي یې بیان کړل: په نظر کی وچې له پوسلوپنځوس غړوڅخه مقننه هیئت دټوباسواد وناړینو وافغانسي بالغوکسانودرایوپه واسطه وټاکل شي؛ موروثي منصب باید له مینځه لاړشي اوعسکري خدمت باید دري کاله شي. دغه پیشنهادونه دټولوله خوا تائید شول خوکله چې غازي امان الله خان څرګنده اواعلان کړه چې هغه، اراده کړې ده چې چادري له منځه یوسي (ښځې مخ لوڅې کړي)، دښځوا جباري تعلیمات منځ ته راوړي اوغوښتل یې چې ټول دولتي مامورین په یوې ښځې قناعت وکړي، استاځې چوپ پاتې شول.

سره له دې هم ، ديوه وخت لپاره دغه تـکان ورکوونکي بدلونونه پرته له کوم اعتراض او مخالفت څخه سرته ورسيدل ؛ رېښتياهم زياترو ښاري ځوانو افغانانو دغه بد لونو نه تائيد اووستايل . هرکله چې ملکې ثريا چې دښځو دبو کلکې طرفدارې په حيث ترزياتې اندازې پورې دښځو موقف ته دخپلې ميړه پاملرنې له امله زياته مسوولـه وه ، په ناڅاپي ډول سره خپله چادري په کابل کې په يوې عمومي غونډې کې لرې کړه ،دهغې دغه کړه ديوه سرمشق په حيث په چټکۍ سره دښاردزياتو ښځو له خوا تعقيب شو ، ددې تـرملکې ثـريـا وروسته دښارزياترو ښځو چادريگانې لرې کړې او حتى هغو ښځو هم خپلې پوڅوې دنيمه عجاب لپاره ايسته وغورځولې چې زيات محافظه کارانه تمايلات يې لرل. وروسته له هغې سمدلاسه دېر مختګ ددغه نمايش مخه ونيوله. دسرك دبندو لو په واسطه ونيول شوه چې څرګنده يې کړه چې ارغونې افغانستان بالکل خپل رسم اودود ياد ژوندانه طريقې نه وي پريښې. په ښکاره (شواهدمتضاد اولزدي) د ۱۹۲۸ کال دنومبر په مياشت کې دسليما نخيل غلزيـو يو کار وان هند ته دخپل ژمني ليږد په وخت کې دشينوارو له يوې ډلې سره مخامخ شوچې سليمان نخيل غلزيو ددارومدارانو (ياښايې دلوټما رانو په حيث پيژندلي وي) گومان پرې وکړ . سليمانخيلو مقاومت وکړ او پخوا له دې چې دعسکرو يو ټولي را ورسيږي او غلزي کوچيان ونيسي يو زيات شمير شينواري ووژل شول . خوهغوي وکړای شوچې دخپلې بې ګناهۍ په برخه کې يا محلي قـوماندان ته قناعت ورکړي يا دهغه حرص اقناع کړي او خوشي شول .

پس له هغه زر شينوارو دسنګو خپلو طايفه ( په چا پورې چې وژل شو يو کسانو اړه درلوده) دبلوا لپاره پورته شوه اودچين اوکهی (٭) عسکري پوستې يې ونيولې. دغو برياليتوبونو نورشنواري قومونه منځ ته راوړل او ياغيانو دتورخم او دکې بند رونه ونيول دېرڅې مهماتو زياتې زيرمې يې ونيولې اول، لږ مخالف سره مخامخ شول . خوګيانۍ او ساپيانو چې په دلچسپۍ سره يې هغوي ځارل په

٭ داكمله په متن كې د«كای» په شكل راغلې ده داكمله «كای» نه بلكې كهی ده ځكه توما هغه په متن كې سمه كړې ده . (مترجم)

دي وخت کې په پاخون کې ورګډ شول او يو لښکر چې په زرګونو قبايلي خلک
پکې وو د جلال اباد دښار پر ضد وخوځېده .

افغاني حکومت د دې خبر په اوريدو سره چندان انديښنه ښکاره نه کړه ځکه
چې قبايلي پاخون نه کوم نوي شی نه وو او ځکه چې شينوارو له خپلو زياتو قوي
اړيدواو مومند وګاونډيو سره دوستانه مناسبات نه درلودل . يوازنی عمل چې
سرته رسيدلی وهغه د کابل له لښکر کوټ څخه دد ګروال محمود خان يـاور تـر
قومندې لاندې دپنځوسوو عسکر وليږل و . دد غوا لښکرو رسيدنې او شير احمد
خان مذاکر وچې هغه دجلال اباد والي ولاهم پـه شينوارو څه اغيزه ونه کړه او
لاهم يې له ښار څخه دباندي خيمې وهلي وې. افغاني حکومت د يرځند وروسته
درك کړه چې دا يوه خطر ناکه بلوا وه او د کابل زياتره لښکري يې دغازي امان ـ
اله خان دتره لـه زوي علی احمدجان سره ختيځ ته وليږلې چې ده پـه شرقي قبايلي
خلکو کې نفوذ درلوده. پهعين وخت کې حکومت دقبايلي مرستي غوښتنه وکړه يعنې
هماغه خطرناك طرزالعمل ياطريقه چې دمنګلو په بلوا کې تر ينه کار اخيستل شوي و.

له بده مرغه افغاني سوړ ژمی پيل شوي و او قبايلي خلکو هيڅ ليوالتيا ښکاره
نه کړه چې هغه تو پـکونه او حربي مهمات سره راټول کړي چې هغوي ته ورکړل
شوي وو چې دشينوارو په مقابل کې په پوري جګړي کـې ترينه کار واخلي چې
چې ازه ولجه او زياته وينه تويونه يې لرله . داحمد زی غازيو يو مشر غوث الدين
خان ګرديز ته نژدې څرګند شو چې توپکونه راټول کړي چې په نتيجه کی ددې
هرځاي چې د جلال اباد خواته پر مخ ولاړ شي بيرته کورته ولاړ . يوازنی بـل
داوطلب يو غير متحمل سړي وچې بالاخره دغازي امان الله خان دماتی سبب وګرزيده

دکوهستان غرنی سيمه چې مستقيماً د کابل په شمال کی پرته ده دکوهستانې
تاجکوتاتو بې وچې دهغوي جګړه ماري معمولاً نرم مزاجه تاجکوته يو ه څرګنده
استثناده. دلته دکلکان په يوي کوچنۍ قريې کی چې تقريباً دکابل دشمال په شل
ميلي کی پرته ده مشهور داره مار حبيب الله چې په مشهوره توګه يې دسقاو د زوی

په نوم شهرت درلوده ژوند کاوه چې سقاوي ورته دخپل پلار له شغل نه په برخه رسیدلی وه . دسقاو زوی په داسی حال کی چی په افغانی پوځ کسی یی خدمت کاوه دیوه افسر دوهلو په خاطر زندانی شوی و مگر پیښور ته تښتیدلی و چی هلته هغه یو دسماوارد کان دیوي جبهي په توګه دقاچاق ورلو دغلاماکو او نورو مختلفو ورته غیر قانونی نعالیتونو دتنظیمو او لپاره چلاوه. کله چی هغه په ۱۹۲۸ کال کی بیرته افغانستان راستون شو یو ډله لرتماران یی پر ځان را ټول کړل؛ دوي چې دهغه دخورا زیات قوت،مهارت چی په توپک وار ولو کی یی دراوده او دهغه دظالم طبیعت او مزاج ترا غیزي لاندي راغلي وو دهند وکش له خوا د کاروان دلارو مصیبت وګرزیده. (۳)

- دقبایلي مرستی لپاره دغازي امان الله خان دغوښتني او د بې قیده او شرط بښني دوعدي چی ورسره ملګري وه په اوریدو سره نوموړي داره مار کابل ته راغی او هلته هغه ته توپك او په افغانی پوځ کی دیو جنرال رتبه ور کړل شوه. دافغانی پایتخت دبی دفاعی حالت له لیدلو څخه وروسته هغه کوستان ته ستون شو، خپل دغلو دله او یو شمیر نوي پلویان یی راټول کړل او پر ښاربانډي یی یو نا څاپی یرید پیل کړ. که څه هم دهغه دلښکر مجموعي شمیر صرف دري سوه نفر ونه رسیده دایو داسي بسې باکانه حرکت و چی یوازي دجنګ دوزیر عبدالعزیز تند او چټك اقدام او دحربی ښوونځی دشاګردانو کلك ملاتړ ددي حرکت د کامیابی مخه ونیوله.له دولس ورځو جګړي څخه وروسته دسقاو زوي چې دیمی ګولی په واسطه لزتپی شوي وخپل نفر کوهستان ته وایستل ؛

دمخ پر زیاتیدونکي ګډودتیا په ترځ کی دهندوستان حکومت له کابل څخه دخارجی اوسیدونکو په تخلیه کی بریالی شو په کومه کی چی ټول ٥٨٦ کسان په الوتکه کی امن ځای ته تللی وو ـ دادارتفاع، موسم او دالوتکی دماهیئت په پام کی نیولو سره دمهارت یوه څرګند ثبوت و. یوازي یو نفر له منځه تللی وچې هغه یوه پولیندی وه چی هغه دالوتکی دچټکی الوتنی په وخت کې دالوتکی دڅرخ خواته لاړه. (٤)

په دې وخت‌کې دکابل مدافعینو چې له بري څخه زيات دا‌ده وو دسقاو دزوي په تعقیبولو کې یوه اشتباه وکړه چې هغه، یې په خپل تاتو بې کی چې پ، واوروـ کې پټ و تعقیباوه. دلته هغوي په زرګرنو کوهستانیان ولیدل چې سره‌راغونډـ پدل اوله محلي اتل سره یو ځای کیدل اوله‌یوي‌اونۍ‌جګړي څخه‌وروسته هغوي دیوه زیات شمیر کوهستانیانو له خوا محاصره شول او ورباندي فشار راوستل شو چې ځانونه تسلیم کړي.

دې محاصرې کابل بې دفاع پرېښود او د۱۹۲۹ کال دجنوری دمیاشتې په ۱٤ د سقاو زوی او دهغه افراد بیرته خپلوځایو ته ستانه شوی وو. داخل پایتخت تقریباً بې له مقاومت څخه، ونیول شو په داسې حال کی چې‌غازی امان‌الله خان‌او پخپله دشاهی ګارډ پاتې کسانو ځانونه په شاهی ماڼۍ کی خوندی کړل .

په دغه بحران کی دغازی امان‌اله خان تولو عادی خوشبینا نو هغه، پرېښود : تريوې کورنۍ غونډې وروسته هغه دخپل مشر وروړ عنایت اله خان په ګټه او طرفداري‌استعفا ورکړه او په رولس را یس کی چې له اروپانه یې راوړی و له بهارنه وتښتیده چې په‌ګرمي او چټکی سره دسقاودزوی د سپرو افراد وله خوا تعقیب شو. کله چې‌دهغه موټر په یوې بادکویه کی بند شو په پټه، یې تیلفون کړی و، مګر خپله یې په ښه موقـع کـی له واورې راویسته چې له هغو کسانو څـخه مخکښې کندهار ته ورسیزی چې دی یې تعقیباوه ، چیرته چې ملکه ثریا لاړ ومبی په یوی بر تانوی‌الوتـکې کی راوړل شوې شوی‌وه.

عنایت اله خان هغه څرك نه وچی د دغـه حالـت مخه ونیسي ، که چـیرې رښتیا هم وای نودغه حالت مخه به بیخي نیول شوې وای . هغه، دسقاوله زوی سره له دری ورځو مذاکرو څخه وروسته په یوې الوتـکې کی په خپل‌ورور پسې لاړ او دلو تمارې دلې مشر په مؤفقانه توګه شاهی ماڼۍ ته ورننوت . دلته هغـه دجنوری په ۲۷ ، دغازی امیر حبیب اله په حیث تاج ځانته غوره کړ او پیل یې وکړ چې یو حکومت جوړ کړی ـ چې دایو ګران کاروځکه چې شاهی خـزانه

غازی امان‌الله‌خان اوملکې ثریا سره‌انتقال شوې‌وه. خو هغه دخپلې داره ماری له سابقې اوتجربې څخه دخلکو په تهدید ولو او ربړولو کې کار اخیستی واو ددغه دول ګواښونو او اوکړونو له لارې یې وکړای شو چې دکابل له ناراضه اوسیدونکو څخه زیاتې پیسې په زور لاس ته راوړی. (۵)

که څه هم دامشکله ده چې پوه شو چې دواك یو دغه دول انتقال څرنګه صورت موندلی شوای او دا باید په یاد ولرو چې په هغې وخت کې افغانستان تقریباً کاملاً یو زراعتی او مالدار هیواد وچې اقتصاد یې پرمالداری او کرنې ولاړو. زیاترو له ولایتی او محلی مامورینو څخه مازې له کابل‌څخه دلار ښوونو عملی کولو ته دوام ورکړ پرته له دې چې په‌پام کې ونیسی چې دالار ښوونې څوك رالیږی. دغازی امان خان څینې مرستیالان په تیره بیا هغوی چې په افغانی پوځ کې پاتې شوې‌وو راضي شول چې دزیاتو مادی مکافاتو او په آینده کې دامتیازاتو او مرستو دوعدې په بدل کې دسقا وزوی ته خدمت وکړی. خو ملکی حکومت تردې اندازې پورې له لوستو کسانو څخه خالی وچې دسقا ودزوی‌دکابینې یوازې دوو تنو لوستل کولی شول؛ داره مارامیر پخپله مطلق نالوستی (بیسواده) و.

ضمناً غازی امان الله‌خان ته دکندهار د خلکو له خوا په لږ صمیمیت سره هرکلی‌ویلی‌شوی‌و. خو پر افغانی تخت باندې دیوه تاجك دکښیناستلو له مفکورې سره‌حساسیت اوله دې‌سره دغازی امان‌الله خان دمورنفوذیوځای ددې موجب وګرزیده چې هغه‌له‌درانیانو څخه ملاتړ ترلاسه کړي‌اوهغه دغه ملا تړلاهم دمحمد له زیارت څخه دده دخرقې داخیستلواوعوامو ته دهغې دښودلو په وسیله نور هم وهڅاوه. په پای کې غازي امان الله‌خان د درانی قبایلي خلکوله یوه پنځه زره کسیز لښکرسره دکابل په لور سرك باندې شمال ته راوخوځیده:

دې هڅې دبریالیتوب هرامکان درلود. یوازې‌یوې کوچنۍ تاڼې په غزنی کې هغه سرك بند کړچې کابل ته تللی و. هزاره ګانواو وردګو دسقاود زوی پرضد په

جنګ کې ګډون کړی وو، برسېره پردې، دمحرخې غلام حیدرزوي غلام نبي چې
دامیرعبدالرحمن خان اعلی کوماندان وه په شمال کې دغازي امان الله بیرغ راپورته
کړي وا او له یوه لښکر سره چې زیاتره یې په شوروي اتحاد کې روزل شوي وو
مزارشریف ونیولی و. خوپه دغه شیبه کې داپریل په ۲۶، غازي امان الله خان دځینو
دلایاوله مخې چې هغه هیڅکله په پوره اندازه نه وو ویل شوي له خپل پرمختګ
نه لاس واخیست او کندهارته یې دبیرته راګرځیدوامرورکړ. هلته آوازې داسې
وې چې غازي امان الله خان ته خبرورکړشوي وچې ځینې دهغه له نږدې کسانو
څخه دهغه دوژنې توطئه جوړوله یاد اچې پیاوړوغلزیوچې لښکر دهغوله سیمې
څخه تیریده ځانونه چمتوکول چې دسقاوله زوې سره یوځای شي. په هرصورت
غازي امان الله خان کندهارته دبیاداخیلوپرځای (چیرې چې دهغه دراني خپلوان
کاملاً بیزاروو) له ښارڅخه دباندې تم شو، خپله کورنی اودشاهي خزانې پاتې
برخه یې راغونډه کړه اودتل لپاره یې افغانستان پریښود.
دپاچاتیښتې دادسقاودزوي لپاره خورا اسانه کړه چې په ټول هیواد کې خپل
کنترول پراخ کړي. په شمال کې غلام نبي داخبرواوریده اوشوروي اتحادته
په شاوته میده. په کابل کې نوموري داره ماردلسوزروافرادوبوګډیامختلف پوځ
برابرکړچې زیاتره یې دکوهستان خلک وو کوموته چې هغه له هغوپیسو نه معاشونه ورکول چې دکابل له سوداګروڅخه په زوراخیستل شوي وې اوپه هغوذخیرو
سمبال وو چې دحکومت په جبه خانه کې موجودې وې. ټول احتمالي رقیبان
داعدام له لارې محوه شوي ووچې په هغوکې دغازي امان الله خان تاسکه ورور
حیات الله خان اوعبدالمجید خان شامل و وا اودغازي امان الله خان دتره زوي
علي احمد خان په داسې حال کې چې په کندهارکې یې دمخالفت اومقاومت
دتنظیمولولپاره هڅه کوله ونیول شواوپه ډیرې بې رحمۍ سره ووژل شو.
خود داره مارامیرقدرت اوواک ترزیاتې اندازې پورې بووهم و. داځکه چې دغه
منطقه ترزیاتې اندازې پورې غیرمرکزي وه اوښارونه تردې اندازې پورې لږاو

خواره واره ووچې يوفردحتی دسقاوه زوي غوندې جدي اوزړه ورهم کولای شول چې دکابل او کندهارد ښاروتوکنترول ټينګ کړي اودپيسوچې له خلکو څخه پهزوراخيستل شوې وې داستعمال لهلارې له برخې برخې شوېو ګناهکارانو څخه يوپوځ جاب او استخدام کړي چې دلوتماري اوهيجان لپاره ليوال وي.

هلته ډيرازڅه موجودوچې دسقاوزوي ته توان ورکړي چې خپله حکمراني پياوړې کړي. هغه په پښتني قبيلوکې کوم دريځ نه درلوده چې دې قبيلوتـرهمدې وخته پورې په جنګ کې برخه نه وه اخيستې خوپه بې طرفی کې يې دسقاودزوي دسقوط عواملولپاره چې حتمي و انتظاروکاږه چې خپل کار سرته رسوي. او په ريښتياهغه کارلادمخه پيل شوې و.

پهفرانسه کې له هغوفرارياتوڅخه چې هغوي پخپله فرانسې ته تبتيدلي وودرو مصاحبانوورونونادرخان ، هاشمخان اوشاولي خان دغه خبرواوريدهاو پهچټکۍ سره له فرانسې څخه اسياته روان شول. د۱۹۲۹ کال دفبرورۍ په ۲۵ ،دپيښور ښارته ترراسيدوورو سته ،هغوي له سرحدڅخه تيرشول اودخوست په ولايت کې د متون افغاني کلا(پوځي) ته لاړل چې دادانغان اوانګليس په جنګ کې د نادرخان دموفقيت صحنه وه. دلته افغاني کوماندان ډګروال نورمحمد خانځان اوخپل عسکردنادرخان په واك کې ورکړل. نوموړي ډګروال دسقاوزوي دلنډې مودې عسکري خدمت په وخت کې دنوموړي داړه مارقومندهورکونکی افسرواودسقاو زوي په پوځ کې ورته داعلی کوماندان پست وړاندې شوې وکوم ته چې نورمحمد ځواب ورکړچې هغه به دسقاوزوي ته دده پخواني ځانګړې برتبه ورکړي چې که هغه خپل مسلك ته مخه کړي اوله خپلوملګروسره بيايوځاي شي.

ددغه هستې په شاوخواکې نادرخان يولښکر چې له منګلوڅخه جوړشوي و راټول کړ. ده په منګلوکې دخپل منځګړتوب راهيسې محبوبيت دراودچې ددوي له خوابې ديوې بلواې ترڅ کې کړي وچې هغوي په ۱۹۲٤ کال کې کړې وه. همدا رنګه له هغه سره دخپل وروړشاه محمود له خوا هم مرسته و شوه چې هغه پسه

افغانستان کې پاتې شوي واودخوست دوالي په توگه یې په قبایلي خلکوکې زیات ملگري پیدا کړي وو. نادرخان له خپل لښکرسره دکابل خواته مخ په وړاندې لاړ اوپوازې هغه وخت په‌شا تمبیدوته مجبورشو کله چې دهغه په قواوو کې ددښمنو خیلونوترمنځ جگړه پیل شوه. دپخواني دښمنۍ په هیرولوکې دقبایلي خلکو له عادي ستونځې څخه د سقاوزوي گټه واخیستله. دهمدې دلیل له مخې دنادرخان دبل پرمختگ مخه ونیول شوه.

دافغانستان لپاره دنیکمرغۍ ځای وچې نادرخان یود کلکې ارادې خاوند و. هغه بیا یو لښکرراټول کړچې له منگلو، ځاځیو اوځدرانو څخه جوړشوي و او داحمدزیو او دتوتاخیل وزیرو دلې هم ورسره وې. له دغوسره‌چې کوم خلک یوځای شوي وو هغه د دېورند دکرښې اخوا څخه ددرویش خیلووزیرو یوه قطعه وه چې تقریباً یوزردرویش خیل وزیرکښې و وچې دایوې زړه پورې زیاتوالی و او غالباً د پښتنو دتولو جنگیالیو څخه خورازیات‌ماهر جنگیالی و و.

داځل پرمختگ بریالی و. په یوشوجگړوکې دسقاو دزوي لښکروته له ماتې ورکواوو روسته، قبایلي خلک چې له دوی سره وزیرهم وو چې دخپل مشراله نو ازخان ترقومندۍلاندې و وچې مخکښې دلې ته یې لارښوونه کوله دیوې لنډې مودې لپاره د سقاوزوی اودهغه یوڅو تنوپلویانو په شاهي ماڼۍ کې دفاع وکړه او پرې یښود له چې قبایلي خلک‌را ننوزي خو پس له هغه یې چې دسوځیدونکي ښار په لوټولو کې دپاچاهي خوب برباد ولیدې‌دي یاغی دکوهستان غرونو ته چې پر آس سپور وپه‌تراټ لاړ.

د پنځو ورځو لپاره کابل دقبایلي خلکو په‌لاس کې پاتې شو چې دوی هر څه چې دسقاوزوی ورته پام نه وشوی راټول کړل. وزیروته په نښته کې د دوی دبرخې له امله د«زرینوپنو»وعده ورکړل شوې وه او دپښودوعدې دنه پرځای کیدو په صورت کې هغوی نور هرڅه، چې ارزښت یې درلوده واخیستل. دکابل ښاریان چې د دغه غمجنې پیښې په واسطه یې حسه شوی وو د لوټماری په مقابل کې

مقاومت ونه کړ او هلته لږ وېنه تویېدونه موجود وه

د اکتوبر په ۱۶، نادرخان د قبایلي خلکو او ښاریانو د خوښۍ په حال کې ښار ته ننووت چې د لومړنیو خلکو ارمان یې وایست او وروستني خلک د انارشۍ په وسیله له منځه لاړل. په سبایې په یوه لویه جرګه کې قبایلي خلکو او دغسې څرګند و یادیاد ونې ورکسانو څنګه چې په کابل کې پاتې شول نادر خان ته د تخت یا پاچاهۍ پیشنهاد وکړ او هغه ومنله. یو څو ورځې وروسته دسقاو زوی د ښېلي دوعدې پر اساس خان تسلیم کړ. وعده ماته یا تر سره نشوه او نوموړی داره مار په څرګند دول ووژل شو چې په دې کار کې نوی پاچا ګرم نه واو په وس کې یې نه وه چې د قبایلي خلکو مخه ونیسي یا د دغه داره مار دوژنې لپاره د هغوی له غوښتنو څخه سر وغړوي. په دې توګه د داره مار امیر له مرګ سره افغاني اردو ړپای ته ورسیده ـ غازي امان الله خان په ایټالیا کې یو پناه وړونکی یا مهاجر و او تخت بوځل بیا د درانی محمدزیو که څه هم د دې څېل له بېلې ښاخې څخه دی لاس ته ورغی. انقلاب پر هیواد باندې یوه ژوره اغیزه وکړه او ستونزې یې منځ ته راوړې چې صرف اوس نه احساسیږي: دا تر یوې اندازې پورې د عکس العمل یو بری و او نوی حکمرانانو که څه هم شخصاً له ټولنیزو او سیاسي اصلاحاتو سره مینه لرله هغوی له انقلاب څخه یو پند یا عبرت اخیستی و او مصمم وو چې په خپل هیواد کې په احتیاط سره د پرمختګ په لور ګامونه اوچت کړي. بر سیره پر دې د نادر شاه د تاجپوشۍ مراسم په هیڅ دول سره د زیاتو افغانانو په نزد ملي او په زړه پورې نه وو. هلته په افغانستان کې یو شمیر نور خالک هم وو چې هغوی د شاهۍ وراثت یا جانشینۍ د اصوالو پر اساس د تاج او تخت زیاتې غوره ادعاګانې درلودې چې په دغو خلکو کې د برومند امیرحبیب الله زامن او د امیر دوست محمدخان مستقیمه اولاده د واړه شامل وو. زیاتو ځوانو ښاري اوسېدونکو په دې عقیده درلوده چې نادر شاه «خپله زیره (اداره) د ملایانو په لاس کې ورکړې وه»•

---

• په پښتو کې یو متل دی چې وایي، «زیره زما واک یې د ملا.» مطلب دا چې زیره د نادرشاه هم واک یې د ملایانو.

داود غازي امان الله خان د اصلاحاتو په شدیدو او ناکامیو باندې پړه
اوڅوړول شول. لاتر اوسه پورې ډېر په عقیده دي چې یحیی خېل په بوږنځي کې
دانګریزانو دلاس اله و وچې غوښتل یې غازي امان الله خان چې له انګلیس څخه په ویره
کې و بې برخې کړي یا یې وشړي؛

په نتیجه کې نویو حکمرانانو په احتیاط سره عمل کاوه. نورنو هغه ورځې
تېرې وې چې غازي امان الله خان به په بازار کې قدم واهه او چاپه ورته پام نه
راګرزاوه؛ دامیرعبدالرحمن خان مخبران او خفیه پولیسان بیا بیرته
ستانه شوي وو. خو که څه هم په کلکه سره د پرمختګ مخه، نیول شوې وه؛ د
تېرې زمانې ټولې ګټې له لاسه وتلې نه وې؛ بهرني کتونکي یا سیلانیان او کار-
ګران زر افغاني پایتخت ته راستانه شول، ښوونځي چې دسقاوزوي تړلي وو بیا
پرانستل شول او ځېر که زده کوونکي داوړو تحصیلاتو لپاره خارج ته واستول
شول. نوي حکمرانان، رښتیا هم دغازي امان الله خان په اندازه لیبرال و وجې
هیواد پرمخ بوزي؛ خوهرڅنګه دهغوي موقف کم پاینده او بې اعتباره و، لومړي
داستحکام مساله رامنځ ته شوه.

بلواد زیاترو غربي سیاسي کتونکو پام دخان خواته راواړولی وچې زیاتره
له هغو څخه ملامتي دملایانو پرهغو مشرانو باندې اچوله چې پرهغوی باندې یې
پګړي تړل شوي وي. دمثال په دول، دارنالد تاینبي (Arnold Toynbee) خونه دي
یو باصلاحیته شخص دامان الله خان هغه چې پر افغانانو باندې غربي دریځې
اوکالي تحمیل کړي د یوه خوروالي په سهوه وګڼله چې هغه ته دتخت او دپاچاهي
له لاسه ورکولو په بیه تمامه شوه.»(٦)

پخپله افغانان له دغه نظر څخه کرکه کوي اولاتر اوسه پورې په زړه ورتیا
سره له دې نظر څخه دفاع کوي او په دې عقیده دي چې انقلاب دبرتانوي جاسو-
سانو په وسیله دیوه پاچا دله منځه وړلو په مقصد په ګوند وشو چې هغه له شوروي
اتحاد سره دهغوي دهوسایي لپاره زیات صمیمي و. هغوي دامنی چې دشوربازار

حضرت صاحب او د جلال آباد د شیر اغا په شان مهم او وتلی ملایان دغازي امان‌الله خان پر، ماته کې مهم برخه اخیستونکی وو چې هغوي د خپل نفوذ له لاري پر- پښتو دلو چې دغلزیو په څیر پیاوړي قبیلې د هغو مرستې ته راشي؛ مګر د هغوي په دي نظر باندي چې دغه کسان د قضیې لوم‌ړنی محرکین وو ملندي وهي.

دا باید هیره نشي چې افغانان لا تر اوسه پوري له انګلیس څخه خپله ویره او بیزاري په ذهن کې دیوي خاطري په حیث ساتي او لیوال دي چې د تیري او اوسني زماني دبد مرغیو پېره پر انګریزانو واچوي . له بلي خوا دغه یو اړ- خیزه قضاوت یا فکر دا احتمال له منځه نه وړي چې انګریزانو په دي مساله کې لاس درلوده؛ رښتیا هم په پیښواو حالاتو پوري مربوط زیات شواهد موجود دي چې افغاني تړ ر تائید کړي. په دي کې څه شك نشته چې برتانوي مشران په تیره بیا هغه مشران چې په هندوستان کې اوسیدل په سرحدکې له سره کمیسو ( سر خپو شان ) څخه دغازي امان الله خان د ملا تړ اوله (U.S.S.R ) سره د هغه د همکاري په برخه کې اندیښمن وو یا دا چې هغوي شخصاً له هغه څخه د افغان - انګیس په جنګ دهغه د رول له امله او په هندوستان کې د هغه دفعالیتونو امله چې ار و پاته بې دسفر په وخت‌کې سرته رسولي وو کرکه کوله .

په رسمي ترګه د هندوستان حکومت د انقلاب په تړله موده کې جدي بې طرفي وساتله او نه یې یو طرف او نه یې بل طرف ته دمرستي ور کړلو اجازه ور کړه په‌سرحدکې په برتانوي مامورینو باندي «زیات فشار راوړل شوچې دقبایلي خلکو دخود سرانه اقدام یاعمل مخه ونسي.» ( ۷ )

هغه د سقاو زوی ته ګټه رسوي څکه چې غازي امان الله خان د دیورند د کرښي په انګریزانو پوري چې مربوطي برخي په قبیلو کې په تیره بیا په اپریدو او اورکزیو کې تر هغو قبیلو چې په افغانستان کې‌وي زیات‌شهرت او محبوبیت درلوده؛ هغه څه، چې انګریزانو ورته د «خود سرانه عمل» په ترګه اشاره وکړه د قبیلو چمتو والي وچې دغازي امان الله خان مرستې ته ورشي . رښتیا هم

اپریدو او اورکزیو لاړومبی پر یکړه کړی وه چې دبرتانوی امرونو پر وانـه ساتی او افغانستان ته داخل شی، کله چې دهغوی پلانونه دشیعه اوسنی اورکزیو ترمنځ دجګړي دپیل په واسطه شنډ شول او توریولـه خپلو هم مذهبانو مرسته وکره. ځینی اپریدی په دې عقیده دی چې دغه دقبیلو خپل منځی جنګ ته د انګریزانو له خوا الهن وهل کیده چې غازی امان الله ته دمرستی درسیدو مخه ونسیی او ځرګندوی چې نامتو محرك ملاموړمند اخونزاده په عمومی ډول په سرحدکی یو برتانوی جاسوس ګڼل شوی و. (۸)

دخبری حقیقت هرڅه چې وی، پهدی کې شك نشته چې غازی امان الله خان ته دمرستی درسیدو په مخنیوی کی دانګریزانو عمل دافغانی پاچا لپاره یو مصیبت راوړونکی کارو. دننهپههندوستان کې ددغه پریکړی پهنتیجه کې یو ستر تحریك منځ ته راغلی و. مانادا چې «دغازی امان الله خان دزمانی په یاد» په زیاتره ښارونو کې په بمبئ او لاهور کې ستری غونډي جوړې شوي او یو شمیر تقاضا کونکو له حکومت څخه اجازه غوښتله چې په غونډه کی ګډون وکړی. په پای کی حکومت د۱۹۲۹ کال دجنوری په ۷، له خپـل امنیتی قوی څخه مرسته وغوښتله چې په هندی اخبارو-نوکې پهجرم کې دلاس لرنی دهرډول تورونو د ـ ځرګندیدو مخه ونیسی.

دخارجی خبریالانو لازمخه نیول شوی و. دجنوری په ۱٤، پراودا (Pravda) او ایزویستیا (Izvestia) لـکه څنګه چې توقع کیدله پرانګریزانو باندی تورولګاوه؛ پههمدی ورځ المانی ورځپاڼی دویچې تاګسځایتونګ (Deutche Tagezeitung) هم انګریزان تورمتی کړل او په سبایی ددیس دیباتس (Des Debats) ورځپاڼی هم انګریزان تورمتی کړل. دنظریو دغـه استثنایی یووالی تریوی اندازی پوری ددی حقیقت دځرګندیـدو په واسطه منځ ته راغی چې دګروال تی. ای. لارنس (Colonel T.E.Lawrence) هم دا اوس دوانه په کلاکي چې پهوزیرستان کې ده ځای پهځای شوی و. درسمی مقاماتو پرتینګار باندی چې دغه سړی چې دانګریزانو له خوا ارمشهور و استاځو څخه و «دیوه تا پیست په توګه په دفتر کی» خدمت کاوه په

اسانی سره باور کول مشکل دی ، ځکه چې که څه هم لارنس وروسته له هغه نه ځان دایرکرافتسمین شاو (Aircraftsman shaw) په توګه ښکاره کاوه مګر برتانوی مامورین د هغه له اصلی هویت څخه خبر وو .

افغانانو د هغه په ماموریت کې څه شك نه درلوده. هغوی لا تراوسه ادعا کوی چې هغه په بدله بڼه د یوه روحاني سړي په توګه چې په یوه سپینه کچره باندې سپور وو، په ټول افغانستان کی وګرځیده چې دغازي امان اله خان په مقابل کې مخالفت تنظیم کړي. همدغه راز په هندوستان کې هم خپور شوي وچیري چې پـه یوه بدمرغـه ملاسید پیر کوم شاه باندې په لاهور کی یو جمعیت هجوم راوړ ي وچی دا جمعیت له دې څخه داده وچې هغه لارنس وچې په بدله بڼه کې ځرګند شوي و . د ۱۹۲۹ کال دجنوري په ۲، دغازي امان اله خان لرزنده پامتزلزل حکومت دهې افواهد (جهاني سترجاسوس دګروال ټي.اي .لارنس ) دنیونې لپاره دانعام دوړانـدې کولوپه واسطه رسمي اعتبار ورکړ.(۹)

ښایي حقیقت نـاڅرګند پـاتي شي .دریوولـــت ان دوېزرت پـه نـوم (Reuolt in the Desert) (بلوا په صحراکې) دا ثر خپرونې لارنس مشهور کړي وا وهغه ګوښه ګیر اوغیرعادي سلوك په دغه شهرت کې زیاتوالی راوست . پـه اسیـا کې عجیبه بریالیتوبو نواو پرمختګونو اودلارنس د ماناومفهوم لرونکی فعالیت کیسې لادیر پخوا په نه تلافي کید ونکي ډول دافساني بڼه غوره کړې وه . دهغه له مرګ څخه کلونه وروسته په رښیتنې توګه ربوټ ورکړل شوي وچې هغه په اورمچی (Urumchi) کی دسیسه بازی کړې وه ؛ لاهم وروسته دونتز (donetz) دتخریبـکاری په موده کې چې محـکمه یې په شوروی اتحاد کې روانه وه تورن سړي اعتراف وکړچې هغوی ددګروال لارنس لپاره کار کاوه ، دغه ډول اعترافات دستالین (Stalinist) دتصفیې ددورې په موده کې زښت ډیرز یات وو .

خودانګریزانو په مقابل کې دافغانانو تورونه دلارنس ترو جودزیـات محکـم ښستونه جوړوي . دې دلوېې بریتانیې دمحافظه کار حکومت په مقابل کې مخالف

او دپارسي یاپښتو په برخه کې یې پوهـه لږه وه . بلوا اکثراً د یوه پـراخ قبایلي پاڅون په توګه بیانیږي ؛ خو په حقیقت کې یوازې شینواري په قوت سره راپورته شول که څه هم څه موده وروسته له هغوي سره خوګیاڼي، ځینې غلزیې او له تولو سیمو څخه باغیان یوځای شول . بلوا له سنګو خیلو سره چې ترډیره حده دشینوارو دقبیلې شرقي برخه ده پیل شوه او یوه برخه چې له برتانوي سرحـدي مـامورینو سره په مستقیماً تماس ولری . دغو شینوارو خپله جګړه چې علت یې دغـازي امان اله خان تو انیز اصلاحات په تیره بیا دچادری دله منځه وړلو لپاره دهغه هڅـه وه اعلام کړه چې دایره عجیبه دلیل راوړنه ده ځکـه چې شینواری ښځې معمولاً مـخ لوڅې دی :

یوپرمختنګ چې په قبیلو کې یې کړکه اوخپګان راپیدا کړ هغه په سرحدی قبیلو کې دملکي، ژر باله څیرې سره دزرګونو عکسونو خپرونه وه چې په ډیر مهارت سره دیوې بربندې ښځې پرته باندې ایښودل شوې وه او شاوخوا یې دناربنولهخوا نیول شوې وه چې خارجي کالي یې اغوستي وو . هلته څه شواهد نشته چې دغه عکسونه په برتانوی جاسوسي سازمان پوری وترو پرته له دینه په هماغه وخـت کې ددغوعکسونو د تولید او لپاره دتخنیکي سامان برابرول دهر افغان له قابلیت او وس څخه خارج واوله دغه دول جعل کاریګانو څخه په زیاته اندازه په خوش باور رواوبی تعلیمه قبایلي خلکو کې استفاده شوې ده . زیات کلونه وو تیر شوی چې پریږې هغې کې په زرګونو رسالې لـه برتانوی الوتکو څخه دسره کمیسو (سرخپوشان ) دغـورځنګ دبد نا مولو لپاره خپرې شوې . له پاس څخه دغو پیغامونو یوه څرګندونه در لوده چې څدای بښلی ولیان لاسلیک کوونکو ته یعنی دخیالی ملایانو یوی دلی ته څرګند شوی و وچې هغوی ته راپوروور کړی چې سره کمیسو ته الله تعالی په سهك نظـرګوری او باید دحقیقی معتقـد ینو له خوا له منځه لاړ شي . (۱۱)

همدا رنګه هلته په دی کې هیڅ شك نشته چې دسقاوزوی په برتانوی سیمه کې زیات وخت تیر کړی وچې یوڅه موده یی په برتانوی زندان کې تیره شوی وه .

هغه دشینوارو له بغاوت څخه رومبی په بیره له پاره څنار څخه افغانستان ته راستون شوی واو هغه بنه مجهز راغی؛ هغه ۳۰۳ تیرپاك په کرمو چې دهغه پلویان سمبال وو هغه دافغانی لښکرو تر وسلو خورا ښه وو. په کابل باندې دسقاو دزوی دبرید په ترڅ کې په کرم کې چې زیاتره جنګ کوونکو دبریتانیې دسفارت په شاو خوا سیمه وکې ځای ونیو، داره مارسره له دې چې د «غازی» لقب یې غوره کړی وله کافرانو سره زیات محتاط و. سفارت چې په سلو ګونو مرمیو ویشتل شوی و، ځان تر داره مارانو زیات له شاهی لښکرو څخه په خطر کې ولید.

افغانان دانه ردوی چې دبلوا بریالیتوب تر بوې اندازې پورې حتماً د متنفذ و ملایانو دبرخې لرلو له امله وچې هغوی ویریدل چې د اصلاحاتو په نتیجه کې به خپل ځانګړي موقفونه له لاسه ورکړي. په همدغه دوره کې په ټول افغانستان کې دا آوازې خپرې شوې چې افغانی نجونې چې احیاناً د زده کړې لپاره ترکیې ته لیږل شوی وې په حقیقت کې جرمنانو ته ورکړل شوې وې. دغه آوازې ددغه تائید او ادعا په شان چې افغانی ښوونځی د کافرانو دمنځ ته راوړلو موجب ګرځیدل او داچې غازي امان الله خان په پټه سره دیو بت عبادت کاوه یې له شك څخه دملایانو له خوا خپرې شوې وې او دهغو کسانو له خوا چې باور کیده چې ددینداری احساساتو و ربانده زیاته غلبه کړي وه. په هرحال دابايد په نظر کې ولرو چې دکابل خلکو په پاڅون کې برخه وانخسته او ښوونځی سمدلاسه دنادر شاه له خوا بیا پرانستل شول او دغازي امان الله خان ددریشی یاد جامو اصلاحات چې د ټاینبې او نورو له خوا ورته داولیت حق ورکړ شوی دی یوازې په پغمان کې په شاهی باغ رانو باندې تطبیق شول. ریښتیا هم افغانستان چې هغوی په تینګه سره دخپلو پتکیو یا اصلی جامو طرفداردي ددغو دول اصلاحاتو منلو ته چمتو نه دي؛ له امان الله خان څخه ډیر دمخه دمتنفذینو تعلیم یافته وو او ښه منو افغانانو قره قلی خولی یا غربی شپو خولی او غربی جامی غوره ګڼلی وی او ترننه ورځی پورې یې غوره ګڼی.

له یوې کمزورې ورېو څخه
دیوه غره لپاره رسی‌یا یوه
چپه جوړیدای شی.

(پښتو متل)

# شپاړسم څپرکی

## د نړیوالو جنګو نوترمنځ

دافغانستان نوی حکمران نادرشاه که څه هم جسماً کمزوری وخوهغه یو داسې سړی وچې زیات قابلیت یې درلوده یوقوي مشرو اودټینګې ارادې خاوندو هغه په پنځه څلویښت کلنی کې جګک نری اودسیم په شان مزبوت و. په زیره کسی یې سپین لګیدلی اوڅه ناڅه، دخپل پوځي واك اوتجربې له امله یو نه ماتیدونکی قدرت و. برخلاف دلیبرال غازي امان‌الله خان، هغه یو دیندارسړي وخوبیاهم یومتعصب مسلمان نه واودهغه نظرله اره محافظه کارانه و :

دهغه سترې نیمګړتیاوې دکلك او استبدادي عمل خواته یو تمایل اویوه ټینګه عقیده وه چې هرهغه چادهغه مخالفت کاوه هغه باالفعل دهیوادیو دښمن و؛ دنوې شاهی کورنی یرله اومرنیوکارونوڅخه داوچې ملایان دلاسا کړي چې قدرت یې دغازي امان‌الله له سقوط وروسته په اوج کې و. * یوفرمان صادر شو

---

* شاهی کورنی یوڅل دمصاحبانو یایحیی خیاو په نوم ومولشوه چې داکورنی دغازی امان‌اله‌خان له کورنی څخه جلاکړی، خواوس په‌عمومی دول‌تولو‌محمدزیو‌ته اطلاق کېږی. غازی امان‌اله خان دژوندانه له‌ترخواودردوونکو کلونوڅخه‌وروسته‌په‌پای کی په ۱۹۵۰ کی دې‌حالت ته غاړه‌کیښودله کله چی سوله په هغه څه کی چی له اره یوه‌کورنی جګړه وه منځ ته راغله.

پەدې اساس چې دهږدې رواج یعنې دښځو جدائې یاګرښه توب به په افغانستان کې په حکمې توګه پاتې شي. البته دغه فرمان په ملاوزمه دله کې متعصب اوافراطي ملایان خوشاله کړل چې هغوی له دې څخه خیرووچې دهغوی قدرت ترزیاتې اندازې پورې دافغانې ښځو اومیند وپه ناپوهې کې خوندې پاتې کیده . برسیره پردې مشهورو ملایانو خاص امتیازات ترلاسه کړل؛ دشوربازار حضرت صاحب محمد صدیق په مصر کې سفیر مقرر شواو دجلال آباد شیرآغا نسبتاً دیرمستمري معاش لاس ته راوړ.

که څه هم دغه اقدامات ملایانو ته منلي خوځوانو اومترقي افغانانو ورته په سپک نظرو کتل او هغه یې وغندل. خو پخپله نادرشاه دخپلې محافظه کارۍ سره سره دښځودګوښه توب پلوی نه واودهغه وروښه په دې عقیده .وچې داد هیواد پرمختګ په لارکې یوخنډو .

دپاچا اقدام تردینداری دیرزیات دضرورت نتیجه وه ځکه چې هغه درک کړه چې دیوه ثابت حکومت دمنځ ته راتللو لپاره دمحافظه کارانواو مرتجع عناصرو ملاتړ حتمي و.

نادرخان دیو څه مودې لپاره دآسیایې استبدا دې اوخپل سرو حکومتونو په دود دفرمان په وسیله پاچاهي وکړه. دهغه ځلورو وروڼوته چې لایق وواو کورنۍ ته یې زیاته وفاداري درلوده، مهم مقامونه ورکړل شوی وو؛ دافغانستان حکومت یو کورنۍ ترون وګرزیده په کوم کې چې دنږدې کورنۍ له کنفرانسونو وروسته حیاتي او خورامهمې فیصلې وشوې چې پەدې پریکړه کې نادرخان دانرژي منبع اوهاشم خان دځیرکۍ اوتګما رې منبع وه. خو که څه هم دغو وروڼو پخپلو منځوکې دافغانۍ ځانګړو خصوصیاتو له امله توپیردرلود، یوځل چې به یوې پریکړې ته سره ورسیدل نو بیا یې په عمومي دول یوه متحده جبهه غوره کوله.

دنادرشاه بل اقدام یوه هڅه وه چې افغانی پوځ بیاجوړ کړي .نادر شاه له دهندوستان دحکومت له خوا السزره توپکه دیوه سوغات په توګه ورکړل شوي

و وچې په دغو ټولو کوسره سمبال شوي عسکر د شاه محمود په امر چې په وروستو کې خورا مشهور و او بيا په ټولگيو ويشل شوي وو. ديوه سرتيري معاش په يوه مياشت کې تقريباً دوه ډالره ؤ زيات شو ملکرت (malaKoot) يعنی دعسکرو له معاش نه دهغوی داعاشې دکمولو سيستم له منځه لاړ. کمځه هم دغو بدلونونو دعسکرو په مورال کې يو جزئي ښه والی راوست، دغو بدلونونو ونشو کړای چې عسکري ژوند دسرتيرو په نزد منلي يا په زړه پورې وګرزوي.

سره له دي هم نوي حکومت زرد بلوا ګانو له امله وربريده . د۱۹۳۰ کال دمی په مياشت کې سرزورو شينوارو چې له خپل نوی بريالیتوب نه وروسته زيات ليوال وو، دښمني او مخالفتونه پيل کړل چې دهغوی دخپل بيان پر اساس دمخلوع غازي امان الله خان دداعيې له امله دغيرت او ليوالتيا په وسيله تحريك شوي وو. خو هغه، کارتر اصول زيات په حرص باندې ولاړو. په دې دول بلوا په عاقلانه توګه دبدوور کړلو په واسطه پای ته ورسیده .

دويمه بلوا د۱۹۳۰ کال د جولای په مياشت کې دکوهستان په تاجکو کې دسقاو دزوی ديره تره په مشری پيل شوه. دا يوه ديره جدي مساله وه ځکه چې په دی بلوا کې تاجکو نه یوازې کوهستانيان له ځانه سره درلودل چې هغوی دخپل وطنوال دپاچاهي په دوره کې دېرم او لوړتياد شيهو خوندايدلی وو بلکه هغوي دسقاو دزوی د قوت دملاتړ په حيث په وسلو ښه سمبال هم وو. کله چې افغانی پوځ څرګنده کړه چې ددغه خطر په مقابل کې دمقاومت کولو توان نه لري ، حکومت له قبيلو څخه مرسته وغوښتله. زياتره پښتانه قبايلی خلکو دغې غوښتنې ته مثبت ځواب ورکړ او بلوا په بې رحمانه دول سره وځپل شوه . پس له هغه نادرشاه خپل سياسی مهارت دقبايلی خلکو په هڅولو کې چې خپلو کورونو ته پرته دکابل له لوټولو څخه ستانه شي وښودو چې رښتياهم ديرازښی بی درلود چې لوټ شي.

په هماغه يعنی ۱۹۳۰ کال کې وليدل شول چې شوروی اتحاد دافغانستان پر ټولو اکی باندې تيري کوي چې دا په شلمه پيری کې پر افغانستان دتيري يوازنی

مثال و. دسره پوځ تولګی چې لهسرحد څخه تیرشول او تقریباً څلور پنځه میله په افغانستان کي پرمخ ولاړل په نظري توګه دزاړه بسماچي (BaSmachi) ابراهم-بیلک په لټه کي وو چي هغه د شوروی اتحاد په مقابل کی په یوازې سره جګړه پرمخ وړله اوله افغانستان څخه یې د یوې ادې په توګه کاراخیستنه . بې له شک څخه دروسانودغه حرکت هم دغازیامان اله خان دله منځه وړلوپه برخه کي پوعکس العمل و چې شوروي یانو دخپلو ګټو لپاره یو ګرزاراودانګریزانو لپاره یو-بریالیتوب وګاته . له کابل اولندن څخه تراحتجاجونو وروسته روسان ووتل خو هغوی خپل حد تاکلی و. دبل کال په ترڅ کې دافغانی پوځ تولګیو د شاه محمود خان په مشری ابراهیم بیګ دې ته اړ ایسته چي له افغانستان څخه شوروی اتحاد ته لاړشی اوپه پای کې دغه زوړلیوه په دام کی ولویده .

نادرشاه په هیواد کي چې که ترادارې لاندي نه وراوستل شوی ارام خوو دیو ثابت حکومت دمنځ ته راوړلو کار پیل کړچي دقبیلو ترملاتړ زیات پرځینې دایمی شیانو باندیولاړو .

هغه د۱۹۳۱ کال داکتوبر په ۳۱ یو اساسی قانون منځ ته راوړچی دا قانون غازی امان اله خان له خواپه ۱۹۲۳ کی په رسمی توګه اعلام اوخپورشوی واو نادرشاه له هغه نه کاپی کړی و- دایوداسی سنددی چی په هغه کی جزئی تغیرات راوستل شوی دی اوتراوسه پورې نافذ یادتطبیق وردی .

په دې قانون کی یوه کابینه، یوه دمشرانوجرګه، اویوه اولسی جرګه پهنظر کی نیول شوې وه او تخت اوپاچاهی دنادرشاه په کورنی کی مورثی ګرزول شوې وه . کابینې ته چی له اتلسووزارتونو څخه جوړه شوې وه دحکومت کولوعملی کارورپه غاړه شوی و ؛ کابینه له صدراعظم، داولسی جرګی اومشرانوجرګی له رئیسانود کانواو کرنې له مدیرانواودجنګګ، دولت، بهرنیوچارو، کورنیوچارو، عدلیی، ښوونی او روزنې، روغتیا، مالې، سوداګری اودمخابراتوله وزیرانوڅخه جوړه شوې وه .

اساسی قانون چی پاچایې د اجرایې، مقننې اوقضائی اداروواکدارګرزولی و

دمسلحوځواکونوسراعلی قوماندان کړاو دهغه وجوديي مصئون اوواجب الاحترام اعلام کړ. هغه له دجنګ یادسولې داعلامو لودصدراعظم دتیا کلو، دمامورینو دمقررۍ دمنظورولو اوپه اضطراري حالاتوکې دفرمان پهوسیلهدقوانینودجوړولوصلاحیت ورکړشوی و. دغو اساسي او پراخوصلاحیتونو افغاني مقننه هيئاتته لږ واک مګر مشروتي مسئولیت پرېښووده. ځکه نوپه اصل کې افغاني حکومت د یوڅو محدود کسانو حکومت و اوقدرت دننه دمحمدزیو دکورنۍ دممتازې دلې پهلاس کې و.

نادرشاه محلي اداره د په خپل حال پرېښوده او په هغې کې یې کوم بدلون رانه ووست. هېوادپه پنځوسترو ولایتونو اوڅلورو وړو اعلی حکومتونو وېشل شوی ددغو ولایتونو اواعلی حکومتونواداره کوونکي والیان یانائب الحکومه ګان ووچې هغوی تل دمرکزي حکومت له خوا مقرریدل او دشاهي کورنۍ کلک پلویان وو. دپولیسوامرانو اوعسکري قوماندانانو صلاحیتونه له ملکي امرانو سره وویشل؛ په ځینوځایونوکې په ځانګړې بیاپه جنوبي اوشرقي ولایتونوکې هغوی اساسي واک په لاس کې ټینګ وساته.

دغه ترکیب په حقیقت کې له یوې استثناسره په دې دول په خپل حال پاتې کیږي او کرم بدلون پکښې نه راځي: په ۱۹٤۹ کال کې کابینه بیا جوړه شوه او یوه نوي پهلوره سویه شورا تاسیس شوه. دغه دلي ته چې له شپږو غړو څخه جوړه شوې وه اومشري یې دصدراعظم په غاړه وه داواك ورکړ شوي وچې دپاچا په منظورې هره حکومتي پریکړه وکړي.

داساسي قانون له جوړیدو سره نادر شاه دملي اقتصاد ستونزوته مخ راوګرزاوه چې دکورنۍ جګړې له ناکرارې نه وروسته تقریباً دسقوط په حال کې و. دغازي امان الله خان له تیت و پرك هڅو سره سره، افغانستان په ۱۹۳۰ کال کې لاهم ترزیاتې اندازې پورې یو مالدار او زراعتي هیواد و. هلته صنعت اصلاً هیڅ موجودنه و یوازې نیمګړي لاسي صنعت موجود و او سوادګري یې ډیره لږه وه. په داسې حال کې چې له افغانانو څخه زیاترو ځمکې کرلې یایې خپلې رمې

شاتلي ، تقريباً دهیواد ټول تجارت (پرته له هغه تجارت څخه چې کوچیانو کاوه دشک او هندو سوداګرو په لاس کې و .

په داسې حال کې چې دافغانستان له بهرني نړۍ څخه جلا او ګرېنه پاتې ودغه لږ غوني او ابتدائي اقتصاد کافي و چې نسبتاً لږ نفوس ته هغه څه برابر کړي چې دهغوي دژوندانه سطح و رته اړتیا لرله که څه هم دهغوي دژوند سطح دخوراکي شیانو له پلوه د زیاتو اسیایي هیوادونو دخلکو دژوندانه تر سطې خورالوړه وه .

اوس چې افغانستان له جلا توب څخه راوتلی دي یرمخ په زیاتېدونکې بڼاري نفوس کرار کرار دمحصولاتو غوښتنه کوله چې یوازې دبهرني سوادګري له لاري لاس ته راوړل کیداي شول .

دامیر عبدالرحمن خان دسلطنت ددوري راهیسې افغاني حکمرانانو او حتی د هغه سلف امیر شیرعلي خان تر یوې اندازې پورې هڅه کړې وه چې په هیواد کې دغوبي تکنالوژي ځینې شیان دود کړي. دغه هسڅې معمولاً تیت وپرک او بې پلانه وې او په تیره بیا دغازي امان الله خان هڅو معمولاً دغربي کلتور ترمهمو او ګټورو اړخونو زیات له تظاهري اړخونو سره اړیکې درلودې. زیاتره له هغو هڅو څخه دافغاني حکومت دپوهی نه لرلو په وجهه شنډې شوې وې چې په هغه کې بې علاقګي ، عطالت او دافغاني خلکو محافظ کاري سره یوځای شوې وه .

نادر شاه چې اصلاً یو پوځي سړي و په تنظیم او دسپلین یې ټینګه عقیده درلوده؛ همدارنګه له هغه سره دغربي لارو یوې پراخې تجربې او پوهې تر بل هر ورومبي افغاني حکمران چې دغسې پوهه یې لرله زیاته مرسته وکړه . برسیره پردې دهغه دهرات دتکړه سوداګر عبدالمجید خدمتونو او مرستې ترلاسه کړې وې چې له شوروي اتحاد سره یې په سوادګرۍ کې یوه پانګه برابره کړې وه او هغه چې په نظر کې و چې دافغاني اقتصادي سیاست لارښوونه دشلو نورو کلونو لپاره په غاړه واخلي.

دلوي حکومت یو له لومړنیو اقداماتو څخه دا و چې یو بانک دشرکت اسهامي افغاني په نوم چې (اوس دملي بانک) په نامه یادیږي جوړ کړي چې ددې بانک

پانگه یوسلوشل ملیونه افغانی وي. افغانی یونوي پولي واحدوچې دپخزانی کابلې
روپۍ ځاي یې ونیوه . دو یم حرکت یااقدام داوچې شرکتونوته انحصاري حق
یاامتیازات ورکړي یادتولید په سیمه‌کې شرکتونه ولري . دغه شرکتونه چې په
ځرګنده توګه دایتالوي فاشیزم ItaliaFascism یوتقلیدو ،ددوودلیلونوله مخې
جوړشوي وو. لومړي دلیل داوچې هرهغې څخې چې دتولید دزیاتوالو لپاره‌دیې
دخصوصي پانګې دپه کاراچولواوتقاضاکوله په افغانستان کې دهغې تضمینولیو
ګران کارو .

یولږشمیرافغانانو(په تیره بیا دپښتنوپه منځ کې) په سوداګري یاپه کسبکاري کې
لږه تجربه درلوده اوداپه پیړیوپیړیورواج وچې هغوی به لاس ته راغلې اضافي
پیسې په ځمکه بندولې چې خوندي اوسي. دشرکتونوله خوادانحصاري قدرت
لاس‌ته راوړنه اوددې ترڅنګه داحقیقت چې افغاني‌حکومت دشاهي کورنۍ غړو
دوندو په واسطه اکثرآزیات سهم لرونکي‌وماناداچې پانګه‌اچوونکو دیرلږ خطر
منه. پرواوسره ، دې وضعې په هیواد باندې داد اره‌کړونکې دلې دکنترول
دتینګولولپاره مرسته وکړه اوځرنګه چې هغوکسانوچاچې په‌شرکتونوکې پانګه
اچولې وه هغوې په یوه ثابت حکومت کې یوه ځرګنده ګټه درلوده . (۱)

دنادرشاه‌پر له‌خوارامهم‌اقدامات وڅخه‌دترانسپورټ‌اومخابراتوښه‌کول و. دهغه
دسلطنت‌ددورې په‌پیل کې‌دهرڅه صرف یوڅوموټرې چې یوسړک‌ته ورته وو په ټول
هیوادکې پیداکیداي شواو دحمل‌ونقل‌چارې تقریباً کاملاً داوښانواوخرو په‌وسیله
سرته رسیدې .ټول نیمائي کال به دهیوادزیاتره‌برخې له‌کابل څخه‌کاملا جلاوې
ګله چې به دباد په وسیله رامنځ ویدلې و اوورې لارې‌بندې کړې اوسیلاوونوبه
ابتدائي پلونه له منځه یوړل . که څه هم د امان اله خان دسلطنت ددورې په
ترڅ کې دترانسپورټ دښه‌کولو په برخه کې اقدام شوي وخودادتل په شان له
هغوپروژوڅخه مرکب وچې په هغوکې ښه غورنه وشوي اودهغوپه تطبیق کې
له بې پروائي څخه‌کاراخیستل شوي ولکه دکابل ـ پغمان داورګادي پټلۍ ناکامه

ساختماني پروژه . نادرشاه په عاقلانه دول تصمیم ونیوه چې افغانستان باید د ورو
ګادي له زمانې څخه ورتیرشي اودموترو په ذریعه دحمل ونقل پرموضوع باندې
ژورفکروکړي . یوه دهغه له لومړنیو پروژوڅخه له کابل څخه دهند وکش دپها
سه ترمزارشریف پورې دموترلپاره دسړك جوړولو پروژه وه چې زیات شمیر
کارګران یې لرل .(۲)

هغه ښوونځي چې دسقاودزوی له خوا تړل شوي وو په دې وخت کې بیرته پرانستل
شوي وو. د سقاوزوي کوم دلیل نه درلوده چه په نوروکې دې یو مهارت ته
انکشاف ورکړي ځکه چې هغه پرته له د غه مهارت څخه خپل ژوند پرمخ
بیولی و. دیو شمېردې لپاره خارجی ښوونکی وابستل شول اوتو ل تعلیم په
دري او پښتو ژبو ور کړشو، خو دغه ژبنی سوچه تـرب د افغانی لایقو ښوونکو او
دکتابو نو دنشتوالي (کمبود) له امله زړ پريښودل شو. دحبیبې او غازي عالی ښوونځیو
دانګلیسي ژبې استعمال ته مخه کړه اوبیایې له هندوستان څخه ښوونکي
استخدام کړل ؛ د استقلال ښوونځي فرانسوي ښوونکی استخدام کړل او دنجات
ښوونځي یو څو المانیان راوستل. (۳)

له دغو تعمیری حرکتونو سره سره دنوې شاهي کورنی موقف سست پاتې شو
دازیاتو افغانانو ته په ناکراروونکې توګه څرګنده وه چې واکمنې کورنۍ دیو شمیر
نورو په پرتله دتخت او پاچاهۍ چندان ټینګه ادعانه درلوده؛ که څه هم داکورنۍ د
نولسمی پیړۍ د بارکزیو له پښتهوه، دې کورنی خپل دنیکونو شجره ترامیردوست
محمدخان پورې نه باکې دهغه ترورور سلطان محمدپورې را رسوله چې په هیڅ
صورت سره په افغانی تاریخ کې قهرمان نه و. برسیره پردې امان الله خان د هغه
له نامنظم یاعجیبه تمایلاتو سره سره منلی و په تیره بیا په ښاري ځوانو خلکو کې چې
دهغه طبیعی مهربانی یې دنادرشاه ترکلکې بې علاقګی څخه غوره ګڼله

دنادرشاه بی‌نومتیا یا په خلکو کې دهغه دنامنلیتوب ستردلیل دا آوازه وه چې
هغه دانګریزانو ګوډاګی و. دا آوازه لـږ دحقیقت پربنسټ ولاړه وه مګرد یوه

اسیابي بازار په فضا کې حتمایق اکثراً دافراه په مقابل کې کمزوري دي. په دې کې څه شك نشته چې انګریزانو نادر شاه هم تر امان‌الله‌خان او هم د سقاو تر زوی زیات آرام ګاوندی ګاڼه او دهغه د حکومت بې ثباتي داماناور کوله چې بنا یې هغه دخارجي فشار په مقابل کې زیات حساس وي.

مګر نادر شاه او دهغه وروڼه دژوندانه له پیل څخه له انګریزانو څخه په ویره کې وو، نادر شاه د(جنګي دلي) مشرو کړمه چې انګریزانو د انګلیس - افغان د ۱۳۱۹ کال د جنګ مسوول وګڼله او برسیره پر دې یې دهغې جګړې پرمخې انل یې هم مسوول وباله.

په هرحال، هلته داسې شواهد او قراین موجود وو چې افغانستان شکمن و، بریښیدل په افغانستان کې د انګریزانو نوی سفیر ریچارد میکونا چي ( RichardMaconachie ) چې په رومبي یې د کومې په دوره کې دسیاسي افسر په توګه خدمت کړی وله نادر شاه سره ډېره اوږده مرکه کړې وه پخوا له دې چې نادر شاه دسقا دزوی پرضد د خپلې بریالۍ جګړې لپاره افغانستان ته داخل شي. انګریزانو چې امان‌الله خان ته بې چې له سختو ستونزو سره مخامخ وهیڅ شی ور کړی له وو، لس زره توپکه او یو لکو اتیا زره سترلنګ پونده نوی رژیم ته په بسپنه ورکړي وه. هغه څه چې لا هم زیات مهم وهغه دهیوږندنه کرښې په انګریزانو پورې دمربوطې سیمې د پښتني قبیلو په مقابل کې په افغاني عنعنوي سیاست کې بدلون ګڼلد بدلون و.

۱۹۳۳-۱۹۳۰ کلونه په قبایلي سیمه کې دا ړو دوړ کلونه وو حتی دې دیوي سیمې لپاره چې پخپله د تشدد عنعنه لوی هم دزور زیاتي کلونه وو. سره کمیسو (سرخپوشان) د عبدالغفار خان او دهغه ورور ډاکتر خان صاحب په مشرۍ زیات پاویان په تیره بیا په مومند واوابریدو کې پیدا کړل. بریدونه ډیر زیات او نورهم سخت شول چې له منځه یې یو لشي او په جګړو کې یې کومو کې چې په دغه بریدونه کله کله زیاتیدل قبایلي خلکو په زیاتیدونکې توګه مهارت او نکرو توپ ونبوده. په ۱۹۳۱ کال کې یو قبایلي لښکر ونبوه هم د

پېښور ښار و نیوه او د هوسا عسکرو تر را رسیدو دمخه یې اردوګاه ګلا بنده کړې وه. دهغې پوځ واحدونو د نیمې پیړۍ له کالکې سرښیندنې او مېنې نه وروسته یوه ناوړه خواشینې ښودله. په برتانوي ښځو باندې هغه وخت بریدونه رامنځ ته شوي وو کله چې د ښځو په مقابل کې دقبایلي خلکو عنعنوي نجیب اخلاق کمزوري شو چې په تېره زمانه کې دد غې پېښې په باب څه اورېدل شوي نه دي.

کومې جزاګانې چې قبایلي خلکو ته دهغوی ددغه راز عملونو له امله ورکول کېدې دهغو په نتیجه کې قبایلي دې ته اړ شوې چې له کابل څخه مرسته وغواړي، خو داخل هغوی ته په سرې وضعې سره توصیه وشوه چې له انګریزانو سره سوله وکړي. (٤) که څه هم د زیاترو افغانانو له نظره د سیاست دغه بدلون د نادرشاه دبې وفايي ثبوت وخواصلي دلیل دهغه اګاهي وه چې نوې سلطنتي کورنۍ بې ثباته وه او بل دلیل دا و چې که چېرې قبایلي پارول شوي وای انګریزانو نسبتاً په اسانۍ سره کولای شول چې د دې کورنۍ دله منځه، وړلو لپاره زمینه مساعده کړي.

په هر صورت، دډیورنډ د کرښې په باره خوا کې په پېښور کې د نادرشاه لاس ته لرنې تر زیاتې اندازې پورې په تېره بیا د ځوانو او تعلیم یافته‌وو افغاني نیشنلستانو په منځ کې چې شمیر یې مخ پر زیاتید وو خپګان منځ ته راوړی و. دغه خپګان د ۱۹۳۳ کال د جون په میاشت کې واقعې بڼه غوره کړه کله چې دمحمد زیه وروڼو تر ټولو مشر وررور محمد عزیز خان چې د جرمني په سفارت کې یې دافغاني سفیر په توګه خدمت کاوه، په ګولۍ وویشتل شو او په برلین کې په افغاني سفارت کې ووژل شو. قاتل یو ځوان افغان کمال سید و. دی دنجات له عالي ښوونځي څخه خلاص شوی و او دلږ وزده کړو لپاره جرمني ته تللی وو. دقتل دلیل یې د محمد زیو له خوا د شرقي قبایلو غولونه وه. دهغه له څرګند و عصبي تمایلاتو سره سره هلته د شک کولو لپاره کوم دلیل نشته او هغه څه چې هغه وویل رښتیاو.

دیره موده لا تیره شوې نه وه چې یو بل زده کوونکي چې هغه هم دنجات دښوونځي و ، په کابل کې دانګلیستان سفارت ته داخل شو چې هدف یې دانګلیستان دسفیر وژل و. که څه هم دهغه بې باکانه حمله خپل مقصد ته ونه رسیده ، ددې حملې په نتیجه دسفارت سر کاتب او دوه نور متګاران ووژل شول . دغه حالت حکومت ته دبرنس ، مکناتن او کیو ګناري دوژنې ناوړه خاطره ورپه یاد کړه . قاتل سمدلاسه اعدام شو او دهغه دوه دیرش تنه ملګري زندان ته ولیږل شول چې هلته هغوی دځوارلسو کلونو لپاره تیروانه یې الانو ته د «برتانوي بند یانو» په توګه ور پیژندل شوي وو .

دتشدد دغه څپه د۱۹۳۳ کال دنوامبر په ۸ د یوه تجلیل په ترڅ کې خپل اوج ته ورسیدله چې په دې تجلیل یا جشن کې د شاهي ماڼۍ دلو یو په میدانونو کې دکابل دښوونځیو ترمنځ دفټبال لوبې هم شاملې وې. کله چې نادر شاه میدان ته داخل شو ، یوه لوبغاړي چې هغه هم دنجات په ښوونځي کې یو شاګرد و په ناڅاپي ډول رامخ ته شو او په پاچا باندې یې په یو څرخي تمانچې سره دزې وکړې. ګولۍ دنادرشاه په اوږه او خوله باندې لګیدلې وې. هغه سلطنتي لوڅه یوړل شو او هلته پرته له دې چې بیا په هوښ راشي مړ شو.

اکثراً ویل کیږي چې قاتل دمحمدزیو پر ضد دتوطيې یوه برخه وه چې د دنجات په ښوونځي کې جوړه شوې وه. خو که څه هم دغه دری واړه قاتلان چې شاګردان او دنجات له ښوونځي څخه وو چې ښوونکي یې جرمنیان وو د بر احتمال لری چې دپاچا قاتل دیوه شخصي ظلم په واسطه هڅول شوی و. دهغه دوژنې له ورځ یو کال پروړاندې نادرشاه غلام نبي څرخي په شاهي ماڼۍ کې یوه رسمي ملاقات ته راغوښتی وا وهغه یې دد ري خپلو غلامانو په بلوا کې چې دیره موده یې دوام ونه کړ دلاس لرنې له امله تومتی کړ په کوموکې چې هغه زیات نفوذ درلوده. غلام نبي څرخي یو دغلام حیدر څرخي له زامنو څخه و چې غلام حیدر څرخي دامیرعبد الرحمن خان سراعلی قوماندان وا و یو دغازي امان اله خان له غیرتي ملاتړ

و څخه و. همدارنګه هغه یو توندمزاجه سړی و او د نادرشاه اتهامات ته د هغه ځواب په رومبنۍ پاچا باندې د کفر یو ناوړه تور و. دا ځواب د نادر شاه لپاره چې په توند مزاجی کې له غلام نبي څرخی څخه کم نه و او امر یې وکړ چې غلام نبي دې زر اعدام شي ـ دا یوه ستره اشتباه وه ځکه چې د قانون د تطبیقو له امکانو یې له مینځه وړی و او موضوع ته یې د شخصي کسات بڼه ورکړې وه.

د نادرشاه قاتل یو ولس کلن ځوان عبدالخالق * و چې پلار یې د غلام نبي څرخي نوکر و او په خپله عبدالخالق چې په افغاني عمومي دود پسې روان و د جنرال له خوا په زوېتوب منل شوی و. هغه لکه څنګه چې اکثراً په څرګند دول ویل کیږي د غلام نبي اصلي زوی نه و او که څه هم شایي هغه د نجات په ښوونځي کې د نادر شاه په مقابل کې د دوی د احساساتو په واسطه تراغیزې لاندې راغلی وی، دا سې ښکاري چې د هغه د تحریك اصلي علت یه د غلام نبي څرخي په اعدام کې چې هغه ور ته پلار و یللی و په هغه باندې تیری وی؛

د پاچا د مړینې په وخت کې محمد هاشم خان چې په ژوندیو پاتې وروڼو کې تر ټولو مشر و په افغاني ترکستان کې و او تر ټولو کشر شاه محمود په کابل کې و. شاه محمود د دوو په خلاف د شخصي واك لپاره هیڅ داوونه کړ مګر سمد لاسه یې د نادر شاه یوازنی زوي محمد ظاهر شاه د دوی پاچا په حیث اعلام کړ د لته بیاد نږدې کورنی دورو نو وفاداري د واکمنې کورنۍ او د هیواد په ګټه تمامه شوه.

لکه څنګه چې د اندیره د زیاتو افغاني حکمرانانو په برخه کې رښتیا وه په افغانستان کې د نادرشاه د خاطرې یاد و نو نه کیږي او هغې چې هغه د ملي تاریخي اتلانو په کتار کې و دروي ناکامه شوي. هغه آزادي چې د افغانانو په طبیعت برابره ده له هر دول واکمنۍ سره مخالفه ده په تیره بیا کله چې د دغې واکمنۍ چلو نه جدي اختیاري یا استبدادي وي او نادرشاه د زیاتو غوره صفتو نو سره سره طبیعتاً سخت او په ځینو وختو کې بې رحمه و.

بیا هم د یوه عیني نظر له مخي دا څرګند ده چې نادرشاه د خپل هیواد لپاره

---

* مولف په کتاب کې محمد خالق راوړی دی. دا نوم محمد خالق نه بلکې عبدالخالق و او ما هغه په متن کې سم کړی دی. (مترجم)

زیات خدمت وکړ او په هماغه وخت کې یو همداغه شان واکمن ضروري و.
هغه انارشي چې په پټه سره په افغاني غرونو کې خپریدله، تر انقلاب وروسته
ګډودي او حافظ، کاري ملا بې دي تو لن یوپیاوري او کله کله یې بې رحمه قدرت او
لاس ته اړتیا لرله چې دا ټول شیان کنټرول کړي. دا نادرشاه وچې دقدرت او
کنټرول لپاره یې زمینه برابره کړه او دهغه له مرګ څخه وروسته انغانستان
یو ځل بیا د استحکام او پرمختلك په لور ګامونه اوچت کړل.

نوي تولواك محمدظاهرشاه د۱۹۱٤ کال داکتوبر په ۱۵، په کابل کې زیږیدلی و او دخپل دتاجپوشي دمراسمو په وخت کې اتلس کلن و. هغه دحبیبیې او
استقلال په دواړو ښوونځیو کې درس لوستلی و او له خپل پلار سره چې فرانسې ته
تبعیدشوي و تللی و او هلته یې په یوه لیسه کې درس و لوست. کله چې له خپل پلار سره
بیرته راغی په کابل کې له حربي ښوونځي څخه خلاص شوي و او په اتلس کلنی کې
چې په عمر ووړ او په عقل پوخ و دجنګ او دښوونې او روزنې وزیر تاکل شوي و.

ظاهرشاه برخلاف دخپل پلار یومهربانه او صمیمي شخصیت درلوده او لري
یې که څه هم نسبتاً حیاناك او شرمندوکی و. هغه دزیاتو افغانانو زړه غوندي له ښکار
او له کورڅخه دباندې لریو سره زیاته مینه لري خو هغه برخلاف دخپلو وطنوالو
چې په عمر یې ټول اجتماعي دي دنږدې ملګرو د یوې کوچنۍ دلې ملګرتیا او ډا
غوندیدل غوره ګڼي. په یوه داسې هیواد کې چې هلته دسن مساله اوزښت لري
دا هیله نه کیده چې هغه به دا تران ولري چې پر تخت باندې ترکښینا ستلو وروسته په اغیزناکه توګه لارښوونه وکړي مګر دهغه درې تکړه ترونه درلودل چې
دهغه په خدمت کې وو او هغوی چمتو وو چې هغه کمبود پوره کړي. پاچاتر دوه
ویشت نورو کلونو پورې پخپل پخوانې حال یا صلاحیت او تجربه کې پاتې شو په
داسې حال کې چې اجرائیه چارې دهغه ترورونو محمد هاشم خان، شاولي خان او
شاه محمود دورو ښود پو دول اتحاد یې په توګه سرته رسولې.

---

• داد محمدظاهرشاه دسلطنت د دوری خبری دی څکه نو کتاب مولف هغه حال په فعل سره بیان کړی دی. (مترجم)

محمدهاشم خان تر ۱۹٤۲ کال پورې ددغه درې ګونې اتحاد مهم غړی و. دی چې ژوندی پاتې و پخپلو وروڼو کې تر ټولو مشر او د صدر اعظم په توګه یې وظیفه سرته رسوله. که څه هم هغه دخپلې کورنۍ د نورو کسانو په شان او ربښتیا هم د لوړې طبقې دزیاتو افغانانو غوندې یو صمیمي مؤدب او مهربان سړی و، هغه په ځان مین، ارام اوراز ساتونکی هم وا وهغه له خپل ورور نادرشاه څخه په دې کې توپیر درلوده چې دهیواد په اداره کولو اوقدرت په لاس ته راوړنه کې یې چل ول حیله اونیرنګ تر زور اوتشدد دغوره ګاڼه.

دنادرشاه تر مرګ وروسته افغاني حکومت تر ولې پروژې دیو څه مودې لپاره وځنډولې او په شرق سره یې زیاتو پرمختګونو ته انتظار وایسته. ځکه څنګه چې هیواد ارام و- مانا یې داوه چې دایره بله نښه وه چې دپاچا مرګ دیوې ستړې توطیې برخه نه وه داقتصادي پرمختګ پروګرام چې په پوره احتیاط سره جوړ شوی و بیا پیل شو. څو په دې وخت کې نوي واکمنان له یوې ستونزې سره مخامخ وو: له یوې خوا هغوی تصمیم نیولی و چې له شوروي اتحاد څخه مرسته یا تخنیکران ونه غواړي اوله بلې خوا په دې وخت کې برتانوي ضد احساس دومره پیاوړی و چې دا به ناممکن وای چې یې برتانوي اتباع حمایه کړل شي. تر جلدې غور وروسته افغانانو له جرمني سره تماس ونیوه اوداهغه وخت وچې دنازیانو دوره دپیل کیدو په درشل کې وه اوپه لنډه موده کې یو شمیر جرمني متخصصین او تخنکیران افغانستان ته وا-رسیدلي وو.

دافغانانو له نظره جرمنیان مطلوب خارجیان وو. دهغوی هیواد په سیمه کې دامپریالیزم تاریخ نه درلوده اوله شوروي اتحاد اولویې بریتانیې دواړو سره یې مناسبات خراب وو. برسیره پردې زیاتره جرمنیان هغه چې افغانستان ته راغلل نه یوازې تکړه او ماهر کارګران وو بلکې لیوال هم وو چې ددریم رایخ (Third Reich) نفوذ خپور کړي او محتاط وو چې له هغه څه څخه ډډه وکړي چې هغه پر افغاني احساساتو باندې تیری ګڼل کیده.

له ۱۹۳۵ کال څخه د دویمې نړیوالې جګړې تر پیل پورې په افغانستان کې د جرمنیانو نفوذ په ثابته توګه زیاتېده . الماني انجنیرانو په ټول هېواد کې بندونه او پلونه جوړ کړل او په چلک وردک کې یې چې د کابل په جنوب کې پروت دی داوبو بریښنا ماشینونه ودرول چې د پایتخت د کمزورې بریښنا په ظرفیت کې یې زیاتوالی راووست. په پای کې لوفت هانزا (Luft hansa) ته اجازه ورکړ شوه چې دکابل او برلین تر منځ الوتنې وکړي او په تاریخ کې د لومړي ځل لپاره لږ تر لږه دافغانستان پایتخت ته د بهرنۍ نړۍ دتګ راتګ لپاره لار اواره شوه پر ته له دې چې دخیبر پاله ژورو لاروڅخه د مشکل سفر ستونزې وزغمي

داچې د جرمنیانو زیات کارد کیفیت له پلوه بې خونده او چندان ګټورنه و داسې بریښي چې علت به یې دجرمني انجنیرانو دبې کفایتۍ په پرتله زیات دوطني یعنې افغاني تخنیکرانو اړ والی وي. دستروپلونو پرله پسې نړېدل او داوبو د ذخیره کولو دقوې بندونو خرابېدل دجرمنیانو په مقابل کې چې دغه پلونه اوبند ونه یې جوړ کړي وو ناوړه ذهنیت منځ ته راوړ ووړ. (۵) افغاني مشران چې تل یې قدرت ستا یه دجرمنیانو دسیاسي او پوځي ګټو تراغیزې لاندې راغلي وو. کله چې نازي (Nazi) استاز وچې هغوي دفیوریر (Fuehrer) دجګړې لپاره تیاري نیوله، پیل وکړچې دافغاني مشرانو زړونه لاس ته راوړي اوهغوی دځان خواته راکاږي. دهغوی حتی دنازي نژاد په وسیله هم جلب شوي وو ځکه چې په دې باندې ټینګار کیده چې المانیان او افغانان دواړه اریایي نژاده دي او دانژاد پر نورو باندې تفوق لري لري؛ سره له دې هم داریایانو له تاتوبو څخه یو هم افغانستان و .

دلرغوني افساني پر اساس چې افغانان داسرائیلو ورکې قبیلې وې خو اوس دغې لرغوني افسانې ځای دغه حقیقت ته پریښی دی چې افغانان داریایانو له نژاد څخه دي

دجرمني محورې متحدینو هم په افغانستان کې فعالیت کاوه خو لږ بریالي وو. د جاپاني سوداګرو یو هیئات په ۱۹۳۴ کال له زیاتو بې کیفیته مالونو سره کابل ته راغی چې په ښکاره په دې فکر کې وچې افغانان به هرڅه رانیسي. دغه فکر یوه داسې تېر

وتـنه ثابته کړه چې ددې ملتونو زیاته اندازه پنځه‌ویشت کاله وروسته لاهم په
افغاني بازارونو کې پراته‌وه اوبخاوري‌دوري‌پرې کښیناستلې، جاپانیانو په خپل‌شوق و
ذوق سره حتی دخپل سفارت لومړی سکرترتشویق کړچې مسلمان شي اودا یـو
څرګند حرکت‌وچې دخوښۍ پر ځای یې له کرکې څخه ډک منځګان زیات کړ.(٦)

افغانستان خپل‌رهخوته دوام‌ورکړچې په بهرني نړۍ کې‌اعتبارترلاسه کړي چـې
دتهدیدونکي جنګ سره سره په‌زیاتیدونکي توګه سختیدې. په ١٩٣٤ کـال کې
افـغانستان دترکـیې پـه ضمانت د ملتونـو په اتحاديـه ( League of Nations )
کې شامل شواو افغاني نمایندګانو دبې وسلې کولو په کنفرانسونو کې برخه‌واخیستله.
په ١٩٣٧ کال کې افغانستان له‌ترکیې اوایران سره دسعدآباد تـړون لاسلیک کـړ
چـې داپر پـربل باندې دتیري نه کولـو په ضوره ژمنـه وه‌چې سره‌لـه‌دې‌هم‌ه
لومړی‌ځل لپاره‌یې وښووله چې یاترکانو یاافغانانو دخپلو فارسي ګاوندیانو لپاره‌ښه
نیت څرګند کړی‌و.

دهمدې مودې په ترڅ کې افغانستان له متحده‌ایالاتو سره خپل دسیاسي اړیکو
لومړی تجربه درلوده. که‌څه هم دغه وروستي هیواد پرله لومړنیو هـیوادونـو
څخه وچې افغانانو‌ورسره تماس ونیوه وروسته له‌دغه چې‌هغـوی خپلـه خارجـي
آزادي تـرلاسـه کـړه اود هـغـوی پیشنهـاد و نه د هـا ر ډ نـګ ( Harding )
اداري له‌خـوا ردشوی‌وو . د ١٩٣٤ کال په‌جولای کې دفرینکلین ډيلانو روزولت
(Franklin Delano Roosevelt ) تر‌ټاکل‌کیدواو دمتحده ایالاتو له‌خوا دشوروي
اتحاد له په رسمیت پیژندلو څخه وروسته دمتحده ایالاتو دبهرنیو چاروزارت لـه
یو یادداشت راورسیده چې څرګند وله یې چې نبایي دابه وي دچې‌هغه سیاسي او
اقتصادي اړیکې پیاوړې کړو، چې‌افغانستان دمتحده ایالاتو له‌سترا‌وقوي حکومت
سره درلودی، اولاترلاسه پورې یې لري.» جمهور رئیس روزولت چـې تر یوې
اندازې پورې اریان پاتې وچې دغه اړیکې‌څه شي کیدای‌شي، د یوه دوستانه لیک
په واسطه ځواب ورکړ؛ مګر دغه لیک تر١٩٣٦ کال پورې وانستول شوځوچې په

ایران کې دمتحده ایالاتو شارژ دافیر افغانستان ته سفر وکړ اوددوستۍ پوتړون یې لاسلیک کړ. خوهیڅ دول سیاسي نمایندګي جوړه نه شوه اومتحده ایالاتو دوام ورکړ چې له افغانستان سره دبریتانیې ددو تړونو له لاري کارونه سرته ورسوي.
په هماغه کال کې افغاني حکومت دافغانستان دتیلو د احتمالي زیرمود پرانستیالپاره د نویارك دتیلو دپلټنې یوې کمپنۍ (Inland Exploration Company of Newyork) ته پر ۷۵ کلن امتیازومانه او په دې توګه یې د امریکې دبشر دوستۍ په فلسفه باندې باورځرګند کړ. داد لومړي اوو روستی ځل لپاره وچې یو دغه دول امتیازدې کمپنۍ ته ورکړل شوی و. (۷) خود جنګ ګوابښ امریکائي پانګه اچوونکې یې علاقې وګرزول او په ۱۹۳۹ کال کې تړیو اړ شمیر لومړنیو پلټنوورو سته دتیلو دپلټنلو کمپنۍ له خپل امتیاز څخه لاس واخیست .
په تیرلودغو کلونو کې دافغاني حکومت د علاقې وړاومهمه مساله دهیو رندد کرښې دختیځې برخې پښتني قبیلې وې چې دهغوی سیمه په زیاتیدونکې توګه یوه داختلاف ورسیمي په حیث ګڼل کیدله کله چې نشیلیزم دهغوی نزادي یا قبیلوي وفاداریو ځای ونیوه سرحدي سیمو دوام ورکړچې یاغي اوسي. اپریدي (دوپښورد ۱۹۳۱ - ۱۹۳۰ کلونوله جنګ نه اودیو ځوورستنی جزائي عملیاتو نه وروسته) په پوره آرامه مګرنا کرارحالت کې پاتې شول ، خود هغوی ګاونډیو مومندودانګریزانو په مقابل کې خپل قوي مخالفت ته دوام ورکړ ، چې هغوی ددې حقیقت په واسطه تشویق شوي ووچې زیاتره قبایلي خلکو په افغاستان کې ژوند کاوه. په ۱۹۳۹ کال کې له زرونه زیات کسان هغه چې انګریزانود یا غیانو په حیث پردلو ویشلي وودافغاني مومندو په منځ کې اوسیدل چې په هغو کې دانګریزیو پخوانی حاجی هم شامل وچې له انګلیسانو څخه یې کرکه کوله .
دانګریزانو له نظره جدي مشکل په وزیرستان کې وچې خلك یې دپرڅو په شان سرکښ ووچې دطبعي منظري مخ یې پو نیولی و. له هوائي بمبارۍ ، جزائي عملیاتو ، بدو ، جریمو ، پوځي پوستواو سړکونو څخه هم کرمه نتیجه لاس ته

راتغله ځکه چې دهغوی دمات شوو کسانو په څیر دکسات انحصلرلوړه کړې وه او پاتې کسانې یې د جنګ په حال کې لږترلږه بې ځت پاتې وو. کله چې هندي محکمې په ۱۹۳۶ کال کې تصمیم ونیوه چې هندو نجلی دی چې هغه دخپل مسلمان عاشق له څرانبت-ول شوې وه باید بیرته دهغې مور او پلارته وسپارله شي، دعامې کرکې او غضب اور بل کړ؛ ځکه چې دغه څرانه په څه مسلمانانه شوي وه او نه پخلا کیدونکو احساساتي وزیرو له دې څخه دفاع کوله چې حکومت حق نه در لود چې دعقیدې په هره مساله کې لاس ووهي. په حقیقت کې وزیرو او دهغوی ځپلوانو مسعود وچې هغوی ترورو ستي حده پورې دلاس نه وهنې مفکورې ملاتړ کوي، هیڅکله یو حکومت ته اجازه نه ور کوي چې په هغو کې دلاسوهنې حق ولري.

دملا یا نو یو یوې دلی داسلام بی بی (داسلام لور) څنګه چې یوې ځوانی دا نرم ځانته انتخاب کړی وچې په دې نامه سره یاده شي له نامه څخه یې دیره راټولو ونکی زغ په توګه کاراخیسته. دغې دلې دایپي دنامتوفقیرحاجي میرزاعلیخان په مشری دوزیرو دملا، ځپلو او توري ځپلو په خانګو کې بغاوت ته لمن ووهله او خلک یې راوپارول. په نظر کې وه چې د دې بر تانوي عسکري قطعې دعملیاتو لپاره ولیږل شي اوتر هغې پورې چې په ۱۹۳۷ کال کې یوه له نا آرامی نه ډکه سوله منځ ته راغله هغوي له زرونه زیات تاوانونه زغملي وو. انګریزانو سره له دې چې ځپلې الوتکې، ټانکونه او زغره وال ګرندي موټرونه هم ورسره وو، قبایلي جګړه په زیا تیدونکی توګه سخته ولیده؛ په دې وخت کې قبایلي خلک نه یوازې په اغیزناکړلو ویشتونکو ټوپکو سره سمبال وو بلکې هغوی دستر حرکت او فعالیت کمه هم خرندی وساتله. دایپی فقیر هیڅکله ونه نیول شو؛ مګر افغانی سرحد ته نژدې په شوال کې په آمن کې پاتې شو. هغه له هغه دی پناه ګاه څخه دځپل مرګ ترو خت پورې دوام ور کړ چې دلیپ برتانیې اوورسته بیا پاکستان دستر ګو اغزی او سي. څرچې په ۱۹۵۹ کې مړشو.

ټول ستونزې پیدا کرونکې دسیمې خلک نه وو. په ۱۹۳۹ کال کې یو خارجي

جنګ ته تړدونکی په سرحد کې څرګند شو . سید محمد سعدی چې په شامی پیر مشهور و دعراق یو اصلي اوسیدونکی و او په یوی نامتو کورنۍ پوری یې اړه درلوده. چې په اسلام کې ئې شهرت درلود. شامی پیر د امان الله خان له ملکې ثریا سره خپلوی درلوده اودهغه څرګنده اراده داوه چې غازی امان الله خان بیا پر تخت کښینوی. هغه د ۱۹۳۹ کال د جون (June) په ۱۵، ظاهر شاه یو غاصب اعلام کړ اوله قبیلو څخه یې وغوښتل چې په کابل باندی دېره بریدلپاره سره یو ځای شي .

داحتی دنما ینده له خوا چې دامان الله خان په نمائیدګۍ به ئې خبری کولې هم څرګنده شوه چې غازی امان الله خان لا هم خطرناك و. وزیر چې هغوی دهرې لمی لتولو لپاره چمتو وو پیل وکړ چې سره راټول شي او د سلیمانخیل ، غلزیو څانګې له خپل تاتوبی څخه چې د دیورند دکرښې په ختیځ کې پروت وله پولې څخه تیری شوی چې دمقرن په افغاني جنګي کلا باندی بریدوکړی. ددغه کلك یرغل په مقابل کې په بریالیتوب سره مقامت وشو ، نوری قبیلی راپورته شوی او دانګریزانو استخبارد شلرز رو پوند ونو په بیه او بیرته بغداد ته دوړ یاورنې په لګښت سره وشو کړای چې شامی پیر راضی کړی چې په شاو تمبیزی :

په افغانستان کې خلك په دې عقیده دی چې دشامی پیر څرګندیدنه دانګریزانو له خوا یوه بله هڅه وه چې په افغاني حکومت باندی فشار راوړی چې په افغانستان کې دجرمنیانو دموجودیت پر سرباندی دخپلی اندیښنی له امله هڅول شوی وو. هیڅ بیلګه نشته مګردا احتمال لری چې عراقې صرف دځان له خوا خبری کولې .

څو میاشتی وروسته دویمه نړیواله جګړه پیل شوه چې په هغې کې افغاني مشرانو په احتیاط سره هڅه وکړه چې یوی طرف ته پاتی شي. دهغوی خواخوږی په اصل کې له محوری (Axis) قواوو سره وه په تیره بیا په شوروی اتحاد باندی د جرمنیا لوله برید څخه وروسته بر خلاف دغازی امان الله خان هغوی په پوره اندازه واقعیت بین وو څو چې له خپل خطرناك دریځ څخه خبر او وسې چې په دی وخت کې ستر قدرتونه چې دهغوی یو له بل سره مخالفت او بد ګمانې مرسته کړی وه

چې دافغانستان آزادي خوزندي وساتي ، متحد وو . له دې امله حکومت دجدي بې
طرفۍ دریځ اعلان کړ چې دغه دریځ د ۱۹۴۰ کال د آگست (August) په ۱۷، په
یوه شاهي اسلامیه کې بیا تائید شو . دغه بې طرفي په ټول جنگ کې ثابته پاتې
شوه که څه هم دابې طرفي دمتحد یو دیوې غوښتنې په واسطه تر فشار لاندې
راغله چې دغه غوښتنه د ۱۹۴۱ کال په منځ کې دټولو محورې اتباعو دا یستنې
لپاره شوې وه. دغه انحطارنه یوازې په ملي غرور باندې یو گوزارو بلکې دې خبر
داري دافغانستان یو لوی خورا پیاوړی دود و ترڅخه یعنی ملیمه پالنې له قانون څخه
هم سرغړونې غوښتنه کوله زیاتره له افغانې مشرانو څخه دمقاومت ملاترو کړ مگر
هاشم خان وضع په دیره ځرگند ترگه درك کړه ؛ په ایران کې درضا شاه پهلوي
سرنوشت یو عینې درس وپه داسې حال کې چې خورا لوی بریتانوي پوځ سرحد په
تاریخ کې په افغانی سرحد کې اندول برابر کړی و . دمطلب لند یز یا وروستی تکی داو چې
له محوري اتباعو څخه وغوښتل شول چې له هیواد څخه ووځي که څه هم افغاني حکومت د
افغاني مشرانو لویې جرگې ته په احتیاط سره ولمنه ور کړه چې ددغه اقدام ملاترو کړي ؛
وروسته له دینه هلته یوازې جزئي پیښې په جنگ کې شاملې وې . یو څو زره ور
جرمني او ایتالوي جاسوسان په سرحد کې خپاره شول او قبیلو ته ورسیدل . یو له
دغو څخه دیوه ضد جاسوس په واسطه یوه وژونکې کمین ته وروستل شو ؛ بل
یې دافغاني پوځ له یوه واحد سره له ټکر نه وروسته ونیول شو .

پو افغان په رضا سره دوزخ ته ځي
خو په زور سره جنت ته نه ځي .
( پښتو متل )

# اووه لسم څپرکی

## افغانستان

## له ۱۹۴۵ څخه تر ۱۹۵۳ پورې

## «پښتونستان»

د دويمې نړيوالې جګړې په پای کې د افغانستان مشران او د دې هيواد تعليم يافته ځوان کسان چې شمېر يې مخ په زياتېدو وو د بدلون لېوال وو . زياتره له دغو کسانو څخه د اوږدې زمانې راهيسې د خپل هيواد د سست پر مختګ له امله ناراضه وو خو د هغوی مخه پر سيره د محمد هاشم خان صدراعظم پر اخطار ، په بهرنی نړۍ کې په وضع باندې د هغوی د خپل ذکت نيولې وه . هغه د بدلون مخالف هم نه و ، خو څرنګه چې هغه د غازي امان الله خان د له منځه تللو نه وروسته دا رو دوره په وخت کې مقام ترلاسه کړی و ، هغه اصلاً د هيواد له ټينګښت او داخلي امنيت سره زياته علاقمندي لرله .

خو په دې وخت کې افغاني حکومت خپل استحکام څرګند کړی و او داسې بريښېده چې د افغاني مشرانو لپاره دا وخت را رسېدلی و چې د پر مختګ په لارې قطعي ګامونه اوچت کړي . په نظر کې وه چې د دغه حرکت مخه په خطرونو او بې اطميناني سره ونيول شي ځکه چې د ۱۹۴۵ کال نړۍ تر زياتې اندازې پورې

له هغې نړۍ نه تړ پېر درلرده له کومې سره چې افغانان بلدوو . جرمني نسکور او تړ تم تړ تمشوی و؛ دامريکې لرې متحده اياالاتدنړۍ درهبر په حيث ښکارنده شوی و.شوروي اتحاد چې له جنګ نه سلامت وتلی و تمېي شوی وخود تردې اندازې پورې مرموز او قوي وښکاره چې پخوا و. لـه بلې خوادلويې بريتانيې دامپريالېـزم دوره دوره پای تـه رسيد لـې وه او کرارکراريې ځان چـمتو کاوه چې هندوستان دتل لپاره پريږدي .

دهغه څه درک ته چـې داوددې زماني راهيسې ډېره ليوال افغان هيله وه چې که څه هم په زره پورې وه ، خويوزيات شمېر نوې ستونزې يې رامنځته کړلې :
دافغانستان خلکو سره له دې چـې د تيرې په مقابل کـې يې ميړانه ښودلـې وه ؛ افغانستان ترېوې اندازې پورې په ښـکاره ډول دخپلې آزادی لپاره دبريتانيې دځراك دشـوالی مرهون وچې دافغانستان په سرحدکې يې موجوديت درلوده ؛
لههغهمتقابل قوت څخه پـرته داسې ښکاره وه چې ياد کمو نيستي رو سيې پـرا ختيا غوښتلې مخه به دآمو سين څنډې نور هم راګرزولې وشي او کنـه ؛
افغانانو سملاسه درك کړه چې دلويې بـر يتانيې دقـدرت چـې دشور وي اتحادد پراختيا په مقابـل کـې ډيرهخند په توګه مـوجود وخپل ځای دامريکـې متحدهاياالاتوته پريښی و . داوضـع پخوا له پخوانه ډيره ښه اتکل شوې وه څکه نوامريکاياڼو دافغانانو په نظر تربلهراولس لوړ مقام درلود.

په دويمه نړيواله جګړه کې ددوي هڅې هغوی ترزياتې اغيزې لاندې راوستې وواويوځوتنه محصلين چې هغوی امريکې ته تلـلي ووپه شوق اوذوق سره بيرته راستانه شوي وو. هغه څه چې لاهم دافغانانو له نظره مهم وهغه البته شهرت اواعتباروچې وروسته له هغې نه متحده اياالاتوپه اسياکې دامپرياليزم په مقابل کې دخپل دريځ له امله ترلاسه کړي و.

د۱۹۴۲ کال په اوږدوخت کې محمدهاشم خان چې صحت يـې ښـه نه و دافغاني چارو له ديارلس کاله رهبرۍ څخه وروسته دشخصي ژوند په خـاطر يې

له کارڅخه لاس اوخیست. دهغه ځاي شاه محمود چې دمصاحبانو تر ټولو کشر ورور ودصدراعظم په حیث ونیوه اودلومړي ځل لپاره ظاهرشاه چې هغه په دې وخت کې دودیرش کلن و، پیل وکړ چې په افغاني سیاسي چاروکې فعاله برخه واخلي. شاه محمود چې یو مهربان اونیکلی سړی وپیژنده، له شاك څخه په شاهي ورونوکې خوراملنلی اومشهوررو. هغه چې داسیاپه سرنوشت نورکې دمتحده ایالاتوله اهمیت څخه خبرو نوځکه یې زوي زلمی خان یې د اوروتحصیلاتولپاره امریکې ته ولیږه. داپه تعامل کې یو درځ وه ځکه چې فرانسه هغه هیوادو چې دشاهي کورنۍ زیاتره غړي دې هیوادته دتحصیل لپاره تللي وو.

دشاه محمود دمحبوبیت یو دلیل دزغم ګلاني له امله دهغه شهرت اود محمدهاشم خان له استبدادي طریقې څخه دهغه کرکه وه. په مشخص دول دهغه لومړي رسمي اقدام داوچې دیو زیات شمیر سیاسي بندیانو دبخښنې فرمان صادر کړې چې په هغوکې دغلام نبي څرخي دکورنۍ غړي اوهغه زده کوونکي هم شامل وو چې هغوی په ۱۹۳۳ کال کې دانګریزانو په سفارت باندې تر بریدوروسته بند یان شوي وو ځینې له دغو کسانو څخه سمدلاسه په حکومتي دوترونوکې مقرر شول؛ ودپاچاخاص منشي شو اوورو سته بیا دافغانستان دمشرانو جرګې رئیس شو.

دنوي حکومت بل اقدام داقتصادي پرمختګ لپاره دیوه پلان اعلانول و چې دغه پلان دبل هر پلان په پرتله چې د غازي امان الله له خوا پیشنهاد شوي و دزیاتو هیلو منعکس کوونکی و. رښتیا هم دغه پلان له جنګ نه رومبی موجود او پخواله دې چې مخالفتونه پیل شي یو څو لومړني ګامونه اوچت شوي وو. اوس داپه نظر کې وه چې په دې پلان باندې په پراخه اندازه له سره بیا کار پیل شي.

دابايد په یادولرو چې دافغانستان داقتصاد عملي کوونکې اوواکمن د۱۹۳۲ کال راهیسې دملي اقتصاد وزیر عبدالمجید خان وچې هغه ددولت په تشبث او کنټرول باندې ټینګه عقیده درلوده. هغه څه چې په دې وخت کې دهغه ترمشري لاندې دتولید په لارکې موجود وو په شرکتونو بدل شوي وو چې دې

شرکتونو ته انحصاري صلاحیتونه ورکړل شوي وو او حکومت معمولاً په دې شرکتونو کې د زیاتو ونډو او کنټرول په لاس کې درلوده. دغه اقتصادي نظم او ترتیب چې دغه، په عقیده یې حکومت پیاوړې کاوه دزیات پلا نیزې کولو لارې یې پرانستله او بې علاقې افغاني پانګوال یې ضروري پانګې اچونې ته هڅول؛

پر له دغو شرکتونو څخه دافغانستان دعمده صادراتي محصول یعنې دقره قلي پوستکي تولید کنټرولوه او په تېره بیا دغه وخت بریالي وو روسته له هغې چې دقره-قلي پوستکي په متحده ایالاتو کې دودګرزیده. په نتیجه کې څرنګه چې د افغانستان واردات کم وو، نویې دشل ملیونو د الرو په حدود و یوه قرضه ترلاسه کړه. په دې وخت کې دغه قرضه دیوه اقتصادي پروګرام اداره تخصیص ورکړل شوې وه چې په جنوبي افغانستان کې داوبو لګونې او بریښنا دبندونو د کامپلکس (Complex) په ساختمان کې متمرکزه شي چې افغانستان به دهلمند او ارغنداب د سیند ونو له او برخه ګټه واخلي. دېر احتمال لري دغه مذکوره په هغو محصلینو کې پیدا شوې وي چې هغوی دانجنیری له بری ]ایکرزمره له متحده ایالاتو څخه لسه پیر له ستنیدونه، وروسته سمدلاسه ددولت په لوړو څوکیو کې مقرر شوي وو او هغوی د ټینیسي ناوې (Tenne sse Ualley Authority) داوبو لګولو د پروژې د بری له امله تراغیزې لاندې راغلي وو.

دغه پروژه په ښکاره عملي بریښیده. هر کلونی د دوا پروسیندونو سیلاوې او به چې دوا وری دویلې کیدو له امله زیاتیدلې او په مخ کې یې بندونه یا ذرخند-ونه هم نه وو جنوبي دښتو ته رسیدلې او په اوړي کې به دغو سیندونو داوبو بهیر دیر لږ و. خلاف په دې عقیده وو چې دهلمند پروژه به یوه زیاته اندازه ځمکه چې تر دې وخته بوري شاړه وه اباده کړي چې دغې نه څه خلاو، اجاره او مالیه به تر هغې پانګې هم زیاته شي چې په دې پروژه کې په کارا چول شوې ده. په دې خبره هم بحث شوی وچې له دې ځمکو څخه به دافغانستان دځینو کوچیانو په میشته کولو کې کار وانیستل شي چې هغوي دمیشته شوي کروندګرو له پاره یې مخالفت سره مخامخ وو.

له دوېمې نړیوالې جګړې نه دمخه کله چې لومړۍ پروژه پر اصولو برابره شوه، ډېر ورو کې پيل په حيث يوشمېر جاپاني انجنيران د افغاني حکومت لـه خوا استخدام شوي ووچې دافغاني کاريګرانو يوه لويه دله تر نظارت لاندې ونيسي چې هغوي له کلنګونو او بيلونو سره کار کاوه. پهدې وخت کې افغانانو دموريسن ندسن (Morrison–Knudsen) له کمپني سره تماس و نيـوه اودا يوه ساختماني کمپني وه چې مرکزونه يې په بوسيس (Boise) اوايداهو ( Idaho ) کې وو. دې کمپني موافقه وکړه چې دغه پروګرام پر مخ بوځي اوهغه عملي کړي . ژرېو شمېر امريکائي انجنيريان او تخنيکران ځرګندشول؛ اساسي کمپني په کنډهار اوګرشک کې جوړ شول اويوه کو مکي کمپني چې دموريسن ندسن افغانستان (Mnrrisen–Knudsen Afghanistan) پـه نـامه ياد يـد له په سا نـفرا نسکر کې جوړه شوه.

دښوونې او روزنې په ځانګه کې هم امريکائي مرسته ترلاسـه شوه . معمولاً ديوه دري کلن قرارداد په اساس يو شمېر ښوونکي دمتحده ايالاتـو د بهرنيـو چارو وزارت له لارې په افغانستان کې دخدمت لپاره استخدام شوي وو . زياتره له دغو ښوونکو څخه دحبيبې په ښوونځي کې مقرر شوي ووچې دافغاني ښوونځيو ترټولوسابقه اولوی ښوونځی وکه څـه هـم يوڅو تنـه يـې دکنـد هـار محافظـه کـار ښـوونځـې تـه لاړل . ډاکټرپـال بوشـنـل (Dr Paul Bushnell) چې دغه داوهايو (Ohio) دووسټر په پوهنځي (WoosterCollege) کې دښوونې او روزنـې پروفيسرو و تاکل شو چې دحبيـبې ښوونځې لار ښـوونه په غاړه واخلي؛ چې دغه ليسې زرځوار لس تنه امريکائي ښوونکي ترلاسه کړي و و چې پـه هغو کې څلور تنه ښځې هم شاملې وې . دغه ورو ستي تجربې چې د افغاني حکومت لـه خوا له ځينو اندېښنو سره پيل شوې وه يو بشپړ بريې ثابت کړ .

دادافغان امريکائي دريښتنې دوستي دسولې او نيکمرغي په هـمدې ورځو کې وچې ددوارو هيوادونو سياسي هيئاتونه دسفارتونو سطحې ته لوړ شول اويو مسلکي

افسر ایلي پلمیر (Eli palmer) دمتحده ایالاتو دلومړي سفیر په تو گه په افغانستان کې مقرر شو. له بلې خوا، شوروي اتحاد دامریکایانو د راتلو بهیر په اند یښنې سره څاره اوپوزیات شمیر اعتراضونه یې ولیږل چې دتولو پروا ونه ساتل شوه. همداسې توقع هم کیدله ؛ همدارنگه دبرتانوي او فرانسوي اتباعو له خوا هم یوشه څوکان و ښودل شو څکه چې دسیاسي او کلتوري رهبرانو په حیث دهغوي ځایونه هم بدل کړل شوي وو.

دتولنیز او اقتصادي پرمختگ لپاره ددغسې یو حرکت مخه دیوه نوي پرمختگ په واسطه و نیول شوه مانادا چې دغه پرمختگ هغه پیښې وې چې له هند وستان څخه، دانگریزانو له په شاتلنې سره یې ارتباط درلوده .

زیاتر وخارجیانو تعجب ښکاره کړی و چې ولې افغانستان د پاکستان منځ ته راتللو ته په خواښینې سره هر کلې و وایه یعنې افغانستان ولې دپاکستان له جوړید و سره په ویره کې ولویده. دایوه داسې ویره وه چې افغانستان یې دې ته ا ړ کړ چې په ملگرو ملتونو کې دپاکستان دشمول په برخه کې مخالفت رایه ورکړي چې یوازنۍ مخالفه رایه وه. خو دغه دول اړیانتیادافغانستان په باب د بهرنیو دپخوانی بې خبرې صرف یو نوی انعکاس و. دهندوانو هندوستان پخپله دمحمد علی جناح دبریالی مبارزی په واسطه چې دیونوي اسلامي هیوادلپاره یې کوله تر افغانانو لږ زیات په ویره کې لویدلی ویازیات خپه و ددې لپاره چې دهغوی دریځ روښانه کړو ښایې دا ښه وی چې دهغوي دتاریخ ځینې حقایق بیاتر کتنې لاندې ونیسو.

دیوه ملت په توگه دافغانستان پیل او رامنځ ته کیدنه صرف دیوې هڅې نتیجه وه چې تر دې وخته پورې ویشل شوي پښتانه قومونه سره یوموټی کړی . کمه څه هم په دې سیمه کې امپراتوري منځ ته راغلې دې اوله منځه تللي دي چې رهبران یې زیاتره پښتانه اوعسکریې معمولا پښتانه وو خو داحمد شاه بابا تر وخت پورې کومه جدی یابریالی هڅه ونشوه چې قبیلې سره یوموټی کړي .

دا ربښتیا ده چې احمد شاه بابا تر زیاتې اندازې پورې پرخپلې قبیلې یعنې درانیانو

پاڼدې انکاو کړ، او درانی مشران یې په مهمو مقامونو کې مقرر کړل؛ خو همدارنګه هغه په جدي توګه کوښښ وکړ چې د نورو پښتنې قبیلو ملاتړ او له درانې قبیلې سره دهغوی پیوستون ترلاسه کړي چې د دې کار لپاره یې هغوی له درانیانو سره یو شان برابر حقوق ورکاوه. په دې دول افغانستان له تا کلو سرحدونو سره دیوه تړینګ ملی دولت په حیث نه بلکې دیوه آزاد نژادی ګروپ په توګه چې مشترک دودونه روایتونه، مشترکه ژبه او نیکه یې درلودل پیل او منځ ته راغی. نورو ایتنیکي (نژادی) ګروپونو یاخود پښتنو په منځ کې یاخو یې دهغوی تر کنترول لاندی سیمه کې ژوند کاوه چې په عمومي دول له هغوی سره له زغم نه کار اخیستل کیده؛ ځینو په تیره بیا قزلباشو تقریباً له درانیانو سره مساوی فرصتونه ترلاسه کړل. په دول افغانی تاریخ کې ځه شک نشته چې د دې ملت بنسټ د پښتنو له خوا ایښودل شوی و. په حقیقت کې په د دې ملت لپاره زیات سم نوم پښتونستان «د پښتنو ټاټوبی» وای. د دې هیواد اصلی نوم په ساده دول له پارسیانو سره د درانیانو د تماس په نتیجه کې او د پارسی ژبې د پرستیژ له امله چې د صفویانو او ستر و مغلوله برم او ویاړونو سره دخپلې اړیکې په نتیجه کې ګټلی و منځ ته راغلی دی.

دافغانستان د پخوانیو حکمرانانو په وس کې نه وه چې یو ملت د کلمې په اوسنی معنا سره جوړ کړي ځکه چې دهغوی خلک د دې په ځای چې یو ملي دولت ته وفادار اوسی شخص، خیل یاقبیلې ته وفادار وو. په نولسمې پیړی کې دافغانسان پر مختګونه تر یوې اندازې پورې په اروپا کې له پخوانیو پر مختګونو سره اندول شول، هلته تر زیاتې اندازې پورې ورته جګړه روانه وه چې په یوه له آره فیودالي ټولنه کې یو داسې سیستم منځ ته راوړي چې پاچاهان یې دیوې ګندې زورزادوي په کوم کې چې قبیلې او تر یوې اندازې پورې یوازې د دې قبیلو خانان او ملکان هغه رول په غاړه و اخلی چې اروپائی اشرافو په غاړه اخیستی و.

افغانستان له خپل کمزوري نیشنلزم سره سره تل یو دیادونې وړ اختصاصی صفت درلوده چې دا هیواد له ورته نژادی دولتونو» ځخه راپیلوی. دا اختصاص

او مشخص صفت د پښتنو ایتنیکي (نژادي) ویاړ دی چې دا یو تر ډېرې اندازې پورې
څرګنده ځانګړې نخښه یا مشخص صفت دی چې ډېر څرګند مشخص صفت په
تاریخ کې د هغوی د لومړي ځل لپاره د څرګندېدو راهیسې هر هغه څوک تر اغېزې
لاندې راوستی دی چې له هغوی سره یې مقابله کړې ده یا له هغوی سره مخامخ
شوي دي. د ېره بنسټ په توګه په (پښتونولۍ کې په ښکاره توګه سره د نیشنلزم امکان
موجود او دا همدا امکان و چې د نولسمې پېړۍ افغاني حکمرانانو یې د درک کولو
هڅه وکړه. دا چې هغوی ناکامه شول علت یې څه ناڅه د داخلي کمزورتیا نتیجه وه
په کومو باندې چې هغوی کنترول نه درلود.

«دسترنز دوره» چې تقریباً سدوزیو او محمدزیو ترمنځ د تکرار او مخالفت له امله
منځ ته راغلې وه افغانستان یې تر یوې اندازې پورې کمزوری کړ چې د دې کمزورتیا په
نتیجه کې سکانو ته موقع په لاس ورغله چې په پښتنو باندې خپل تسلط ته پراختیا ورکړي
خو دغه چې له غرونو څخه په ختیځ کې د سند تر سین (Riuer Indvs) پورې خپاره شوي وو.
سکانو واک پر سیره، پر دې چې نیمګړی او غیر طبیعي هم و او هغوی یوازې د کلک فشار له
لارې په دې قادر شوي وو چې دغه حاکمیت ټینګ وساتي. (۲) کله چې بیا انګریزانو
په ۱۸۳۹ کال کې پر افغانستان باندې برید چې د اړودوړ او د قبایلي فیودالیزم د بیا
ژوندي کېدلو موجب وګرځېده نه وای کړی، ډېر احتمال لري چې د افغانستان
په ټینګولو کې به د امیر دوست محمد خان بریالیتوب د سکانو واک د پای او د سند
د سین په اوږدو کې د هغوی د ویستلو سبب ګرځېدلی وای. ښکاره ده چې امیر
دوست محمد خان په دې قادر شو چې په ملت کې ثبات او استحکام بیا منځ ته راوړي،
انګریزانو ماته یو ځل بیا د پښتنو د واکمنانو په حیث چې هغوی د غرو او د
سند ترمنځ ژوند کاوه د سکانو ځای ونیوه.

له هغه وروسته دغه دوران تقریباً په یو نوا ختـه منظمتیا سره تکرار شو.
څنګه چې امیر شیر علي خان د کورني مخالفت په له منځه وړلو کې بری ترلاسه کړ او
د مرکزي حکومت کنترول یې منځ ته راوړ، په افغانستان باندې انګریزانو دویم برید

پیل شو. داخلی جنګ او اشغال چې بیایې په افغانستان کې ګډوډي رامنځ ته کړه ـ
امیر عبدالرحمن خان تخت او پاچاهي ته ورساوه چې هغه دلیاقت او یو دارادی
خاوندسړی و. خو دهغه بریالیتوبونه دمخ په وړاندې پالیسي (Forwerd Policy)
په واسطه شنډشوي وو چې دانګریزانو له خوا دهندوستان په مقابل کې دروسي
دریځنیتنې یا تصوري ګواښ د پلانونو په ارتباط طرحه شوي وه چې په ۱۸۷۸ کال
کې یې امیر محمد یعقوب خان مجبور کړ چې دګندمګ تړون لاسلیک کړي چې په
دې دول دخیبر او دمیچنې ددرواو دپښتنو په برخه کې چې هغوی ددغو درو په دوو کې
ژوند کاوه ل، تولو ادعاګانو څخه تیر شو. لاهم وروسته په ۱۸۹۳ کال کې دانګریزانو
هماغې پالیسي امیر عبدالرحمن خان دې ته مجبور کړ چې دډیورند موافقه ومني.
ترکومه ځایه یې چې په افغانانو پورې اړه درلوده، دغه تړونونه یو قطعي سرحد
و تاکه اونه یې له پښتنو څخه چې د ډیورند د کرښې په ختیځ کې یې ژوندکاوه د
لاس اخیستنې مانا درلوده. دا باید ومنل شي چې دغې سیمې په ارتباط دانګریزانو
لخوا دیر اقدامات وشول. دمثال په دول، دانګلیس ـ افغان ترمنځ د ۱۹۲۱ کال
تړون چې دهغه یوه ماده ددیورند د کرښې په باب دوه اړخیزه معلومات تامینوي
هر ګندوی چې لږ ترلږه ځینې له انګریزانو څخه پخپله دغه تړون دیوه تاکلي سرحد
په توګه زیات دنفوذ ددایرو د تاءسیسولو په توګه ګاڼه. په هرصورت، هلته
دافغانانو دشخړې په ارتباط یو زیات شمیر حقایق موجود دي چې دګندمګ تړون
اودډیورند موافقه دواړه دزوریادزور دګواښ له لارې سرته رسیدلې او اعلام شوي وو.
په دې دول افغانانو چې د انګریزانو لخوا تر فشار لاندې نیول شوي وو له زیاتو
قبایلي بلواګانو نه سوا، د یراز څه سرته رسولی شول چې دډیورند د کرښې دختیځې
برخې له پښتنو سره دوستانه تماس تینګ کړي. خو هر افغان حکمران دامیر دوست
محمدخان دزمانې راهیسې دخپل بهرنۍ سیاست د پښت په توګه داهیله او توقع
درلوده چې دشرقي پښتنو له خوا نیول شوې سیمه به یوه ورځ د غربي پښتنو له
سیمې سره یو ځای شي.

دپاکستان له جوړیدونه دمخه زیات برتانوي مامورین په دې باندې پوهیدل اودافغانانو ددریځ په برخه کې یې خپله خوا خوږي ونبودله. سرویلیم بارټن SirwIilliamBartcn چې یوسر حدی افسرواوداوږدی زمانی تجربه یې لرله په دې دول لیکي:

له یوې پیرۍ نه زیاته موده کیږي (دډیورنډ دکرښې په ختیځ کې دپښتنوسیمو) دافغاني سلطنت یوه برخه جوړه کړې ده دکوم لپاره چې دغه سیمې دعقیدې له امله او برسیره پرنژاد دوفادارۍ له امله سره یوه موټی شوي دي. چیرته چې ملي جذبه دومره قوي ده لکه څومره چې په پښتنو کی پیاوړې ده هلته دا ترقع چې دانګریزانو دوسمي مقاماتو لیرې په هغوی له یوه داسې حکمران څخه را بیل کړي چې افغاني یاپښتني نیشنلزم ته یې تحقق اوبښه ورکړه چې په خوراسطحي دلایلو باندې ولاړو. (۳)

البته ځینې عملي دلایل موجود وو چې افغاني حکومت په دغو را بیل شوو پښتنو کې خپله دلچسپي څکاره کړله. دهغوی پنځو یاشپږو ملیونو خلکو ځینې خورا پیاوړې پښتني قبیلي دراودې. که څه هم دسیمې زیاته برخه، په ځنډه کې پرته ده، هلته زیاتی حاصل خیزی سیمې شته. همدارنګه پخپله دډیورنډ کرښه هم یوه اتنولوجیکي ستره بلاوه چې په دو وځانګو دقبیلو دویش لپاره یې نرمې او مغرورانه بې پروایي سره کښل شوې ده اوحتی دخاصو کلیو پروادم رناساتل شوه چې ددې کرښې دپیدایښت په نتیجه کې به منځ ته راشي اوراغلې. خواساساً له دغو پښتنوسره دافغانانو علاقه، یوه دنیشنلزم مساله وه چې له لومړۍ نړیوالې جګړې څخه دمخه له بوسنیا سره (Bosnia) د سربیانو (Serbs) رومښتی زیاته علاقمندی او په نولسمه پیړۍ کی دآستریزین تر(Austrian)سشرۍ لاندې له ایتالویانو سره دایټالیې د زیاتې علاقمندی اوداسې نورولسې مسیالې سره یوشان وه. معمولاً په لیره زمانه کې یوه دغسې داختلاف ورښمه په پای کې دهغې په شپلاړ خلکو پورې تړل شوې ده اوپه افغانانو کی دداد احساس چې دا به په پای کې دشرقي

پښتنو په برخه کې ریښتیاوي ده غه خاص چال چلند وو، واسطه چې دانگریزانو له خوا د هغوی په مقابل کې شوی او د برتانوي هندوستان په چوکات کې ده غوی دشاملولو په برخه کې دکومې ریښتنې هڅې دنشتوالي له امله تقویه شوی و.

تر ۱۹۳۲ کال پورې پښتانه دانگریزانو تر واک لاندې ده یشته شوو خلکو په سیمو او قبایلي اجنسو ویشل شوي وو. په اتکلي ډول، هغه سیمې چې په هغو کې خلک میشته شوي و او دغرونوله لمنې څخه نیولې ترسند پورې راسیدلې چې تقریباً نوله هغه سیمه پکښې شامله وه چې تش په نامه دسکانو تر کنترول لاندې وه. داسیمه چې اصلاً دپنجاب دحکومت تر واک لاندې وه، په (۱۹۰۱) کال کې دلارډ کرزن ترمشرۍ لاندې رابیله شوه او یوه جلا شمال لویدیځ سرحدي ولایت شو چې داعلی کمیشنر له خوا اداره کیده چې په دهلي کې مرکزي حکومت ته مستقیماً مسوول و.

په ۱۹۳۲ کال کې یوه ویلایتي سیمه وگرزیده چې د یوه والي له خوا اداره کیده؛ په ۱۹۳۷ کال کې ولایت ته اجازه ورکړل شوه چې د هندوستان دحکومت د ۱۹۳۵ کال دقانون تر شرایطو لاندې یو انتخابي وزارت جوړ کړي.

قبایلي اجنسۍ گانې یوه بل موضوع وه. دغو اجنسیو دغرونو پېل او دډیورند دکرښې تر منځ سیمه احتوا کړله او تقریباً دټولو پیاوړو قبیلو سیمه پکښې شامله وه چې هیڅکله یې خارجي واکمنۍ نه وه منلې. د ملاکند، خیبر، کرمې، شمالي وزیرستان او جنوبي وزیرستان دپنځو (اجنسیو) تر اداري لاندې (په کومو باندې چې دپاکستان حکومت یوه شپږمه اجنسي زیاته کړې ده چې هغه دمومند اجنسی ده) دغه قبایلي خلکو سره دسیاسي افسرانو له لارې چال چلند کیده چاچې له یوې خوا هغوی ته بشپړه داخلي آزادي ورکړې وه په داسې حال کې چې له بلې خوا یې هغوی دمرستو هوایي بمباریو او جزائي عملیاتو دوسیلو په واسطه تر کنترول لاندې نیولي وو.

لهذا، دا چې انگریزانو هڅه ونه کړه چې «آزادي» یا «خپلواکې» قبیلې (دا

گلمي معمولاً د برتانوي مامورينو له خوا استعماليدې چې قبلې تشريح کړي) په هندوستان کې شاملې کړي، خو له قبيلو سره يې د پنځه سټلو وجود وقبيلو په حيث چال چلند کاوه چې دريځ به د هند ستان د حکومت او پخپله د قبيلو د جرگو ترمنځ په تړونو يا موافقو پورې اړه درلوده. دې حقيقت افغانان تشويق کړل چې په دې باور وکړي چې له هندوستان څخه د بيلتني په صورت کې به انگريزان په يقيني توگه دغو خلکو ته اجازه ورکړي چې خپلې لرغوني وفادارۍ ته مخه کړي. دغه هيلې له برتانوي رسمي مقاماتو سره د خصوصي مذاکرو په ترڅ کې تريوې اندازې پورې تقويه شوې کله چې د هغوى زيانه توجه د هندي کانگرس د گوند (Indian Congress Party) او د خپلواکۍ په اوږدو گوند د بې رحمه مارش خواته وه. خو دغه هيلې د مسلم ليگ (Moslem League) د شهابې راپورته کيدنې په واسطه مړاوې شوې وې چې غوښتل يې د هند نيمه وچه وويشي.

د ۱۹۳۷ کال په لومړيو وختونو کې افغانان په سرحدي ولايت کې د مسلم ليگ د پرو پاگند ديرې له امله ترډې اندازې پورې په ويره کې لويدلي و و چې هغوى د خدائي خدمتگارانو په مقابل کې خپل ترند خصلت پريښى و. که څه هم دغه خدائي خدمتگاران تش په نامه سره د کانگرس گوند پلويان وو خو په حقيقت کې هغوى ديوه خپلواک پښتني دولت لپاره کار کاوه. (٤)

له دويمې نړيوالې جگړې نه وروسته پښتو دومره په چټکۍ سره پراختيا و مونده چې دغو پښتو افغانان اريان کړل. د ۱۹٤۷ کال د فبروري په ۲۰، صدراعظم کلمنت اتلي (Clement Attlee) اعلان کړه چې د ۱۹٤۸ کال په حوت کې به هندوستان ته خپلواکي ورکړل شي او د لارډ لوئيس مونت بېتن (Lord Louis Mount Batten) سپارښتنه يې ورزياته کړه چې د ويش له پرنسيب څخه په کار واخيستل شي. دغه پيشنهاد د ۱۹٤۷ کال د جون په ۳ د پارلمان له خوا په يوه شرط سره ومنل شو او هغه دا چې په برتانوي هند کې (مگر نه په هغو ولاياتو کې چې

دشهزادګانو تر واك لاندې دي) عامه رايه اخيستنه بايد اولس ته د هندوستان لـه هندوانو او يا د پاکستان له مسلمانانو سره ديوځاي کيدو دانتخاب حق ورکړي. ددي کار په مقابل کې افغاني حکومت سمدلاسه اعتراض وکړ او غوښتنه يې کوله چې د شمال لويديځ په سرحدي ولايت کې دي خلکو ته د انتخاب دوه نور حقونـه ورکړل شي يعني له افغانستان سره ديوځاي کيدو يا ديوه جلا پښتون ملت دجوړولو حق. د هغوي غوښتنه په زغرده سره رد شوه؛ د دويمې غوښتنې په برخه کې سکړت اختيار شو.

د دغې په زغرده ردونې بيانول مشکل دي. دانا ممکنه ده چې ووايو چې ايا دشمال لويديځ سرحدي ولايت پښتنو بـه له دغو افغاني التر نيتيفونو څخه دکـوم يوه لپاره په ضروري توګه رايه ورکـړي واي که نه. خو حقيقت پر ځپل ځاي پاتې کيږي چې دغـه پښتانـه په زوروسره د افغانستان له پښتنو څخه جلا شوي وواو اوس هغوي ددوو جانشينو دولتونو ترمنځ يوه انتخاب تـه چې زړه نا زړه محدودشوي ووچې بوله دغو دولتونو څخه روميي هيڅ موجود نه واو په دي توګه يې دسيمې په برخـه کې کومـه ممکنـه ادعا نـه درلوده.

دانګريزانودپريکړي لپاره ددليل يوه برخه پرته له شك څخه د يوې شرنـې په سربانديي «دپخواني هندوستان دقدرتونو» خپګان وچې هغـوي ددي انحراج پوره اصلاً پـرهندوانـو اود هغـوي پـرمشـرانـو نـهـرو (Nehru) اوګـانـدي (Gandhi) بانـدي اچـولـه.

دسپاهيانو دبغاوت راهيـې (Sepoy Rebellion) دهـندوستـان مـسلما نـا نـو تـه خاص امتيازات ورکړل شوي وو او دهندوانو په پرتله يې په زياتـې ثابتي وفا داري سره يې مبا دله کول. داريښتيا ده چې هلته د مسلمانانو تحريك موجود وفا په تيره بيا په لومړي نړيوال جګړه کې دترکي ترماتې وروسته دسوراج (SwaraJ) لپاره موءفقانـه حرکت اصلاً دهندوانو له سبـه وو. پرته له شك څخه انـګريـزانـو دليل راوړ چې که چيري يو پياوړي پاکستان چې دهندوستان د ممکنې دښمني

په صورت کې دقواوو اندول برابر کړي جوړ شوي وای، دهغوي داوزدي مودي گټو لپاره به یې په ښه شان سره کار کړي وای.

دغه استدلال تر یوې اندازې پورې دېر شېر برتانوي ما مورینو له خوا تائیدېږي چې هغوي په پېره خېل د تاپپ ماشینو ته لاړل چې په پاکستان کې د پښتنو لـه شمول څخه دفاع وکړي. دهـر تجربه لرونکي او دپوهې خاوند په نظر دهغوي مناقشي نسبت دلیل ته زیات د تعقل ښه درلوده. پـه هغومنـا قشو کې دغه فرضیه ( thesis ) شامله ده چې پښتانـه په یو دول سره له پختنو نه تو پیر لري او دغه څر گندوني هم پکښې شته چې پارسي د پښتو په پرتله تر زیاتې اندازې پورې د دربار ژبه ده او د رانیان په پښتو ژبه نه غږېږي. له یوې پېړي نه زیاتـه موده کېږي چې برتانـوي مامـورینـ چې پـل یې لـه نما متـو او څیـرك مـونـت ستـوارت الـفـنـستـن ( Mountstuart Elphinstone ) سـره کېـږي پـه دې عـقیـده وو چې پښتـانـه، پختانـه او افغانـستان سره یو شان وو او په دغه تـکي بـانـدې هیڅـکلـه د کـوم هندي له خوا یا پخپله دخلکو له خوا اعتراض نه دی شوی. درانیان البته په پښتو ژبه خبرې کوي (او بر سیره پر پښتو زیاتر وخت په پارسي هم غږېږي.) پارسي وښتیاهم دافغانستان دپیل راهیسې ددې هیواد ددربار ژبه ده ځکه چې داژبه پر ستیڅ، پراخه ادبیات او د کـلمو ستره ذخیره لري. احمد شاه بابا چې دافغانستان بنسټ ایښودونـکی (مؤسس) او ددې هیواد یو له نامتو شاعرانو څخه دی په پښتو لیکل او زیاتره افغاني حکمرانان چې په هغو کې امیر عبدالرحمن خان او شاه شجاع هم شامل دي له پښتنې میندو څخه زېږېدلي دي چې هغوي ددیورند د کرښې له ختیځ څخه وي. خوحتی پخپله دپاکستان نوم داانگریزانو د دلیل بو رددي ځکه چې لومړنی الف (a) دافغانیا (Afghania) یاد (افغاني ولایت) څخه دنمایندگۍ کولو لپاره معرفي شوي دي. په بل عبارت دشمال لویدیځ سرحدي ولایت څخه دنمایندگۍ کولو لپاره.

په هر صورت، په شمال لـویدیځ سرحـدي ولایـت کې عامې رایې اخیستنې وښودله چې ۲۸۹۲٤٤ رایې له پاکستان سره د یو والي لپاره او ۲.۷٤ رایـې لـه

هندوستان سره د پیوستون لپاره ورکړل شوې وې. خو، افغانانو د نتیجې د ظاهري یو اړخیز توب تر اغیزې لاندې نه وو راغلي. هغوي څرګنده کړه چې یوازې په سلو کې ٥ر٥٥ خلکو چې د رایې ورکولو حق یې درلود په عامې رایې اخیستنې کې برخه، واخیستله او خپلې رایې یې چې پر کاغذ ونو لیکل شوې. په صندوق کې واچولې په داسې حال کې چې په سلو کې ٦٨ خلکو د تیر کال په ولایتي انتخاباتو کې رایه ورکړې وه یعنې دادې مطلب ته یې اشاره ده چې نسبتاً زیات شمیر خلکو په انتخاباتو کې رایه نه وه ورکړې. علاوه پر دې افغانانو عقیده درلوده چې د انتخاباتو بله هره نتیجه به په یوه داسې سیمه کې چې هلته په سلو کې ٩٨ مسلمانان وو ناممکنه وای او د ټولنیزې کړکې له امله چې ټول هندوستان یې نیولی و په تیره بیا کله چې له قرآن او ګرنګ څخه کار واخیستل شو چې د پاکستان او د هندوستان د رایې صندوق و قوزه معرفي کړي.

سربیره پر دې افغانانو ولیدل چې په قبایلي نمایندګو کې پښتنو ته اجازه ورته ګړل شوه چې رایه ورکړي. د دې پر ځای یوه برتانوي مامور سر جرج کنینګم (SirGeorge Cunningham) سفر ته، دوام ورکړ په کوم کې چې هغه د سرحد سرتیرې په پورې د ټولو لویو قبیلو له جرګو سره مرکه وکړه پرته له استثنا څخه هم وي په لیکل شو و څرګند و نو کې بیان او تأیید کړه چې هغوي د پاکستان یوه برخه وه او هیله یې ښکاره کړه چې له پاکستان سره ورته اړیکې خوندي وساتي چې له انګریزانو سره یې درلودې.» (٥) دغه وینا البته تر کومه ځایه پورې چې په غه‌نکی پورې اړه لري سمه ده خو دا یو شمیر عیبونه او تیروتنې لري چې افغانانو نه څرګندې دي. دا یه د قبیلو لپاره چې د مذهب له پلوه په شمال لویدیځ سرحدي ولایت کې تر خپلو ګاونډیو زیات محافظه کاره دي او په عمومي ډول یې په مذهب کې تر هغوي پوهه کمه ده دیره شي لپاره له تصوره لیرې وای چې (کافر) هندوستان په مسلمان پاکستان بانــدې غوره وګڼي. خو په دې فقره کې هغوي ... هیله ښکاره کړه چې له پاکستان سره ورته اړیکې خوندي وساتي چې له انګریزانو سره یې

درلودې، حتی له دینه هم یوه لویه طعنه پرته ده چې ظاهراً یې دسر جورج کنینګم Sir George Gunningham په فکر دیوه شي مانا درلوده او دافغانانو په فکر یې بیخي دبل شي مانا اورکول، او ډیراحتمال هم لري چه په خپله دقبائیلي خلکو په فکرئې لاهم بله مانا ورکوله. سره له دې هم هغوی له لوېې بریتانیې سره په خپلو اړیکو کې مستقل وو او له انګلستان څخه یې د...:۷۵ پونډ ویوګتوره کلنی مرستیه ترلاسه کړه :

افغانانو درك کړه چې کدا وضع انګریزانو ته څو روونکې وه خود منلووړ وه او دانګریزانو لپاره سرحدي سیمې مازې دامپراتوری یوه حاشیه وه او دغه مرسته دامپراتورۍ په بودجه کې یولږ شی و. خو دا به دپاکستان په فکر چې داقتصاد له پلوه له پیل څخه کمزوری، د فرقه پرستۍ له امله په بلااوښتی لرله هندوستان سره په یوې پرله پسې جګړه کې ښکیل شوی و دزغملو وړنه وای .
پاکستان په څرګند ډول سره څخه وکړه چې هغه څه سرته ورسوي چې انګلستان یې له سرته رسولو څخه زړه تورن شوی ویعنې قبایلي خلک به دننه په دولت کې سره یو ځای کړي. پاکستان چې له اسلام څخه یې پیروي کوله یوه وسله درلوده چې دلویې بریتانیې تر ټولو پوځونو قوي وه اوداو سله پخپله اسلام و .
همدارنګه افغانانو مجادله کړې وه چې له قبایلي جرګو سره غونډې او کتنې د هماغه وخت دشرایطو په رڼا کې پخپله دعامه رایه اخیستنی په پرتله ازښې مانه‌وې :
د۱۹۴۶ کال دآګست۱۶، نیټې راهیسې چې داود مستقیم عمل، (Direct Action) ورځ وه په ټول هندوستان کې عامه وژنه اولړ تماري شوې وه او له کلکتې څخه تر پنجاب پورې ښځوته، لاس اچول شوی و. دپیښتنو دجګړه ماري اوله اسلام سره دهغوی د زیاتې مینې سره سره شمال لویدیځ سرحدي ولایت دیوځه مودې لپاره غلی اوارام پاتې شو ؛ خو کله چې ګډوال (مهاجرین) له دهشت څخه دګو کیسو سره را ورسیدل ؛ تولنیز احساسات او جذبات راو پاریدل او د کینې دیودنغر یو شاونخوا او په بازارونو کې دمتعصبو ملایانو دتشو یقې نخبرو په وسیله

پاریدلي قبایلي خلکو زر تشدد ته مخه کړه . د۱۹٤۷ کال دسپتمبر په ۷، هلته پرسکانو او هندوانو باندې هغه چې په پېښو راونو ښار کې دپناهګاه مرمتي لپاره راغونده شوي وو خورا زیات برېدونه وو . په‌یو څو ورځو کې ترل سکان او هندوان په نوموړي ولایت کې مړه یاتښتید لي وو .

افغاني حکومت په میړانې سره (لکه څنګه چې دخدائي‌خدمتګارانو مشرانو ګامونه‌اوچت کړل) په ښکاره‌دول دظلمونو‌او بې‌رحمیو‌په غندلو کې ګامو نه پورته کړل‌اودهغو مشکرکړ ملایانو. تشدد څخه، دلك‌اعمال‌بې‌په‌داګه بیان کړل‌چې هغوی د امان‌الله‌خان دزماني راهیسي ناخرګند او هویت‌بې چاته څرګند نه و . سکانو او هندوانوهغو چې‌ځانونه‌یې افغاني‌سرحد ته‌ورسول پناه‌ګاه اوحمایه یې‌ترلاسه کړل اوو روسته بیاد ایران له‌لارې هندوستان ته ولیږل شول یعنی دا د تیرې زمانې دافغاني پر غلګرو دچپاوونو څه ناڅه تلافي وه . هیڅ یوله هغوی څخه په افغاني خاوره‌کې تبي شوي‌نه و. دغه دول‌ده کوټه او ځان ژغورنه په اسلامې احساس او غیرت کې یوه نیمګړتیایا په هندوستان کې په وینو کې لمبیدو څخه ځان لری کول نشي‌ګڼل کیدای ځکه چې هلته زیات انغانان موجود وو چې هغوی په عام قتل کې له منځه تللې وو. زیاتره له دغو افغانانو څخه سلیمانخیل غلزي وو چې مشخص اوڅرګندوځپړو، ځان‌ستایونکي‌سلوك‌او دسودخورو په حیث یې شهرت هغوی څرګند هدفر له وګر زول.

دوار په وارزیاتیدونکي تولنیز تشدد څخه دکار انخیستلو په‌نتیجه کې په شمال لویدیځ سرحدي ولایت‌او په قبایلي اجنسیو (نمایندګیو) کې څرګندتیا په‌زیاتې اندازې سره پاتې شوه. دی‌ولایت‌د۱۹٤۷ کال داکتوبر په ۲۵، دکشمیر پ‌قبایلي یرغل‌کې خپله آزادي ترلاسه کړه. افغاني حکومت یو ځل‌بیا په زیاته اندازه هڅه وکړه‌چې دقبایلي خلکومخه ونیسي او پرې‌نیږدي چې هغوی دملایانو چې خالك یې جهادته رابلل په مقابل کې په مستقیم دول جنګ وکړي یاله هغوی سره مخامخ مخالف وکړي. دغه‌هڅه‌دهغوی په مخنیونه کې‌څه‌ناڅه بریالي وه‌خوڅرنګه چې دغه برید

دغلزيو دمني دليزد په وخت کی وشو،انا ممکنه وه چی دځينو کوچنيانو مخه دې ونيسي چې په جګړه کی برخه وانخلي. (٦)

په دی کی شك نشته چې نوولنيزی کړکېچ او دکشمير يرغل دواړو دپاکستان په تاسيس کې مرسته وکړه او په عين وخت کې يې دشرقی پښتونو د ملي په باره کې دافغانستان د ادعاګانو مخه ونيوله. لسرجورج کنينګم سره دجرګو غونډی د۱۹٤۷ کال په نومبر کی چې ورپسې دټولنيز تشدد بغاوت سمدلاسه ونځنه راغی او دکشمير دجګړی په وخت کې پيل شوی. داب په همدې وخت کې دهر قبايلی سړی لپاره تقريباً ناممکنه وای چی دکرم عمل په باب داسې نظر څرګند کړی چې دغه بنايی دپاکستان پر ضد او دکافر په پلوی تعبير شی. ډير احتمال لری چې مسلم ليګ او پاکستانی رسمی مقاماتو دکشمير قبايلی بريد کوونکو ته څه ناڅه ديوی عقيدی له مخې مرسته ورکړی وی چې کشمير چې زياتره وګړی يې مسلمانان دی بايد دحق له مخې دپاکستان يوه برخه اوسی. داهمدارنګه احتمال لری (لکه څنګه چې افغانان او هنديان دواړه ټينګار کوی) چې دغه مرسته په څه ناڅه زړ ديوی ارادی له مخې ورکړل شوی وی چی د دمسلمانانو ليبرالی راوپارونکی دپښتنو دجلالی مخه ونيسي او خدايي خدمتګاران يې اشتباره کړی او دافغانستان داقدام مخه ونيسی. خدايي خدمتګارانو په دی وخت کی په ناڅاپی توګه ديره متحدهندوستان لپاره دخاکر له رابلو څخه لاس اخيستی واو ددی پر ځای يې ديوه جلالت (پښتونستان) دجوړيدو څخه دفاع کوله چې بايد له شمال لوديځ سرحدی ولايت او قبايلی اجنسيو څخه جوړ شي.

د۱۹٤۷ کال دنومبر د مياشتې دپای په ورځو کې و چې افغانی حکومت يو ځوان امر نجيب الله خان کراچی ته وليږه چی له محمدعلي جناح او دپاکستان دبهرنيو چارو له وزير ښاغلی ظفرالله خان سره يې لرمذاکری سرته ورسوی. نجيب اله خان ددير رند د کرشي په حقيقت کې دپښتنو دسرنوشت په سر د افغانانو پر علاقه باندی ټينګار وکړ او په دی سيمه کی يې دپاکستان دتصميم داعلان هيله وکړه. دپاکستانی مشرانو څخه هيڅ يوه دکاغذ پرمخ کوم شی ونه ليکل خو هغوی ظاهراً

افغاني استاځي قانع کړ چې د پښتنو داخلي استقلال ته به په دوزه سترګه وکتل شي؛ دا لږ ترلږه یو خبر او زیری و چې افغاني استاځي خپل حکومت ته له ځانه سره راوړ.

دا د ۱۹٤۸ کال د جون په ۱٦ ، نیته څرګنده شوه چې افغاني استاځي یا خو تیرا یستل شوي و یا خو یې بې ضروره ته داسې نتیجه ګیرې کړي وه چې د خوشبینۍ په نظر ولاړه وه. په هماغه نیته د پاکستان حکومت خپل د څارندوی ځواکونه را وغښتل او خان عبدالغفار خان ، ډاکتر خان صاحب او د خدایي خدمتګارانو نور مشران یې ونیول چې په چټکي سره محاکمه شول او په بند محکوم شول یا په خپل کورکې (له مخربې قواوو سره چې په سرحد کې فعاله وې د دسیسو جوړولو په خاطر تر نظارت لاندې ونیول شول .) تقریباً په همدې وخت کې د پاکستان پوځي واکمنانو چې هغوی لاره مومې په قبایلي اجنسیو کې د ځای په ځای شوولیوا ګانو چې انګریزانو یې ساتنه کوله شمیر له اته څلوېښت څخه نږدې پنځو لیوا ګانو ته کم کړې و پیل وکړ چې دغه مخکښې (پیش قراول) چاوڼې ګانې تقویه کړي او د هغوی له هوائي پوځ څخه دلرې پرتو سیمه و د مخالفینو په مقابل کې کار واخلي . د دغو بریدو نوله اصلي او مهمو هدفونو څخه یو هم افغاني سرحد ته نږدې دایپې فقیر مرکزي اداره وه ځکه چې هغه سخت دښمن چې ټول عمر له لوېې بریتانیې څخه متنفر او س یې د خپلې کرکې مخه د پاکستان خوا ته راګرزولې وه.

له همدې وخت نه راپه دې خوا افغاني حکومت د پاکستان له خوا د یو وروغې په برخه کې له ټولو هیلو څخه لاس واخیست او په ښکاره توګه یې دیره خپلواکه ملت (پښتونستان) د منځ ته راوړنې اپاره مبارزه پیل کړه چې باید د شمال لویدیځ سرحدي ولایت له پښتنو ، قبایلي اجنسیو او بلوچستان څخه جوړ شي . په دغه مبارزه کې هغوی د قبیلو په منځ کې له خپلو زیاتو تماسونو او د کابل راډیو او د افغاني مطبوعاتو له ټولو منابعو او وسایلو څخه کار واخیست . پاکستان په دغه ټوله موده کې په ټینګه سره عقیده لرله چې د غې مسالې هیڅ نتیجه نه درلوده، د قبایلي مرستو دزیاتولو په واسطه یې خپل کسات واخیست ، په سرحدي ولایت کې یې د څارندوی

فعالیتونه زیات کړل نو دغه پښتو هیوادد مطبوعاتو او راډیو له لاري يې پر افغانستان باندي تبلیغاتي بریدونه آزاد او بيل کړل .

د ۱۹٤۹ کال داګست په ۱۲، پېښور ته نیژدې قبایلي خلکو دغو قبایلو د تیرا په مرکز تیرا بغه کي سره وليدل او له مشورې وروسته يې ديوه نوي ملت پختونستان یا پښتونستان تاسیس اعلام کړ دکوم اداره چي هغوی په بیرغ ونه چې په هغه کې يوسور غرله لمر سره مخامخ دی چي دراختو په حال کي دی . د هغوی داعلامیې په یوه برخه کي داسي راغلي دي :

مونږ دپښتونستان دملي جرګې غړي چي د تیرادهسکو غرونو په مسځ کې مو ډ یوه ازاداوخپلواک اسلامي دولت لومړی هسته جوړه کړی ده هیله څرګنده وو چي دلوي خدای په مرسته اودزړه ورو او پرآزادی مینو پښتنو په ملاتړ بنايي دغه ځوان نیالګی په یوه لنډه موده کي یوه تینګه ونه شي چي نه یوازې پختونستان (له چترال نه نیولې تر بلوچستان پورې او له خیبر او بولان نه نیولې بیادسیند تر سواحلو پورې رسيږي ) په ترینه ګټه واخلي بلکې دپرمختګ او د نړېوالي سولې دمسالې په برخه کې به هم خپل تعهدات ترسره کړي . (۷)

په افغانستان کې دغه عمل په زياتې لیوالتیا سره ونمانځل شو او حکومت اعلان کړه چي دغه کاريو سملاسي په رسمیت پيژندنه او ملاتړ ته پراختیاو رکوله. تقريباً په همدې وخت کي یوې بلې جرګې په رزملک کي غونډه وکړه او دایپي فقیر يې دجنوبي پښتونستان رئیس وټاکه. وروسته له هغې زر افغاني اویې جرګې په کابل کې غونډه وکړه او اعلان يې کړه چي دافغانستان او اوبړتانیې تر منځ ټول تړونونه او په تیره بیا ددیورند دکرښې قرارداد ملغا او داعتبار وړ نه وو .

پاکستان چي دکړنیو ستونزو له امله په بلا اوښتی و په رسمي ټوګه دغه پرمختګونه دافغاني تخرېبل دافسانو په حیث یا د یوه لږ شمیر مخالفینو دکار په حیث ردکړل چي هغوی ته دافغاني حکومت له خوا اجوره ورکول کیده. په واقعیت کي پاکستاني مشران تر زیاتې اندازې پورې اندېښمن وو او د ۱۹٤۹ کال په دسمبر

کې ډېري هڅه وکړه چې پر افغانستان باندي په دې پلمه چې افغاني ټانکرونو د تېلو د پر شرایطو پر ځېنو کړای د نفتي موادو د انتقالاتو د بندولو له لارې فشار واچوي. په عین حال کې د کراچي له لارې د افغاني صادراتو او وارداتو انتقالېدل او سربېره پر دې له بهرني نړۍ سره د افغانستان د ارتباط عمده وسیله چې د مالونو وړلو او راوړلو په برخه کې تر بنده کاراخیستل کېده سست او د مالونو وړل او راوړل په واقعي توګه بند شول. پاکستان قبیلو ته دګواښونو او امتیازونو یو مخلوط پیشنهاد وړاندي کړ. مرستو دوام وموند؛ هغه مرستې چې پاکستاني ډلو او ملکانو او ملایانو ته ورکول کېدې د هغو اندازه زیاته شوه او یو شمېر دېره موده ځنډېدلي اقتصادي پروژې په سرحد کې پیل شوې په دغو پروژو کې په ورسک، درګی او ملکنډ کې د اوبو برېښنا پروژې، مردان ته نږدې د بورې کارخانې په کوهاټ کې د وړیو فابریکه او په پېښور کې د صنعتي دستګاه شاملې وې. هیڅ هڅه ونشوه چې په تېرابګ، یار زملک کې قبایلي خلکو ته ورسېږي خو د پاکستاني پوځ ټولګي (واحدونه) سرحد ته راستانه شول او له هوایي قوې څخه کار واخیستل شو چې د مشرانو کورونو ته بمباري وکړي چې هغوی د پښتونستان د طرفدارانو په حیث پېژندل شوي وو،

د دغه نوي بحران په مقابل کې د نړۍ عکس العمل تو پیر در لود. هندوستان له اول نه د افغانانو دریځ تائید کړ او د ۱۹۵۰ کال د جنوري په اول نیټه یې له افغانستان سره «د ابدي دوستۍ» یو تړون لاسلیک کړ. د «پښتونستان یو شمېر ورځې» د پاکستاني سختو اعتراضونو سره سره په هندي ښارونو کې ونمانځل شوې او هندي نطاقانو او دورځپاڼو مدیرانو د افغاني ادعاګانو ملاتړ وکړ.

د امریکې متحده ایالات چې په یوه نا آشنا سیمه کې په یوه نامعلومه رول کې ښکېل شوي و د یوه اندېښمن منځګړي دریځ غوره کړ او د سولې اداره یې هیله کوله چې داده نه وه چې څنګه یې منځ ته راوړي. افغانستان او پاکستان دواړه د متحده ایالاتو په مقابل کې صمیمي او د شوروي اتحاد په مقابل کې مخالف رو او

څرنګه چې دا ښکاره وه چې د امخالفت او ټکرد متحده ایالاتو په ګټه نه ونو متحده ایالاتو په دریو وختونو کې پیشنهاد وکړ چې د شخړې او لانجې په برخه کې منځګړتوب وکړي؛ یو ځل یې پیشنهاد وکړ چې دیوه منځګړي په حیث اقدام وکړي او وروسته یې دمنځګړتوب لپاره دمصر او ترکیې رسمي مقامات پیشنهاد ول؛ هر ځل پیشنهاد دافغانستان له خوا ومنل شو او د پاکستان له خوا رد شو او مخالفت یې کاوه چې دایوه کورنۍ مساله وه او نه په منځګړتوب پورې مربوطه یوه موضوع. له بلې خوا افغانانو ځانبې وسه ولیدکله چې متحده ایالاتو په مکرر دول سره افغانستان ته دوسلې له برابرولو څخه دده وکړه.

دامریکادا پریکړه ددې عقیدې له مخې شوې وه چې دهغوی په نظر دیر احتمال یې دراود چې دغه دول مرسته ددې پرځای چې دشوروي اتحاد (U.S.S.R) پرضد په کاروا چول شي دپاکستان پرضد به تر ینه کاروا خیستل شي. افغانانو څرګنده کړه چې دغه دول ویرې پاکستان ته دوسلو دبرابرولو په برخه کې دلویې برتانیې مخه ونه نیوله او دپاکستاني هوائي ځواك سپټ فایرز نومي الوتکو (pitfires) په څرګند دول سره ددویمې نړیوالې جګړې څخه دمخه ددولس کمزوروالو ودوه وزروالوتکو څخه په کومو چې افغانستان سمبال شوی و توپیر درلود. دغه توپیر په تیره بیا افغانانو ته هغه وخت غم زیاتوونکی او اندیښمن کوونکی و کله چې د ۱۹۴۹ کال په جون کې پاکستاني الوتکو د مغولګي کلي چې تقریباً دوه میله اري دډیورند د کرښې لویدیځ ته پروت دی بمباری کړا ویو شمیرتا وانونه (مرګ اوژوبلې) یې وروا ړول. پاکستان دغه پیښه تائید کړه څوددې پیښې دمنځ ته راتللو پړه یې پر یوه پیلوټ واچوله اودایې دهغه سهوه وګڼله. افغانانودجبیرې اوتاوان په برخه کې دپاکستان له خوا پیشنهاد رد کړاو دایې له څینو حقایقو سره څرګنده کړه چې دغه توضیح دپاکستان دا ریکړه باب چې له خپلو اتباعو سره یې لري یوه په زړه پورې تبصره وه:

که موږک د غوايي غوندې لوی هم وي
بيا هم د پيشو مړيی دی
(پښتو متل)

# اتلسم څپرکی

## افغانستان

## په ساړه جنګ کې

بويه چې د دې هيواد په تاريخ کې هېڅ کال د افغانستان لپاره د ۱۹۵۳ کال په پرتله زيات اهميت نه درلود. د همدغه کال په اوږدو کې درې بې رابطې پېښې منځ ته راغلې چې پر دې هيواد باندې يې ژوره اغيزه وکړه او افغانستان د دغو پېښو د اغيزو له امله د سياست او داخلي پرمختګ په برخه کې نوې لارې غوره کړې.
له دغو پېښو څخه لومړنۍ پېښه د امريکې د جمهوري رياست په انتخاباتو کې د جنرال ايزنهاور ( General Eisenhower ) بري او جان فوسټر دالس ( John Foster Dulles ) ته د امريکې د بهرني سياست د لارښوونې د واک ورکول و. د دالس (Dulles) پروګرام لا تر اوسه پورې په بشپړه توګه ارزيابي کېدای نشي خو افغانان د دې پروګرام له پړاوونو څخه د يوه پړاو په برخه کې هېڅکله شکمن نه وو. مانا دا چې د متحدينو د يوه سيستم له مخې چې د ژباني پوځي مرستې په واسطه به ملاتړ کېده يوه پرېکړه وشوه چې په منځني ختيځ کې د شوروي اتحاد د پراختيا مخه ونيسي. افغانانو ته دغه په اصطلاح «شمالي ليکه» د شرارت د ګنبدې د محوې په مفهوم وه او ده. د دغو په نظر د ايران پاکستان

یا عراق په څېر کمزور وهیوادو ته هرانداز ه امریکائي پوځي مرستي له دېنه ځه زیات نشو کولای پرته له دې چې دشوروي اتحاد پرمخ تـلونکي پوځ ناکراره کړي. افغانان په مطلق دول سره متیقن وو چې دشوروي اتحاد مشرانو دغه دول مرامونه درلودل. (۱) له بلې خواهغوي په دې معتقد شول چې منتخبو ملتونو تـه امریکائي پوځي مرستي به په سیمه کې دقوی‌اند ول په جدي تو گـه سره گـډود کړي او ناپیلي هیوادونه به اړ کړي چې خپل پام لـه حیاتي انکشافي پروژو ځخه دوسلو دبي ځایه سیالي‌ته راواړوي اوخپله‌بودجه دحیاتي انکشافي پروژو پرځای دوسلو دبي ځایه سیالي په‌لار کې ولـگوي .

په واشنگټن کې دحکومت‌له بدلیدو نه دوه میاشتې وروسته،مسکو دجـوسف سـتـالیـن (Josephstlin) مرگـ اعلان کـړ لـه دغه نـا ځـا یـي اعـلا ن نـه چې ل، هغه،سره دشوروی اتحاد پالیسی دخپل اسیایي گاونډیو په ارتباط بدله‌شوه داسې ځر گندیږي چې دشوروی اتحاد طراحان دیوه سرزوري‌دیکتاتور ترمشرۍ لاندې له اوږدې زماني راهیسي په غوصه وو. په ښکاره‌دستالین ( Stalin ) نوو یا دشـوروی اتحاد جنـوب تـه پراتـه دپرمختیا پـه حـال کې هیواد وته بې‌تفاوته واو په‌تیره بیاهمداړنگه‌وروسته له هغه‌چې دهغه‌حکومت په ۱۹۴۵ او ۱۹۴۶ کلونو کې په‌ایران‌او ترکیه‌کې دپرشا‌ٔلمنو زیانو نه‌وزغمل. په‌شرقي‌ار وپاکې‌دشوروی‌اتحاد دگټو پیاوړې کول،دشوروی‌اتحادصنعتي‌سیستم بیامنځ ته‌راوړل اوله‌پانگوالي نړۍ‌سره دجنگ‌لپاره ځان چمتو کول دستالین ( Stalin ) چې‌په‌مارکسستي عقیدی ټینگ ولاړوله اساسي پلانونواوکارونو ځخه وو. هغه له‌آسیائي طرز تفکراو سارك سره چندان علاقه،نه‌درلوده‌چې‌شوروی‌اتحاددملگرو ملتو نږدتخنیکي مرستي په پروگرام کې برخه‌و انخستله یایې‌وته‌غوښتل‌چې‌دیر نسکوغړی اوسی. دایو پالیسی نه وه‌چې په‌اسیا کې‌دشهرت لپاره غوره‌او ترینه کار و اخیستل‌شي. شرقي هیواد ونو ته‌حتی له‌دېنه هم زیات په قاروونکي هغه دستور و چې لـه کموم انفـارم * COMINFORM

---

* دایو سازمان وچې‌دشرقي اروپا دکمونیستي هیوادو نوترمنځ‌داطلاعاتود تبادلې‌لپاره په ۱۹۴۷ کې جـوړ شـو.(مترجم)

سازمان څخه ورکول کیده چې دغه سازمان په دې وخت کې د شوروی اتحاد تر کلك کنترول لاندې وچې اسیائی کمونیستانو ته لار ښوونه وکړي چې له لینني - ستالینني عنصري (Leninist — Stalinist) نظر سره سم د بورژوا نیشنلیزم «bourgeois nationalim» پرضد ودریږي او مخه یې ونیسي چې دغه د انقلاب پری فقط د وسلو والې جګړې «Armedstruggle» له لارې تر لاسه کیدای شي چې دملي بورژوا حکومت پر ضد دملي کمونیستي ګوندونو له خوا پر مخ بیول کیده.

دغې پالیسی پرته له دې چې مربوطه حکومتونه په قسار کړي نورڅه ونشو کړای خو هغه څه چې حتی له دېنه هم زیات دشوروی اتحاد ګټوته زیان رسوونکی وه هغه دا وچې هغه دارنګه دغې پالیسی داسیا خلك بیګانه کړل. دبورژوا نیشنلستي ډلو (BourgeoisNationalist) لکه دهندوستان کانګرس پارتی (Congress party of India) او پاکستان مسلم لیك د ملي خپلواکۍ لپاره جګړه په بری سره پرمخ بیولې وه او په دغه کارکې یې دا واکس پراخ ملاتړ لاسته کړی و.

افغانستان یو کمونیست ګوند نه درلوده خو افغانی مشرانو له نږدې نه خپل ګاوندیان څارل. بر سیره پر دې په افغانستان کې یو شمیرنا ورو پیښې منځ ته راغلې وی چې په شوروی اتحاد باندې یې دافغانانو بې اعتمادی او بدګمانی زیاته کړه. زیاتره له دغو پیښو څخه دجاسوسی او تدریجي نفوذ په تیاره ساحه کې وی. یو روسی انجنیر په ظاهره وتښتیده چې په افغانستان کې پناه وغواړی چیرې هغه مسلمان شو او بیا افغانی نجلی یې واده کړه او دافغانی حکومت له خوا استخدام هو صرف ددې لپاره چې په شوروی اتحاد کې تاشکند دجاسوسی اداري په مرکز کې دامر په ترګه وظیفه سرته ورسوی. ٭ که څه هم افغانستان دیری پیری لپاره صرف دچپني او خنجر د عملیاتو یوه صحنه وه ، دغه ډول پیښو په روسانو باندې شك او بدګمانی چې لاورومې یې جلای بهه غوره کړی وه زیاته کړه .

---

٭ ډیری پیری به موده کې په افغانستان خلکو کې تر خپلو چپنو لاندې خنجرونه پټ ګرزول او خپل دښمنان به یې پرې وژل . (مترجم)

د۱۹۵۳ کال په سپتمبر کی کابل راډیو څپلو اوریدونکوته ددغه خبر په واسطه تکان ورکړ چې صدر اعظم شاه محمود د وروغتیائی علتونو له امله له څپلی دندی څخه استعفا کړی وه او دهغه پرځای دهغه دری څلور یښت کلن وراره محمدداود مقرر شوی و. په دی وخت کې د شاه محمود روغتیائی حالت په ریښتیا سره ښه و (که څه هم هغه یو څو کاله وروسته د زړه دیوی حملی له امله مړ شو)؛ له دغه اعلان نه وروسته په افغانی رهبری کې اساسی او مهم بدلون منځ ته راغی. شاه محمود چې د وروڼو له ډلی څخه وروستی فعال غړی و چی افغانستان یې دداره مار امیر (دسقاوزوی له لاسه ژغورلی و، په هیواد کی یې بیا استحکام منځ ته راوړی و او دایې دیوه نسل لپاره اداره کړی و طبیعتاً د آزاد فکر خاوند او مترقی سړی و، خو ددغو صفاتو مخه دهغه داحتیاط په واسطه نیول شوی وه. کومه ډله چې هغه یې مشری په غاړه درلوده د منځنیو پیړیو له مرتجعینو څخه چې زیاتره په منځنی ختیځ کی پیدا شوی وو جوړه شوې نه وه بر عکس شاه محمود او دهغه یاران دزړه له کومې د پرمختګ طرفداران وو او دومره کلک نیشنلستان وو څومره چی په عمومی دول افغانان دي. خو دهغوی سیاستونه دهغوی دتجربو په واسطه او په خاصه توګه د ۱۹۲۹ کال د په یاد پاتی الله ګولی او د امپریالیستی دزیاتو کلونو دلاسوهنې او فشار په واسطه چی افغانستان یې تراغیزې لاندې راغلی ومشروط او منحصر شوي وو. هغوی په غوره کړې وای چی پرمخ ولاړشی خونه په یوې دلسې چټکی سره چی ښایی دهغوی دامتیاز څوکی یې په خطر کی اچولې وای.

محمدداود د چې دڅپل ورور محمدنعیم دافغانستان دبهرنیو چارو وزیر له څوا او د څپل دترهزوی پاچا داړوله څوایې ملاتړ کیده دڅوانو خلکو پوې ډلې ته لاړښوونه وکړه چې دهغوی په نظر دغه محتاطانه تماس دومره زیات شوی وچې نور دزغملو وړ نه و. دغه کسان نه یوازې دافغانی بطی اقتصادی پرمختګ له امله په غوصه وو بلکې اراده یې کړې وه چې څپلې هڅې دډیو رنډد کړی یې په ختیځ کې میشته شوو پښتنو ته وقف کړي صرف نظر له دې چې څومره اندازه خطرونه او ستونزې چې په دغه دول پالیسی کې پرتې وې.

په معاصري اسيا او افريقا کې له زړو محافظه کارانو څخه تيرېدنې ګورنګوو اناوته درهبري انتقال چې داپه رهبري کې يو بدلون دی يو واشنا نمونه ده. دغه انتقال په افغانستان کې په سوله اوارامۍ کې صورت وموند؛ که چيرې شاه محمود او دهغه پلويانو د کومې کينې احساس کاوه هغوی دغه کينه په زړه کې پټه ساتلې وه او دحکومت لپاره يې خپل کارته دوام ورکړ. سره له دې هم هغه څه چې پيښ شوي وو هغه يوانقلاب و که څه هم يو څورا غير عادي شکل يې درلود که څه هم علاقه مند کسان په شمير کې لږ وو خو نږدې اړيکې يې لولې او شخصاً ډير صميمي نه وو او دهغوی کړوور وسره زيات توپير درلود.

نوي صدراعظم محمد داود خان دمحمد عزيز خان تر ټولو مشر زوی و. محمد عزيز خان دمحمدزيو وروڼو له دلې څخه وچې په ۱۹۳۲ کال کې په برلين کې وژل شوی و. نو په دې دول سره محمد داود د پاچا دتره زوی و. (۲) محمد داود چې د حبيبيې په ښوونځي او په افغاني حربي ښوونځي کې زده کړه سرته رسولې وه په ۱۹٤۷ کال دساپېږ د قبيلې د يوې بلوا په شنډو لو کې تمايل او اراده څرګنده کړې وه او له خپلې نوي مقررۍ نه يې دمخه دملي دفاع دوزير په حيث يې کار کړی و. دغې تجربې او سابقې او دهغه خپل فعال او داوړ شخصيت هغه مجهز کړ چې قومنده ورکړي او هغه دزيات مزيت په حيث دطريقې طلسم درلود چې دده د کورنۍ په منځ کې معمول و. هغه دصدر اعظم په توګه د پاچا او د خپل کشر ورور محمدنعيم خان چې د هيواد د بهرنيو چارو وزير و ملاتړ ترلاسه کړی و او هغوی ورته د تحسين په سترګه کتل. د غو د روڼو له يو بل خپلوان علي محمد خان سره چې يو زوړ سيا ستمدار واو دسياسي کار دوره يې د غازي امان الله خان تروخت پورې رسيدله يوځای په دې وخت کې د افغاني چارو کنترول په لاس کې و نيو.

بهرنۍ او کورنۍ سياستونه چې تقريباً سمدلاسه د نوې حکومت له خوا پيل او په کار اچول شوي وو په اساسي توګه يې د تيرې زمانې له هرې پاليسۍ نه توپير درلود.

دافغانستان سیاست له یوې پېړۍ نه زیاتې مودې لپاره ددوو تیرې کوونکو اویوله بل سره زیات مخالفو قدرتو نوترمنځ تقریباً په بشپړ دول دهیواد ددریغ او دخپلواکۍ دخوندي ساتلو دضرورت له مخې وضع اوغوره شوی و : کله چې هم له روسيې او لويې برېتانيې دواړو څخه امتيازات اومرستې لاس ته راوړل شوي وې دافغانستان هره هڅه کړې وه چې له دغو هيوادونو څخه يو هم پرې نږدې چې په افغانستان کې يو ثابت ځای لاس ته راوړي يادننه ددې هیواد په سرحدونو کې تمرکز ته ټينګښت کړي . په دې دول دروسانو اوپه هندوستان کې دانګريزانو دتول نږدې والي او دشوروي اتحاد او دبرتانوي اتباعو دتخنيکي مهارت سره سره پرته له يو څو تنو برتانويانو او روسانو څخه هيڅکله دافغاني حکومت له خوا زيات نور استخدام شوي نه وو . لويې برتانيې او شوروي اتحاد دواړو په کابل کې نسبتاً لوی سفارتونه درلودل خو دغه سفارتونه اوپه تيره بيا دشوروي اتحاد سفارت دزياترو افغانانو لپاره دتماس نيولو د امکان له حدود څخه دباندې ساتل شوی وو تا به ويل چې ګواکې دغه سفارتونه ددطاعون ددانې بوزغلې وو؛ سياستمداران او دسفارت کارکوونکي په پراخه پيمانه دول دپوليس له خوا تر څارنې لاندې نيول شوي وو .

دغه عنعنوي سياست دنوو افغاني مشرانو (رهبرانو) له خوا نه ضروري او نه عاقلانه وګڼل شو . دغوی په قضاوت سره افغانستان ته ممکنه خطر دا وو چې يو دغوی له قريو ګاونډيو څخه يو يا بل پر افغانستان باندې تکرار بريد وکړي او دغه هيواد ونيسي يا افغاني حکومت دسيسو لارې دپښتونو قبيلو په واسطه رنګ کړي . ددغې ويرې توجه کول په زياته اندازه دافغاني تاريخ په واسطه ښودل شوي وه . دنوو مشرانو په نظر افغانستان ته ريښتيني ګواښ دا نه وچې شوروی اتحاد يا لويې برتانيې غوښتل چې د هيواد ونيسي بلکې داد نړی ددوو قدرتو نو ترمنځ دجګړې نتيجه وه .

په دې وخت کې لويه برتانيا له افغاني سرحدي سيمو څخه تللې وه ځای يې

ناپیلی هندوستان اوپي ثبا ته پاکستان نیرلبی وچې هیڅ یوله قومو روهیواد ونو څخه دشوروي اتحاد امنیت ته ګرانښ نه و. البته دانګریزانو تر شاتلني یا لاس اخستني دشوروي اتحاددتیری عنعنوي مخنیوي هم له منځه وړی و ، خو دافغاني مشرانو په نظر دغه حرکت دشوروي اتحاد هر پریدد ومره غیر محتمل ګرزولی وچې لورلو هغوی په دې برخه کې فکر نه کاوه. داددې مانانه لري چې افغانانو سمدلاسه د شوروي اتحاد دنور و دخدمت لپاره دژوند دوقفولو په فلسفې باندې عقیده پیدا کړې وه؛ برعکس هغوی بالکل داده ووچې دشوروي اتحاد عملو نه تل فقط د هغوی دنجلو شخصي ګټو لپاره تحریک او سرته رسیدل. خو هغوی دایل راوړچې (داسې یې ګمله چې دشوروي اتحاد طراحان په معقول انسانان وي) هغه ګټې په افغانستان باندې فقط دیوه یرغل په واسطه زیانمنې کیدای شوې. نوموړی هیواد به شوروي اتحاد (U.S.S.R) ته اقتصادي تاوان وي؛ ددې هیوادادار ه کول به ګران او قیمتي وي؛ له دېنه زیات مهم خوداوچې دغه دول تجاوز به داسیا او افریقا ادبې طرفو هیواد ونـو په منځ کې ناوړه او خطرناك انعکاسات ولري.

دسیاست له پلوه افغانان هرڅه دې خوساده نه دي او هغوی دتیري له نوو بهو څخه هم خبرو وچې دغه تیری شوروي اتحادته دخپل خارجي کمونست ګوند ونو دکنترول له لارې ممکن و. کله چې له محمدداود څخه په دې موضوع کې پوښتنه وشوه، دصدراعظم په توګه یې وویـل ، «ایا کم یو فکر کوي چې موږ دچکوسلواکي له مسألي نه خبر نه یو؟» (۳) خوصدراعظم ا ونـورا فغانـی مشران په دې عقیده ووچې په افغانستان کی دتدریجي نفوذ او تخریب خطر لرې و چیرې چې هلته کمونست ګوند هیڅ نه و خو هلته یو متداول پوایسي سیستم موجـود و او هلته فقط یو څوزره خلك دپرولتاریا په حیث تشریح کیدای شول .

برسیره پردې ، افغاني مشرانو په اسیایـي هیوادونو کې دکمونیـزم پرمختګ څارلی واو یقیني اساسي نتیجوته رسیدلي وو. دهغوی په نظرداسې ښکاریده چې په اسیا کې دکمونستي غورځنګونو رهبري اصلاً دمایوسو روشنفکرانو او دهغو کسانو له قشر نه کید له چې هغوی نشـو کـولای چې پـه مشغولیت یا په حکومت

کې ځانته د قناعت وړ او په زړه پورې ژوند برابر کړي او دغه کسان بشري بدمرغۍ
چې هغوی خپل شاوخوا لیدله، په غضب کړي وو.

افغاني مشرانو احساس کړه چې افغانستان د کمونیزم پوله ژر شمېر ضروري
عناصر لري. زیاتره افغانان غریب دي او د افغانانو د ژوندانه سطح ټیټه ده که
څه هم نوموړي هیواد هیڅکله لوږه نه وه لیدلې. هغه په شتمنۍ، قدرت او
ټولنیز موقف کې تر پېړونو موجود دي خو دغه توپیرونه په نورو اسیایي هیوادونو کې
د توپیرونو په پرتله لږ څرګند وو. د مثال په ډول، یو عادي افغان ډېر وګړی (تبعه)
(چې د ژوندانه سطح به یې په هندوستان یا ایران کې د هغه د سیال نه په څرګند
ډول توپیر نه لري) د یوه فرد په حیث خپل غرور، پت، ارزښت او حیثیت ټینګ
ساتي. بې پرواسې غرور چې د پښتنو په برخه کې افراطي بڼه لري. لهذا چې افغانان
نه له هغو بې وزلو جمعیتونو سره چې په نورو زیاترو اسیایي ښارونو کې ګڼه ګوڼه
جوړوي او یا نه له هغه ځانګړي تپل شوي بزګر سره کومه ګډه وجهه (وجهه مشترک)
لري کوم چې د غاصب فیودال او د منځنیو پېړیو د محکمه والو د ظلم له امله د ناامیدۍ
او ټیټوالي (کهتري) احساس کوي.

برسېره پر دې، د لوړو طبقو افغاني غړو او واکمنې ډلې تر زیاتې اندازې پورې
له کلالتکارۍ او تظاهر څخه ډډه کړې ده. د دې طبقې غړو تقریباً په عمومي توګه
یو دیموکراتیک او د برابرۍ غوښتنې روش ته پر اختیار کړی ده او په نادره توګه
د هغوی او د نورو متواضعو وطنوالو تر منځ کوم خنډ را پیدا کیږي. دغه د برابرۍ
مفکوره په خپل وار ټولنیز فعالیت هڅوي چې په افغانستان کې ډېر عام دی خو په
زیاترو نورو اسیایي هیوادونو کې ډېر لږ دی. په دې ډول افغاني حکومت کلونه
کلونه شاګردان د کورني سابقې پر اساس نه بلکې د لیاقت پر اساس د لوړو زده کړو
لپاره خارج ته لېږلي دي. په نتیجه کې افغانستان لږ شمېر داسې مایوس روښانفکران
منځ ته راوړي دي چې دغه ډول مایوسو روښانفکرانو په زیاترو اسیایي هیوادونو کې
کمونیستي رهبري منځ ته راوړې وه.

همداډول دانامنکه وه چې دافغاني قدرت دترکيب هيڅ يوې برخې يعنې د لوړې طبقې بيرو کراسي دصاحبمنصبانو کډرو نو قبايلي تولنې (هغه دلې چې اکثراً څېل منځې اريکې لري) مارکسيتي تيوري په زړه پورې مونډلې وای. بالکل سواله دېدې چې کمونيزم دهغوی شخصي موقفونو ته يوګواښ دی باکې دغه فلسفه قدرت په مقابل کې دهغوی دکلکې کرکې داحساس په مقابل کې هم دريږي .

که څېرې هلته دتخريب په برخه کې کرمه هڅه موجوده وای نو افغاني مشران او په تيره بيامحمدداود داده وو چې افغاني خفيه پوليس به دغه ژرکشف کړي. په زياتره هيوادونو کې ترنا معلوم حده پورې افغانان تقريباً له استثناڅخه پرته ـ که دکوچيانو په کيږديو، قبايلي کليواو يا که په ښارونو کې اوسيږي دمشخص او پوره څرګندو دلارغوې دي چې دهرې دلې په منځ کې دفردي عمل څخه هر سړی خبردی. څرنګه چې افغانان لاتراوسه پورې يوې دغسې دلې ته په اساسي توګه وفاداردی، په دغه دله کې په تدريجي ډول سره دلاری اونفوذ پيداکول لپاره په هرڅه واقعاً په يقيني ډول سره لهنا کامي سره مخامخ شي. دمثال په توګه، نه يو افغاني کوچي ځان له نورو افغاني کوچيانو او نه افغاني ميخانيك ځان له نورو افغاني ميخانيکانو سره دهويت له پلوه يو ځان ګڼي. په دوارومو اردوکې هويت په پراخې کورتي پايه قبيله کې موجودی .

لنډه داچې افغاني نوی مشران دې نتيجې ته ورسيدل چې ترونو دشوروی اتحاد په مقابل کې بې طرفي ضروري نه وه . همدارنګه دمتحده ايالاتو په مقابل کې يو زياتيدونکی تحريك هم موجودو چې دمتحده ايالاتو دتخمين له مخې بې عمر څو مره چې توقع کيدله نه درلود . دغه عکس العمل تريوې اندازې پورې دبلد تيا نتيجه ده. له دويمې نړيوالې جګړې راهيسې په سلهاوامريکايان په افغانستان کې اوسيدلي دي چې هغوی دمورپسن ـ نلهسن ياد سفارت له خوا يامستقيماً دافغاني حکومت له خوا استخدام شوي وو. ځينو له دغو څخه دخلکو مينه او درناوی ګټلي وو؛ نورو دخلکو خپګان راپارولی و.

هنګاره ده چې د یو شمیر خارجیانو رالنګ یوه داسې هیواد ته چې خلک یې
نسبتاً له شمیر خارجیانو سره مخامخ شوي وو او په افراطي ډول حساس وو
د هیواد ستونزې حل نشو کړای بلکې هغه یې د مشکلاتو څو ته راکاږه او تردې څو لا
زیات مشکل دا و چې امریکایانو د افغاني دودونو په باب له معلوماتو درلود او د هغوي
د لیدلو لپاره یې له تمایل نه درلود. له دویمې نړیوالې جګړې څخه وروسته کاونه
له مشکلو کلونو څخه و وچې په هغو کې د تخنیک له پلوه تکړه او د احساساتو له پلوه
ثابت امریکایان استخدام شي چې د افغانستان په شان په یوه داسې هیواد کې کار وکړي
هیڅ غربي اسانتیاوې ونه لري.

له بده مرغه، د بهرنیو چارو وزارت یا موریسن - نډسن د سپاورځي مستخدمینو
په چارو کې یا هغو کسانو چې ټاکل شوي وو د افغانانو د اولسي ژوند په باب
د معلوماتو په ورکول کې لږ توجه کړې وه. موریسن په اسیا کې لږه تجربه درلوده
او وې نشو کړای چې د امریکائي نفتي کمپنۍ پیروي وکړي چې سیاسي مامورین
یې زیات کوښښ کوي چې د امریکائي او اسیایي کلتورونو یو ځای کېدل سره
عیار کړي. د بهرنیو چارو وزارت په دغه ساحه کې متخصصین نه درلودل او
محدود کوښښونه یې وکړل چې په دې برخه کې یو شمیر متخصصین وروزي:
په عمومي ډول، دې وزارت د خپله نوبتي پالیسي چې حتی په افغانستان کې یې
د ندې دیوه «ستونزمن ماموریت» په حیث انلس میاشتو ته اندولي تعقیب کړه.
په دې ډول د امریکائي سیاسي هیئت غړي چې د ژبې یا د افغانستان د ستونزو په
باب یې معلومات نه درلود را ورسیدل او کله چې به هغوی د ژبې او نورو مسایلو
په برخه کې معلومات ترلاسه کړل د هغوی پر ځای به نور مقرر شول. برسیره پر
دې، له ۱۹۴۷ کال څخه تر ۱۹۵۳ کال پورې په افغانستان کې د متحده ایالاتو
سفیران له استثنا پرته لوړ رتبه مسلکي افسران و وچې هغوی له تقاعد نه د مخه
خپل د ماموریت وروستي دوره تیروله. دغه کسان زیات ره لایق او په یقیني توګه د
تجربو خاوندان وو خو په سختۍ سره دا توقع کیدله چې هغوی باید د خپلو ماموریتو

ئو په وروستیو ورو کې د پام وړ توان او لیوالتیا وښي .

ځینې له دغو پېښو څخه په منځنۍ اسیا کې دامریکا د تازه داخلیدنې له پلوه داسې پېښې وې چې له هغو څخه، ډېره نه کیدله. کله کله د دولت په کار کې داسې نور هم منځ ته راتله چې د هغه قاوره تطابق د ښپنې ورنه و . دیو دغه ډول نا وړه تطابق مثال یو امریکائی سفیر و چې هغه ځان په هیواد کې یو خو را مهم سیاستمدار وګرزاوه یعنې دا یو د پاملرنې وړ عمل و ځکه چې ددې مانا داوه چې امریکائی سفیر هغه لار او پالیسی پر ېښوده چې هر برتانوی سفیر به د هغې پر اساس په افغانستان کې خپله د ماموریت دوره پیل کوله.

په عمومي توګه افغانانو دغه امریکایان چې کله کله به یې احمقانه کار و نه کړل په خوش طبعی سره ومنل، په عمومي ډول ځینې امریکایان هغه چې هڅه یې وکړه چې افغانې سنو نزې درک کړي او د افغانی د ودونو نمانځنه وکړي ترزیاتې اندازې پورې خلکو ته منلي و و . پخپله امریکایان د افغانانو د زیاتو غوره صفاتو په واسطه جذب شوي وو۔ دا تقریباً یو عمومي عکس العمل و . که څه هم تصمیمات شکمن دی ، دا احتمال لري چې دهغوی په فرضی توګه د پخوانیو دښمنانو یعنې دانګریزانو په منځ کې افغانستان په زړه پورې اسیایان دی او دا په زړه پورې ده چې څرګنده کړو چې انګریزانو کوم چې د نولسمی پیړی چې دجاه طلبی پیړی وه په ترڅ کې یې له افغانې سره واده وکړ له تولنیز انتقاد سره مخامخ نشول او دا انتقاد معمولاً په هغه سړي باندې کړم چې له (بومی) ښځې سره یې واده کاوه سر راب رټ وار برټن ( Sir Robert Warburton ) چې یو نامتو برتانوی افسروار کلونه کلونه یې دخیبر د دری مسوولیت په غاړه درلوده دیو همدغې واده محصول و .

دوه شیان وو چې دمتحده ایالاتو په مقابل کې یې دافغانانو زیاتیدونکی قاراو خپګان ته لمن وهله :

یو په اسیا کې د متحده ایالاتو دپالیسی په مقابل کې دخلکو کرکه وه او بل دهلمند دناوی په پروژه کې دخلکو ناراضي توب . افغانی حکومت افغانی پروګ

چې لوازم یې تقریباً دمانډ وړاو زاړه وو دعصري کولو په دیله تقریباً ځاور کال له متحده ایالاتو څخه پرڅې مرستې غوښتنه کړې وه. پیاده عسکر ولاهم دسنیلي راینل لي انفایلډ (Snyder andLeeEnfield) دوله رخیز توپکو څخه کار اخیسته چې تاریخ یې نولسمې پیړۍ ته رسیږي او حربي مهمات تردې اندازې پورې لږ او دځاړ وړ ته وو چې لږ شمیر عسکر وکړلای شول چې په ځپلو وسلو باندې ډزې وکړي. ددولس دوه وزرو الوتکو له کومو څخه چې افغاني هوائي قوه جوړه شوې وه تاریخ د لومړۍ نړیوالې جگړې له وخته وه او توپخانه هم همداشان ډیره پخوانۍ او زړه وه. داچې ځینې پښتنې قبیلې په ښه شکل سره په وسلو سمبالې وې په سختۍ سره دحکومت په استحکام کې مرسته کړله.

دوسلو له برابرولو څخه دمتحده ایالاتو کلکې سرغړونې افغانستان دچین - شوروي اتحاد (Sino — soviet) په چا پیریال کې پریښود چې په دې محیط کې یوازنۍ غیر کمونیست هیواد او سې چې ترزیاتې اندازې پورې یې پروانه وه ساتل شوی. ددغه استدلال له مخې داسې فکر کیده چې له دغه دول وسلو څخه به دشوروي اتحاد پر ځای پاکستان پرضد کار واخیستل شي او افغانانو په دې ټینگار کاوه چې دغوی پر پاکستان باندې دبرید کولو نیت نه درلود په هر حال پرته له شک څخه پخپله ددوی او دپاکستان تر منځ زیات مخالفت دهغوی دهیلې په تر سره کیدو کې چې ډیره لوی او په وسلو ښه سمبال شوی پوځ لپاره یې درلود یو رول و لوبوه او ددې پیشنهاد ترشا اصلي دلیل په قبیلو باندې دکنترول دټینگولو هیله وه. په هیواد کې په وسله باندې دښو سمبال شرو له افراد و څخه دزیاتې نیمه خپلواکو دلو موجودیت مرکزي حکومت ته ډیره پرله پسې گواښ په حیث پاتې شو. هغه تاوان او تکلیف چې زیاترو قبایلي مشرانو او په تیره بیانه بدلیدونکو محافظه کارو ملایانو وسولای شول ترزیاتې اندازې پورې په ۱۹۴۷ کال کې چې دساپې قبیلې په وبلوا دافغاني پوځ له خوا په ښکاره توگه شنده شوه ښودل شوې وو. دایو ناوړه فال یا بد خبر و ځکه چې ساپیان نه یوازې لوبې قبیلې څخه وو او نه

يې دخپلو ومنډ واو اړ يد وګاونډ يو ملاتړتر لاسه کړی و. «٤»

بر سيره پردې افغاني مشران له دې شخصه و يريدل چې دډيورنډ د کرښې په ختيځ کې پښتنو قبيلو ته شايي يو حل بيا بلډول کړل شي يا و باروك شي چې په افغانستان باندې بريد وکړي لکه څنګه چې په تيره زمانه کې شوی و. په ١٩٤٩ کال کې محمد امين چې د امان الله خان يوله ګڼ شمير نسکه ور ونو څخه و په وزيرستان کې څرګند شو. نوموړی دياتې نمدن پيسې درلودې او په افغانستان باندې يې ديوې حملې دپاره خلك جلبول. محمد امين فکر آدغه کار لپاره مناسب سره نه وڅکه چې له هغه هرسري څخه چې له يوې انګليسي سره يې واده کړی و او دغه پلان دايباټ فقير دمخالفت له امله له ناکامۍ سره مخامخ شو؛ مګر دغه طرحه افغانانو ته په نارامه کړونکي توګه څرګنده وه او البته هغوی په دې باور درلوده چې ددغې طرحې تر شا پاکستان ولاړ و.

په هر صورت، افغانان راضي وو چې د امريکې له خوا دوی ته د وسلو نه بر برابرول ترهغې چې دغه دول مرسته پاکستان ته نه ور کړل کيږده ومنني. دا رښتيا ده چې برېتانيې داکارلا رومبی کړی وا وديو ې مودې لپاره پاکستاني پوځ يوه برتانوي جنرال ګريسي (General Graccy) ترقوماندې لاندې و. دبغداد تړون ناوو وسته بيا دمرکزي سازمان دتړون (سيټو) پرانيستنه (افتتاح) چې پاکستان او ايران دواړو ته دزياتې امريکاي پوځي مرستې موجب وګرځيده په متحده ايالاتو باندې دافغانانو اعتماد ته چې دتيرو پلو يا فردوست په وې خاتمه ور کړه. برسيره پر دې، افغانانو درك کړه چې که څه هم متحده ايالاتو ځان په ظاهره سره له دغه دول سيمه يز ودفاعي سازمانو نو څخه ګوښه ساته خو په حقيقت کې ددغو سازمانو نو په منځ ته راوړنه کې ډير مهم او مترعامل و.

دا هم افغانانو ته دخواشينۍ موجب و چې د څلورم نمبر پروګرام Point Four program له مخې او وروسته بيا د بين المللي همکاری دادارې پروګرام له مخې Internalcooperation Administration چې کرمه

مرسته د هغوی هیواد ته ورکول کېده ترهغې مرستې چې ایران او پاکستان ته ورکړل شوې وه زښته ډېره کمه وه. تر ۱۹۵۶ کال پورې افغانستان د تخنیکي همکارۍ په برخه کې تقریباً د شپږو ملیونو ډالرو په اندول مرسته ترلاسه کړې وه په داسې حال کې چې ایران او پاکستان هر یوه ته له سلو ملیونو ډالرو څخه زیاته مرسته ورکړل شوې وه. دغه وروستني هیوادونه دواړه تر افغانستان لوی وو خو افغانان د هایداتو له نظره له ایران سره چې له خپلو تیلو څخه لاس ته راوړي او د هغه پرمختګ ترنو له نظره چې په پاکستان کې د انګریزانو په وسیله منځ ته راغلي دي او پېرلري چې دغه توپیر پر افغانانو باندې ناوړه اغېزه کړې ده. په هر صورت که څه هم افغانستان تقریباً د ایران نیمايي نفوس درلود خو د دې هیواد څومره مرسته چې ایران ته ورکول کېده د هغې شلمه برخه ترلاسه کړې وه. هغه څه چې د افغانانو غرور یې زیانمن کړ تر زیاتې اندازې پورې پخپله د مرستې اندازه نه وه څومره چې د دغه مرستې ضمني مفهوم و چې د هغوی هیواد کم ارزښته ګڼل شوی و.

د خواشینتوب بل مهم علت د هلمند د ناوې پروژه وه چې د تخنیک له پلوه د هغې اداره د یوې خصوصي امریکائي کمپنۍ په غاړه وه؛ خو په افغانستان کې د آسیا د نورو ځایو په شان دا مشکله وه چې امریکائي خصوصي تشبث د امریکائي حکومت او د دې حکومت له بهرني سیاست څخه جلا کړو. او په حقیقت کې د متحده ایالاتو حکومت له پیل نه دې پروګرام کې شامل وا و دې پروګرام د وروستیو پړاوونو په وخت کې یې هم لاس درلوده کله چې د دغه پروګرام لګښت د صادراتو او وارداتو بانک ( Export-Import Bank ) له خوا تمویلېده، د بهرنیو چارو وزارت یې صحنې ته راووست.

د دغه پروژې په برخه کې ځینې ناراضتي ترب او قناعت نه درلود نه له غیر ضروري هیلو څخه چې له خوشبینۍ څخه د کې وې راپیدا شول. خو خبره تو له دا نه وه. اصلي تخمیني لګښت په غیر معقولانه ډول سره کم و او اوس په ملیونو ډالره له کوم سره چې افغانستان نوموړی پروګرام پیل کړی و په ډېره موده کې زیاتره

د امریکایانو په معاشونو او نورو امتیازاتو پورې اړه لري او د امریکا تأمیناتو پورې اندې ولګېدې .

په عین حال کې د فیشن دولونه بدل شوي وو ، د قره قلي پوستکو په برخه کې د خلکو تقاضا کمه شوې وه او چاته خو ښه ول او د افغاني پټ لرونکو پوستکو تولیدونکو داسې احساس کړه چې له جنوبي افریقا او شوروي اتحاد سره په رقابت کې دي ؛ د افغاني دالري اسعارو د تعادل له ګډوډ ید واود پروژې لـه نیمګـړې پـاتې کیدو سره افغانان دې تـه اړ کـړل شول چـې د صادراتو او وارداتو له بانك څخه پور واخلي . د یو پنځوس ملیونو دالرو په اندازه پـورچې د ۱۹۳۹ کـال د نوامبر په میاشت کې د ځیشکي په توګه ورکړه شو تر هغه مقداره چې اصلاً غوښتل شوي و زښت ډېر کم و او له دې پور سره داقیداو شرط هم منځ ته راغلې چې د پور تو له اندازه باید د هلمند د ناوې په پروژه باندې ولګول شي. د ۱۹۵۳ کال په نوامبر کې افغانان په داسې حال کې چې د شپږ ډېر شو ملیونو دالرو بې قید او شرط پـور یوه غوښتنه یـې هم لر له بیا د صادراتو او وارداتو بانك ته لاړل. داخل بانك اتلس نیم ملیونه دالره پور ورکړ او هماغه قیداوشرط یـې وړاندې کړ چې د مخه یـې وړاندې کړی واو په خاصه توګه یې د هغوی دغه غوښتنه رده کړه چې له بـانك څخه یسې اجازه غوښتله چې د دغه پور یوه برخه د کابل د واټونو په قیر و لو کی و لګوي .

دغو پورونو څخه د وارو په سلو کې څلورنیم دالره ګټه درلوده او د بیرته ورکولو لـه موده یـې اتلس کاله وه :

په دې ډول که څه هم متحده ایالاتو د افغانستان پر مختلك لپاره پیسې برابرولې دغې طریقې په کومې سره چې پیسې برابرې شوې وې ترمنځې زیات محوریانا کراري راوپاروله. دا باید په نظر کې ولروچې هیڅ بوله د څو پیسو څخه د یـوې بشپړې مرستې په شـکل نه وې او افغانستان هیڅـکله د بین المللي تعهد په برخه کې کومه نیمګړتیاله ده لرلې .دا استنباط یا تعبیر چې متحده ایالاتو د افغانستان په حکومت باندې ډېر لږ باور درلود هماغسې چې د دې حـکومت صداقت تـه یوسپکـاوی ګڼـل کیـده، د دې حکومت څیرکی ته هم یوسپکاوی و .

برسېره پردې، افغانستان چې شمېر يې مخ په زياتېدو ونه يوازې معتقدو

چې د هلمند د ناوې پروژه له پيله شخړه يوه سهوه وه بلکې دا يې هم منلې وه

چې لږ ترلږه د امريکې حکومت هم څه نه څه د دې پروژې د ناکامۍ په برخه کې

مسوول و. البته له دې څخه انکار شوی دی خو يو شمېر خارجي متخصصين چې

په هغو کې ځينې امريکايان هم شامل دي سره موافقه کړې ده او په دې کې هيڅ

شک نشته چې په دې پلان کې ځينې دايم وراومهمې نيمګړتياوې موجودې وې.

ترکومه ځايه پورې چې خبره د پلان په اجرا او تطبيق پورې اړه درلوده، موريسن

نډسن اغېزمنه دنده سرته ورسوله چې د هغه کار تر هغه کار زيات غوره و چې په دغو

هيوادونو کې د جرمنيانو او جاپانيانو له خوا سرته رسېدلی و. دا رښتيا ده چې د دغې

پروژې بنسټ د دې پر ځای چې د زرګونو اخيستلو لپاره کېښودل شي د اوږدې

مودې لپاره اېښودل شوی و او د احتمال نه لري چې د افغانستان په څېر يوه

پرمختيايي هيواد کې څوک د اوبو لګونې د اصلاح کړنې او د اوبو پر بنياد د ارزښت

پر ضد مناقشه وکړي. خو له محدودې اندازې پېسو سره چې موجودې دي د اوښتې

ور وه چې ايا د افغانستان لپاره د پرمختګ په دغه پړاو کې عاقلانه وه چې د هلمند

پروژې ته د لومړيتوب حق ورکړي کنه. د دې پروژې له پيله نه اتلس کاله وروسته

او په دې پروژه باندې دوه سلو پنځوس مليونو ډالرو له لګولو نه وروسته (چې د

افغاني معيارونو له مخې خورا ډېرې پيسې دي) د نومړې پروژې کلنی عايد لس

مليونه ډالره و. دغه رقم معمولاً په آزاد بازار کې په سلو کې لس ټيټ واو د پور

د بيرته ورکولو په برخه کې هيڅ شی سرته نه رسوي.

ماته د دغه پرتلېزې ټکي لپاره څرګند دلايل شته. د هلمند د ناوې د پېچلې

پروژې په کار اچونه موثربرو کړاتان. ماهر اداره چيان او تجربه لرونکي کارګران

ايجابوي چې دغه تړل په افغانستان کې بېخي لږ دي. که چيرې له کوم يوه انترو

پولوجست سره مشوره شوې وای، نو هغه به داد سره اټکل کړی وای چې په

آبادو شوو ځمکو کې به د افغاني کوچنيانو د مېشته کولو عالي مفکوره د عمل جامه وا

نه غوندي. د کوچیانو مهارتونه د هغو میشته شوو بزگرو له مهارتونو سره په تیره بیاد اوبو لگولو نې دیوه مکمل سیستم د په کار اچولو په برخه کې ارتباط لري. زیاتره له ترکستني او پښتني کوچنیانو څخه چې هغوی د پروژې له را وستلو شوي وو زرخېلو کېږدیو او ونو ته ستانه شول په داسې حال کې هغه چې پاتې کېدل مبارزه به یې کوله چې په معمولي توگه داسې ژوندو لري چې دارتیاوو ډېره کمه اندازه یې برابره کړي.

دبشر ترنا کامۍ عوامل لا زیات خطرناك ډېر وروسته د هغه کشف وچې په زرگونو جریبو آبادې شوې ځمکې منوره او القلي وې چې د منوره توب او القلي توب درجه یې زیاته وه. دسیمې خرابې زیم ایستنې یا وچونې دویلې کېدونکو مالگو د عادي جریې کیدلو عمل تقریباً ناممکن وگرزاوه. په نتیجه کې دځمکې زیاتره برخه بې کاره ثابته شو.

دادافغانستان او متحده ایالاتو ترمنځ دا ریکوپه همدې خطرناك او بحراني حالت کې وچې پاکستان خپل «دیو یونټ» پلان اعلان کړچې دلویدیځ پاکستان دولایتونو سره یو ځای کیدنه یې ایجابول. پاکستان له د غه کارسره پرته له دې چې افغانان نا ارامه کړي نور ځه ونشوکړای چې د هغوی په فکر دشمال لویدیځ سرحدي ولایت له منځه ورنه د حرکت یوه برخه پر ښنده چې دشرقي پښتنو هویت له منځه یوسي. دابې له شاك څخه یو له هغو انگېزو څخه وو چې د پلان ترشا موجود وو ځکه چې نوې فرقه پرستي دپاکستان مسأله دخورا جدي مسألې په حیث پرېښوده. دا په زړه پورې ده چې ذکر کړو چې دخدائي خدمتگارانو مشر داکتر خان صاحب دلویدیځ پاکستان امر شو، په داسې حال کې چې د هغه ورور خان عبدالغفار خان له پښتونستان څخه په خپل ملاتړ کې تینگ پاتې شو او ډېره مخرب په توگه د پیغور په دول په خپل کور کې ترنظارت لاندې ونیول شو.

داهغه وخت وچې افغانستان له متحده ایالاتو نه خپه و، د خپل اقتصادي پرمختگ

په برخه کې ناراضه واو دیورند د کرښې په ختیځ کې دوضع په سر باندې اند یښمن
وچې نیکیتاخروسچف د۱۹۵٦کال په نومبر کې راغی چې کابل ته د خپل مشهور
سفر په وروستی پړاو کې راورسید . له ظاهرشاه اوصدراعظم محمد داود سره د
پرمخوغرند او کنتونپوه اعلامیه خپره شوه چې دامریکایی رسمی مقاماتوله نظره
دداسې ویوې موجب وگرزیده چې دسرې لامراوپښتنې خطا کوې یعنی شوروي
اتحاد افغانستان ته په خورا ښه اوزره پورې شرطونوسره سل ملیونه دالره پور
ورکاوه. په نظر کې وه چې له دغو پیسوڅخه دهیواد دپرمختیایي پروگرام دچټك
کولو اوپرمخبیولو په لار کې کاروانخیستل شي اوهمدارنگه په نظر کې وه چې دغه
پیسې د افغاني اسعارو دیوې برابرې اندازې په وسیله اندولې شي یعنې د دغو
پیسواندازه دې په افغاني پیسو هم ونبودل شي . خروسچف د شوروي اتحاد
د سخاوت په دغه ښودنه باندې په هوائي ډگر کې د اعلا نولو په واسطه پوه
آخري تماس ورزیات کړچې شوروي اتحاد افغاني پاچا ته د ایلیوشین
(Ilyushin) په نامه یوه الوتکه اود کابل ښارکوته د عمومي حمل ونقل لپاره
پنځوس سرویسونه وراندې کول.
که څیرې د تیرې زماني حکمرانانوته پردغه دول بخششونه وراندې شوی وای
نوهغوی به سمدلاسه ردکړی وای ځکه چې داخبره گڼله چې دغه اندازه پیسې لههغه
پیسوڅخه چې انغانانو پخوا له خارجي منابعو لاس ته راوړې وې خورازیاتې وې
اوهمدارنگه څرگنده وه چې دغه اندازه پیسې به افغانستان ته د پوشمیرروسي
تخنیکرانودرانگ موجب وگرزي . انغانان په دغه خبرگ یا ..وه اوخیزه رول باندې
چې زیاتره وخت دغه پسې افرادولوبوه دخپلو پخوانیو تجربو له مخې پوهیدل .
په حقیقت کې دادیوې پېړی لپاره د هغوی اساسي پالیسي وه چې ځانو له دخپلو
تهدیدونکو گاوندیانو له اتباعو څخه هرځای چې ممکن وي لیرې وساتي اود هغوی
پرځای په احتمالي توگه پرلږ وحیله گرو جاپانیانو ، فرانسویانو ،جرمنیانو او امریکایانو
باندې اتکا و کړي. خوڅرنگه چې موږ لیدلي دي، نو وافغانانی مشرانو په خپل قابلیت

باندې باوردراود چې تخریب ترکنټرول لاندې ونیسي او هغوی ځانونه دخپل هیواد پرمختګ ته وقف کړي وو. برسیره پردې، هغوی له دینه خبر وو چې په دغه کار کې ناکامي بڼایي دکرملین ترهر اجنټ زیات خطرناك ثابت شي. په پای کې دا مخ پر زیاتیدونکو هیلو انقلاب« افغانستان ته رسیدلی و اوله هیڅ یوه دومره خوش طبیعته او تکړه قوم نه په داسې حال کې چې دغه ګاونډي هیوادونه پرمختللي وي داهیله نشي کیداې چې دخپل هیواد په، وروسته پاتیوالي باندې راضي پاتې شي.

افغانانو په داسې حال کې چې د شوروي اتحاد له پوره څخه، یې د یوه بنسټ په توګه کارواخیسته، دیوه پنځه کلنی پلان پیل اعلان کړچې په، هغه، کې د اقتصاد ټول سکتورونه شامل وو. کرنې له مجموعي لګښت څخه په سلو کې د ۴۰ ونډې په لرلو سره د لومړیتوب حق درلود؛ حمل ونقل او مخابراتو په سلو کې ۲۸، صنایع په سلو کې ۱۲، تولنیز خدمتونو (روغتیا ښوونه او روزنه) به په سلو کې ۱۲ او معادن به په سلو کې ۴ ونډه لرلی. دادزیاترو متخصصینوله نظره یو عاقلانه ونډه وه ځکه چې دې ونډې د یوې عمومي سطحې چې پرمختیایي هیوادو نو کړ یوه مخنیوی له چې هغه یې کول، چې د فلزاتو د راویستلو صنعتي پیچلې پروژې تأسیس کړي.

تر ۱۹٦۱ کال پورې لومړی پنځه کلن پلان پای ته ورسیده او دویم پنځه کلن پلان اعلان شو. لکه څنګه چې معمولي دهله دغه دول پلانونو سره ټول هدفونه ترسره نشول او لګښت له براوردونو څخه زیات شو خو دوام و رپر مختګ شوی و. په لومړی سرکې پلان باید دالګښت په سلو کې ۷۵ له داخلي منابعو څخه تمویل کړی وای مګر څرنګه چې شوروي اتحاد دوام ورکړ چې خپل سخاوت وښیې چې په دغه سخاوت کې د متحده ایالاتو له خوا په څنګه یدلې توګه برخه واخستل شوه یعنې ددې پروګرام لپاره په سلو کې ٦۰ نه زیات لګښتونه ریښتیا هم له خارجي منابعو څخه لاس ته راتلل.

په دې کې هیڅ شک نشته چې افغانستان ته د شوروي اتحاد مرسته هغه څه وه چې په دې هیواد کې یې د متحده ایالاتو دلچسپي او د هغه څه منځ ته رو رنې

ته په‌اساسي‌تو گه‌ودهور کړه‌چې هغه‌په‌افغانستان کې‌له ۱۹۵۹ نه‌تر ۱۹۶۱ کال‌پورې امریکائي سفیر هینري اې . بایروډ. (Henry A.B yroad) یوه «اقتصادي‌کور یا» بللې وه . دساړه جنګ دغې نوې اقتصادي جګړې په دګر کې شوروی اتحاد له دغو امتیازاتو څخه برخورداره و : افغانستان ته نژدې و، دداخلي سیاسي ملحوظاتو په برخه کې یې اندیښنه نه درلوده‌اودې ته‌چمتووچې‌دپاکستان پرضدله افغانانوسره‌مرسته‌وکړي. برسیره‌پردې،دشوروی‌اتحادمرستې دامریکائي تنوع په‌پرتله تر زیاتې‌اندازې پورې نما یشي بڼه درلوده . وروسته له هغه چې متحده ایالاتو د کابل واټو نوقیرول ردکړې و، شوروي اتحاد دیوه شي لپاره په چټکۍ سره ومنل چې دکابل دواټو نو قیرول تمویل کړي چې دا نسبتاً یوه ارزانه پروژه وه . دیوه دلیل په توګه ددې خبرې څرګند ونه چې دې پروژې له اقتصادي پرمختګ سره کوم خاص‌ارتباط نه درلرد چې دمتحده ایالاتو سیاستمدارانو ځانو نه داسې ښودلې ووچې ګوا کې هغوی په خواشینۍ کوونکې توګه دغوره فکر کولو استعدادنه درلود ځکه چې دا باید څرګنده اوسي چې ملي‌روحیه دملي پرمختګ لپاره یو اساس دی . دشوروی اتحاد نورې پروژې‌داوبو لګونې‌اود اوبو بریښنا دنفتو دپلټنې او دلو یو لارو په برخه کې وې چې په دې کې دشوروی اتحاد په سرحد کې له کوشک ( Kushka )نه نیولې دهرات‌لارې بیاتر کندهاره پورې دسړک جوړولو دګران کار پیلل هم شامل و . داله شوروی اتحاد څخه داتیاملیو نو ډالرو دمرستې په وسیله تمویل شوې وه چې دغه مرسته په خپل ذات کې یو غیر عادي مرسته ده ځکه چې دشوروي اتحاد تقریباً ټول خارجي کومک د مرستو پرځای دپورونو بڼه لرې .

افغانانو ته دخوښۍ او رضایت بله منبع دشوروي اتحاد پر یکړه وه چې غوښتل یې دافغاني پوځ دعصري کولو په برخه کې مرسته وکړي . په دغه سکتورکې دشوروی اتحاد دمرستې داندازې په برخه کې هیڅ معلومات نه دي

مجبور شوی مگر د غه اندازه حتماً زیاته ده . زښت ډیر دلیلونو ورته اندازه څو دجت جنګي او بم غورځوونکو الوتکو شمیر دی چی اوس د دوه ورو او الوتکو پر ځای په افغاني اسمانو نو کی په ډیرې چټکۍ سره الوزی . د افغانستان په تاریخ کې دلومړي ځل لپاره ددې هیواد پوځ دحکومت استحکام او قدرت ته یواځینۍ متن ملاتړ ګرزیدلی دی .

دمتحده ایالاتو کومک زیاتره داو بو لګونې ،حمل و نقل او دښوونې او روزنې په برخه کی دوام موندلی دی چې ددغه مرستې زیاتره برخه دهلمند د ناوې په پروژه باندې لګول شویده . همدارنګه د متحده ایالاتو پیسو د آریانا چې لومړنی افغاني الوتکه ده دپه کار اچولو او د الوتنې په برخه کی هم مرسته کړیده چی اوس دهلي ، بیروت ، مکې ، تهران ، پراګ او فرانکفورت ته پر څپو الوتنی سره بیره افغاني ښارونو تر منځ هم لوتنې کوي . د۶۵ ، ۳ملیونو دالرو په اندازه پوره مرسته او ملیونو دالرو په اندازه پور په کندهار کې د یوه بین المللي هوائي ډګر په ودانی باندې لګول شویدی او دا هغه پروګرام وو په کوم کې چې دپان امریکن (Pan American Airways) هوائی شرکت دپانګې په بدل کې برخه واخیستله چې ونډه یې په سلو کې ۴۹ وه . په ځای کې شایې دغه پروژه افغانستان ته دنسبي آریا تفضیل تر کرانګی موجب وګرزی ځکه چې دغه پروژه به دجهاني الوتنو مسافرو بوز زمیله پورې کمه کړي .

دیر احتمال لري چې افغانستان ته دمتحده ایالاتو دمرستې خوراهمه ونډه دښوونې او روزنې په برخه کې وي . ځکه چې ددویمې نړیوالې جګړې راهیسې دلو روزده کړو لپاره متحده ایالاتو ته د لېږل شوو افغاني محصلانو شمیر تردې درجې پورې زیات شوی دی چی تر۱۹۲۲ کال پورې له پوزونه زیاتو افغانانو په امریکا کې خپل تحصیلات سرته رسولي وو . په امریکائي پوهنځیو او پوهنتونو کې د زیاترو دغو محصلینو تعلیمي سوابق یا تعلیمي استفاده به عمومي دول د دغو محصلینو ته سوابقو یا تعلیمي اسناد وغوره ووچې هغوی له بل اسیایي هیوادځخه راغلې وو .

دغه محصلین متحده ایالاتو ته د هغوی د خپل حکومت تر پاملرنې لاندې لیږل شوي و. په ورسیره پر دې د نړیوالې همکارۍ اداري (International Cooperation Administration)'و د منځني ختیځ امریکائي ملګرو (American FriendsoftheMiddleEast) په شان خصوصي موسسا توجې د متحده ایالاتو له حکومت څخه مرسته ترلاسه کوله د کولمبیا او وایومنګ (Columbiaandwyoming) له پوهنتونو نو سره یې قراردادونه لاسلیک کړي وو چې افغانستان ته یو شمیر امریکائي ښوونکي راولي.

ځینې له دغو ښوونکو نه دافغانستان دمسلکي ښوونې او روزنې په ښوونځي کې مقرر شوي وو (چې اساس یې دیوه امریکائي ریچارد سودربورګ (Richardsoderburgh) له خوا ایښودل شوی و) او نور یې د کابل په پوهنتون، په ثانوي تخنیک او د دارالمعلمین په ښوونځي کې مقرر شوي و. افغانان حتی په نورو ساحو کې دشوروي اتحاد دزیاتې مرستې له منلو نه وروسته دخپل تعلیمي سیستم په برخه کې دشوروي اتحاد داتباعو داستخدام او په مساله کې بې پروا او بې اعتنا و او دشوروي اتحاد د کوم لګ اصرار کوونکي وړاندیزونه یې ردکړي دي. په هر صورت، څرنګه چې دا څرګنده وه چې افغانستان په دې مساله باندې (په ۱۹٦۱ کال کې لومړنی افغاني محصلین شوروي اتحاد ته ولیږل شول) له موافقې پرته دوام ورنشو کړای چې نوره مرسته ومني. دمحصلینو شمیر په تیره بیا دپوهنځي زده کړې په برخه کې زیاتیږي خود فشار د ورونکو ځوانو افغانانو اکثریت لاهم غوره ګڼي چې انګلستان یا متحده ایالاتو ته لاړ شي. ددغو روستنیو هیوادونو نفوذ په افغاني ښوونه او روزنه باندې تر دې اندازې پورې اغیزه کړې ده چې اوس انګلیسي (دپښتو او پارسي تر څنګه) د تعلیم یافته وو دریمه ژبه ده؛ کابل راډیو په ورځ کې دری پروګرامه په انګلیسي ژبه خپروي او په انګلیسي ژبه یوه ورځپانه چې کابل ټایمز (ThekabulTimes) ده، هره ورځ د دولتي مطبعې له خوا چاپیږي. دمرستې دغه رقابتي پروګرامونه افغانستان ته دیو بې ساري شمیر

خارجیانو دراتګ موجب ګرزیدلي دي چیري چې هغوی په نرمۍ او له پوښان چال چلند سره منل شوي دي او په دې دول په پای کې دافغاني تعصب افسانه پای ته رسیدلې ده . دالونګ ریږ شمیر چې په هغو کې د (KLM هندي الوتکې (IndianA irways) او سوف فلوت (Sotflot) شاملې دي کابل ته منظمې الوتنې کړي دي چې ددې الوتنو په نتیجه کې شاوې توریستان لیږدول شوي او چې له لارې ده ورځنۍ مشکل مسر کولو نه پرته دی هیواد ته سفر وکړي .

دنرقۍ لپاره : افغانستان په حرکت کې یو په خاصه توګه ډیر مهم پر مختګ په ۱۹۲۹ کال منځ ته راغی او داهغه وخت و چې دغازی امان اله دناوړه او بد مرغی راوړونکي تجربې راهیسي دلوړې ځل لپاره دافغاني ښار ونو ښځي د دغه حجاب ځخه ښکاره یا راوو تلې ( مخ لوځې شوي ) چې د یوه پېړۍ لپاره یې هغوی پټې ساتلې وې . تر غازی امان اله خان وروسته تولو مشرانو ددغه دور له اول خپله کړکه ځرګندې کړی وه چې نه یوازی یې د هغوی هیواد دخارجیانو دمنلو وړ وګرزاوه بلکې دښځو ډیرغیا ته یې هم زیان ورساوه او ددې داقتصادي پر مختګ په لار کې یې دهغه ی دبرخې اخیستلو مخه ونیوله . داچې پخوا ددغه دور دماتو لو په برخې کې هیڅ کار نشو کیدی ددې شونی سبب یې دغه تینګه عقیده وه چې په دغه لارکې دغازی امان الله خان هڅو ده پر ضد بلوا کې مرسته کړی وه . دمحمد داود حکومت لکه څنګه چې یو وخت په اقتصادي مسایلو کې اول شوروي اتحاد سره په معامله کولو کې له خپلي استحکام ځخه زیات شاده او دخپلو اسلافو په پرتله تر بخې اشتباهاتو کې دی بی حرصلې و . دا په دی توګه په خوښۍ او رضایت سره وه چې افغاني مشران په کابل کې دنجرنو په ښوونځي کې په حجات باندی دبریدل نوی ترطیبی ځخه خبر شول . حکومت ددې پرځای چې دتر طبی چې په مغې کې رښتیا هم شامي کو رنی ځنی ښځینه غړو لاس دراوده دمخې نیولو په برخه کې په یولړ اقدامات لاس پورې کړی فقط دژاندارمې قوماندانۍ یې داجتماعي ستورزې دمخنیوی لپاره تیارسی

کړ او په دی برخه کې پرمختګونو ته ستر ګې په لارو . کله چې بالاخره نجونو دی کار ته اقدام و کړ ، له لو ړ ی طبقې څخه محبوبه موسې لومړنی افغانۍ ښځه وه چې په ښار کې پرته له چادری یا بورقې ولیدل شوه. له دی ښځې سره سمدلاسه دهغې زیات شمیر همصنفیانی یو ځای شوی او ددغه حرکت په مقابل کی عکس العمل د مخالفت پر ځای تائیدی بڼه درلوده. حکومت سمدلاسه یو فرمان صادر کړ چې نورنو په افغانستان کې حجاب ته اړتیا نشته.

دغه بریالیتوب چې ډیر ځنډوروسته په برخه شو موقتاً له ناکامی سره مخامخ شو ؛ څو کله چې مخ لوڅې په کابل کی سرمشق و ګرزیده د کندهار ښځو د دغه سرمشق په برخه کې له‌سیالی څخه کار و انخیست. په افغانستان کی دکندهار دښار خلک څورا ډیر محافظه کار دی او په افغانستان کې یوشمیر محافظه کارو ملایانو لاهم دپام وړ نفوذ درلود. له دغو څخه یو څو تنه په دې بریالې شول چې دعوا او تشدد راو پاروی چې حکومت په چټکی سره دهغو ی مخه دعسکرو په واسطه ونیوله. د یاغیانو مشرانو ته سخته جزا ورکړل شـوه .

دغه عمل پر حجاب باندی یو کلک ګوزار و. وروسته له همدی وخت نه یو شمیر افغانی ښځو چې شمیر یې مخ په زیاتید و وچادری لر ی کړ ی دی او په حکومت او په صنعت کی مقامو نو ته رسیدلې دی. دلته هغو ی په اتفاقی تو ګه که له څپلـو وروڼو نه زیات فعالیت نه ښکاره کوی نو دهغو ی په اندازه څو فعالیت کو ی یعنی داپه ضمنی ډول داما نا ورکوی چې په افغانانو کې دښځـو فـرض کړل شو ی لاس لاندی تـوب ښایـی چـې دمذهبی تعصب دشهرت په پرتله په هماغه اندازه بـې اساسه و ي لکـه د د ي مذ هبـی تعصب .

په حجاب باندې برید دځوانو ښار یانو په منځ کې دصدراعظم محبوبیت زیات کړاو په ستر تو لنیز بدلون یې ومږوده. البته دا رښتیاده چې دافغانی ښځـو اکثریت یعنې تقریباً دهیوادتو لو ښځو، دکو چیانو ښځو او قبایلی ښځو هیڅکله چادری نه ده په سر کړي . دادښار دلو ړې طبقې ښځو او دتعلیم یافته و ښځو چې په دې طبقې پورې

اره درلوده لپاره په پیرپیروپېر یو کلونه جبري وه چې چادري په سرنه کړي
برسیره پردې دغه ښځې دهغو کسانو ماینې، خوېندې اومیندې چې په افغاني
چارو کې یې زیات بالفعل یابالقوه نفوذ درلود ـ یومهم دلیل چې ولې مرتجع
طاقتونو په کلکه سره مبارزه کوله چې هغوی سختې گوښه، ناپوه اوخرافاتي وساتي.

له ۱۹۵۳ کال نه تر۱۹۶۲ کال پورې داقتصادي او ټولنیزې ترقۍ د بشپړ
نمایش په لړ کې دوه شیان په خپل حال پاتې شول: دپښتونستان په باب دافغاني
حکومت دریځ اودهمدې مسالې په سربانديې دافغانستان او پاکستان ترمنځ تشنج.
د۱۹۵۵ او۱۹۵۸ کلونو ترمنځ دغه، تشنج دیوڅه مودې لپاره کم شوی واودا هغه
وخت وچې جنرال میرزا چې وروسته له هغه دپاکستان جمهور رئیس وُ له
محمد ظاهرشاه سره دولتې لیدنې کتنې سرته ورسولې. پاکستان لاهم کومه هڅه نه
وه کړې چې دلویدیځ پاکستان په چوکاټ کې دننه قبایلي سیمې سره یو ځای
کړي خوله قبایلو سره یې معامله کولو ته دسیاسي افسرانو له لارې دوام ورکړی
وچې هغوی مرکزي حکومت ته مسوول وو. په عین حال کې افغانان له خطرناکې
داخلي وضع څخه، خبر وو چې هره شیبه یې دیوه خپلواك ملیت د منځ ته راوړلو په
برخه دپاکستان تجربه اودپاکستان وجود په خطر کې اچاوه: نختیځ پاکستان
دلویدیځ پاکستان په حاکمیت باندې او په پوځي او ملکي اداره کې د پنجاب
دلوړې غوښتنې او په حکومت کې دفساد له امله چې په زیاته اندازه خپور شوی و
سخت خپه اوپه غضب و.

وروسته له هغې چې جنرال محمدایوبخان خپله بریالۍ کودتاسرته رسولې وه
افغانانو په ۱۹۵۸ کې دیوې مودې لپاره هیله کوله چې دهغوی هیلې به دعمل
جامه واغوندې. هغوی داسې ښکاریده چې ښایې دایوبخان مافوق قانوني دریځ
نوې پاکستاني حکومت دې ته اړباسي چې دخپلو گاوندیانو په مقابل کې له زیاتې
سوله ییزې روېې څخه کار واخلي. برسیره پر دې، څرنگه چې پخپله جنرال
ایوبخان یو پښتون وچې دپاکستان دهزاره سیمې له سپین ترین قوم څخه و، هغه به

په فرضي توګه ترنولو اسلافو د پښتنو د هیواد په مقابل کی ژبات مهربان وي .
(تصادفاً داریانتیاو رنځیره داده چې سپین ترینیان اصلاً له کندهارڅخه راغلي دي او
دغو ترینو اسلاف دپښتنو دشجرې له مخې ددرانیانو او محمد زیو چې دافغانستان
شاهی کورنی وي اسلاف هم وو )
داسې ثابته شوه چې دغه هیلې په سطحي بڼه ستونو بافادي ولاړې وې .
دپښتنو دمسالې په برخه کې دپاکستان نوی حکومت ترخپلواسلافو زیات لجوج و.
ایوبخان سره له دغې تولې پښتنی سابقې چې دغه لرله د دتعلیم او پرنځي زده کړې
له پلوه انګلیس او څان یې پنجابي بېرودلی و .
برسیره پردي ، هغه طبعاً دومره زیات بدا براو متجاوزو چې حتی د پښتنو
دبیلوالی یا پخپلواکي (خودمختاري ) هیڅ دول مذکوره نشوزغملای .
دایوبخان دحکومت د بانشین کیدوسره سم دافغانستان او پاکستان ترمنځ
تشنج د انغاني پوځ دعصري کیدراول شوروي اتحاد څخه دمرکاره ملاتړلاس ته
راوړلو امله زیات شوي و. لوړې درجې ته ورسید . د۱۹۶۰ او بیاد۱۹۶۱ کلو-
نوپه منې کی دباجوړ په سیمه کی یوه څرګنده سخته نښته وشوه . دبېګړې اصلي
منشاء یوه سیمه یزجګړه وچې دجندول له خان او ددیرله نواب سره وچې دواړه
یې دمبارز خان پرضد ودریدل . کله چې افغانانو دجندول دخان او ددیر د نواب
ملاتړته راغلل او پاکستان دمبارزدخان ملاتړوکړ . د باجوړ نو نقیت له افغانانو
سره ددغو د مداخلې په بر خه کی مرسته وکړه. که څه هم دادېیورنله کړ شې
په ختیځ کی پورت وخرد قوي افغاني مرمنداوله سیمې سره یې ګډه پوله درلوده
اوهمدا ر نګه د لته هغه قبیلې میشته شوي وې چې په افغانستان کی یې ځمکې
درلودې .
دجګړې په برخه کی راپورونه مغشوش اومتضاد رومګر پاکستان په څرګنده
توګه له پرشمېر فرتو څخه کاروا خیست اوپه نسبتاً زیات بریالیتوب سره یې له
خپل هوائي پوځ څخه استفاده وکړه .

قبايلي تلفات په تيره بيا د هوائي بمبارۍ له امله دراندهوو او افغانستان ترشا تللنه هغه وخت وز غمله كله چې د افغاني وسله والو عسكرو يو دله د دبورند د كرښې په ختيځ كې ونيول شوه . پاكستان ادعا وكړه چې دا دافغانستا ن دمستقيمې لاسوهنې يو ثبوت و ؛ افغانانو ادعا كوله چې عسكرو پخپل سرجگړه كوله . په ظاهره كې د پيښې علت دلاربښوونو په برخه كې ديوه افغاني افسر غلط فهمي وه . په هرحال ، له لاكراوۍ څخه دك باجوړ دپاكستان دكنټرول په نتيجه كې په ظاهره آرام شو كه څه هم دپاكستان په گزمو باندې كله كله په غلچكي دول گوزارونه او له لاسي بمونوسره بريدونو دوام وموند .

د١٩٦١ كال داگست په ٢٤ ، په باجوړ كې دجگړې ترپاى وروسته، پاكستان سمدلاسه اعلان كړه چې دغه هيوادپه جلال آباد او كندهار كې خپلې قونسلگرۍ تړي او تقاضا يې وكړه چې افغانستان دې خپلې قونسلگرۍ له پيښوراوكويټې څخه وباسي . ددغه اقدام لپاره دپاكستاني رسمي مقاماتوله خوا دليل دقونسلگرۍ دمامورينو په مقابل كې دافغاني خلكو دښمني وه كه څه هم په حقيقت كې پاكستاني مامورين ديوې ليسزې په مرده كې په افغانستان كې مشهورنه وو ؛ اصلي انگيزه دباجوړ دجگړې په سرباندې فقط دپاكستان غوصه اوددې هيواد دغه هيله وه چې غوښتل يې په افغانانو باندې فشارواچوي . افغانانو دتل په شان په جدي توگه عكس العمل وښوده ؛ هغوى د١٩٦١ كال دسپتمبر په ٦ له پاكستان سره سياسي اړيكې وشلولې . په هرصورت ، دپاكستان تقاضا يې وخته وه ځكه چې دغه غوښتن ليك دافغانانو دخپلواكۍ دجشن په وخت كې راورسيد اودا هغه وخت دى چې دهغوى ملي غروراوج ته رسيدلى وي .

دسياسي اړيكو پاى سرحدو تاړه او دافغانستان دسوداگرۍ عمده لارې يې چې دېرې په وسيله يې مالونه وړل او راوړل و ترله چې پرته له شوروي اتحاد څخه هيڅ يو په دې كار باندې خوښ نه وو او په دې دول له بهرنيو نړۍ سره دافغانستان دتماس اساسي او مهمه لاروتړ له شوه مگر دايران له لارې چې يوه مشكله

لارده په محدوده اندازه دسوداګرۍ کار سرته رسیده. داپه ښکاره دسیمه ییز ې

دفاع دمعاهدو تر پر وګرام لاندې دامریکائي پوځي او اقتصادي مرستې

دیوار نیز ماهیت بوپوه زره بوري بهء ده چې څرګنده کړو چې کله هم په سیمه کې

دپاکستان عملیات دامریکې ګټو ته زیان رسوونکې وو دمتحده ایالاتو به مرستې

باندې دپاکستان اتکا کافي نه وه چې د دغه هیواد مخه ونیسي چې د دغو

عملیاتو په سرته رسولو کې بې تینګار کاوه. په حقیقت کې کله چې د متحده

ایالاتو حکومت دپاچوور په جګړه کې ددې هیواد دالرتکو او پوځي لو ازمو

څخه دپاکستان له خوا دکار اخستلو له امله اعتراض وکړ جنرال ایوبخان دغه

اعتراض په یوې عمومي وینا کې په لند دول سره رد کړ. سرحد چې و ترل شو

له متحده ایالاتو څخه په بیړیو کې دسامان اودلوازمو دراوړلو مخه ونیول شوه

چې دې هیواد په افغانستان کې دخپلو پروژو لپاره را وړل. څرنګه چې دې

هیوادونه غوښتل چې دشوروي اتحاد له لارې څخه استفاده وکړي، په نتیجه کې

شوروي اتحاد د خپل اقتصادي پروګرام په سیالی (رقابت) کې زښته ډیره

ګټه ترلاسه کړه.

د پیریو په اوږدو کې دلومړي ځل لپاره پاکستان ته دزرګونو افغاني کوچیانو

ننوتنې لیږ دبند کړل شو. دغه کار دزیاتو دغو درپه در ګرځیدو نکو په تیره بیا

دهغو کسانو لپاره د اقتصادي ستونزې مانادرلوده چې نور ژمني څرڅا یرنه یې

نه درلودل یاهغه چې دمهاجرو مزدورانو په حیث دهر کال دیوې برخې لپاره په

خپلو عایداتو اتکاء کوله. پاکستان هم اقتصادي ستونزه وزغمله څکه چې د

بوري په ساحو کې دمهاجرو نشوالی دکارد کمبود مانادرلوده او څکه چې

پاکستاني سوداګرو بوونده یاکرچیان له لاسه ورکړل چې هغوی هر کال په دغو

ساحو کې څرګندیدل او دهغوی سوداګرۍ یې برمخ بېوله.

شوروي اتحاد چې بې له شکه څخه دغو انکشافاتو برسربا ندې خوشاله و،

سمدلاسه یې افغانستان ته مرسته او دورځنۍ خدمت لپاره دپنځلس ترانسپورتي

الوتکو یو گروپ وراندې کړ. په دغه طریقه دمیوې تړل حاصلات په موافقانه توگه شوروي اتحاد ته دبیړیو په وسیله ولیږل شول او له هغه ځایه څخه یې ددغو حاصلاتو زیاتره برخه په بوخه گټې سره دشمالي اروپا په بازار انو کې پیا وپلورل شوه. په عین وخت کې دشوروي اتحاد انجنیرانو په لویو لارو باندې کار رچتک کړچې افغانستان په کوښښ کې دشوروي اتحاد داورگادي دپټلی له سر سره ونښلوي.

د نیک نوم خاوند هیڅکله نه مري
(پښتو وینا)

# نولسم څپرکی

## حال او آینده

افغانان په تیره زمانه کې د نیمګړو پیروانو خودمښو رهبرانو په حیث پیژندل شوي دي ؛ هغوی د ایران او هندوستان لپاره پاچهان برابر کړي دي او د هغوی خپل پاچاهان لکه دراني احمدشاه بابا ، امیر دوست محمد خان او امیر عبدالرحمن خان د اسیا د پخوانیو پاچاهانو په پرتله په مطلوب دول سره ښه رهبران وو. کیدای شي چې د دغو کسانو د نومونو په لست کې د افغانستان د موجوده پاچا محمد ظاهر شاه نوم هم ورزیات شي

ظاهرشاه په نولس کلنی کې پر تخت باندې تر کښیناستلو وروسته، شل کاله د خپلو دریو تکړه ترونو تر روزنې لاندې وچې په نتیجه کې د خپلو خلکو په منځ کې ډیر لږ پیژندل شوی و . په هرصورت ، په ۱۹۵۳ کال کې د محمدزیو وروڼو له دلې څخه د وروستني ورور شاه محمود د استعفادې مطلب ته اشاره وه چې نوموړي پاچا اراده کړیده چې په افغاني چارو کې فعاله برخه واخلي او دا د هغه د ملاتړ له امله وچې د هغه د تره زوی او صدراعظم سردار محمد داود وکړای شو چې په افغاني عنعنوي پالیسی کې بدلون راولي او هیواد پر هغه لار باندې برابر کړي چې د عصریت خواته ځي :

په دې لار کې د محمد داود د بریالیتوبونو او محبوبیت سره سره پاچا په تدریجي

ټو ګه متقاعد شو چې دملت سیاسي جوړښت لکه څنګه چې و دئل لپاره په ښځل حال ساتل کیدای نشو. که د امان الله خان او نادرشاه له اساسي قوانینو څخه تیرشو دااتړ لوهغو افغانانو ته چې د پوهې خاوندان وو او څرګنده وه چې په حقیقت کې دهغوي حکومت نیوشو کسو بدایانو حکومت وچې واك یې دشاهي کورنۍ په لاس کې و. دا باید ومنو چې دا حکومت دومره پوښد حکومت نه و ؛ برعکس دشرایطو او حالاتو په نظر کې نیولو سره کومه اندازه کار چې حکومت ده ی.وادا و خلکو لپاره کړی و دیادونې وړ و. برسیره پر دې، دحکومت غړو له جاه جلال څخه ګردې اندازې پورې ډډه کړې وه چې درجه یې په اسیا کې غیرعادي وه او کله چې دتیتې کورنۍ افرادو لیاقت ښودلی دی، په لوړو مقامونو کې یې دهغوی دمقرری هر کلی کړی دی. دغه جوړته ځانګړتیا په افغانستان کې نوې نه وه. درانی احمدشاه بابا، امیر دوست محمدخان او امیر شیرعلي خان تول دخپل طبعي غیر تشریفاتي خصلت له امله مشهور وو او د شاه شجاع دبد نامی لپاره یو له دلا- یلو څخه دهغه بې ځایه غرور و. له کروندګرو کورنیو څخه ډیر و خلکو په افغاني حکومتونو کې لوړ مقام ترلاسه کړی و،له هغو څخه یوشو تنه دوزارت یا صدارت مقام ته رسیدلی وو.

سره له دې هم داچې حکومت دقدرت په یوه څورانرې بنسټ باندې ولاړ او په محدوده اندازه مطلق العنان و، زیاتو افغانانو په تیره بیاد لوړ و او غربي زده کړو خاوندانو چې شمیر یې مخ په زیاتیدو و ترینه کرکه کوله. ډیر شمیر پخوانیو مطلق العنانو سره سره بیاهم افغانان یوقوي د موکراتیك دود لري چې په خلکو پورې منحصر نه و بلکې تر واکمنانو پورې رسیدلی . حتی سرزوري مستبد امیر عبدالرحمن خان پیشګوئي کړې وه چې داسي وخت به راشي چې (افغان اولس به خپل امنیت پخپله وساتي . )

د۱۹۶۳ کال په مارچ سردار محمد داود خپله استعفا اعلان کړه دهغه پلان دعملي کولو په برخه کې لومړی ګام پورته شو چې پاچا او دهغه سلاکارانو ور باندې د اوږدې مودې راهیسې غور کاوه محمدداود په یوه لسیزه کې دهیواد لپاره په

پوره برياليتوب سره ترهغه کارونوچې په يوه پيړۍ کې سرته رسيدلي وو زيات خدمت کړی وا او دافغاني ښځو دآزادۍ په نتيجه کې يې زيات شهرت گټلی و.

څرنگه چې هغه اوددغه ورور محمدنعيم خان دشاهي کورنۍ غړيوو هغوی د مرکزي کنټرول په خلاف د خلکو دکرکې هدف گرزيدلي وودا په اصطلاح د يو کورنۍ ترون ، وچې ديرش کاله يې دافغانې چارو واك په لاس کې درلود.

برسېره پردې محمدداودخان دپښتونستان دمسالې په برخه کې له چدی کړنلارې سره نږدې احساساتي تمايلات درلودل چې په نتيجه کې دافغاني اوپاکستاني سرحد دتړاو اوددغو دواړو هيوادونو ترمنځ دسياسي اړيکو دشلېدلو موجب وگرزيدل زياتره افغاني رهبران دهيواد داقتصادي بدلون په برخه کې انديښمن وو چې دې هيواد له خپل عنعنوي مارکيټونو او وارداتي منابعو څخه دشوروی اتحاد خواته مخه کړيوه څکه چې دشوروی اتحاد اقتصادی اوسياسي پاليسي يوه اوېشانه وې يعنې يوهرگند حقيقت چې زياتره وخت پخپله هوسانو له خواته کرارشويدی. برسيره پردې ، څرنگه چې متحده ايالاتو نه غوښتل چې دشوروی اتحاد له لارې څانته گټه ورسوی ، په حقيقت کې دپاکستانې سرحد تړلو افغانستان ته دامريکائي مرستې مخه ونيوله .

د۱۹۶۲ کال دمارچ په ۱۲ محمد داود خپل دخدای پامانی په وينا کی ترخپلې اداري لاندې دهيواد په پرمختگونو باندې بيا نظر واچوه او دراتلوونکی وخت ستونځو ته يې اشاره وکړه. په هرحال، دهغه مهم پيغام داوچې له افغاني اولس څخه وغواړي چې د خپل حکومت په کارکې زياته ونده ولري اودحکومت داجرائيې مقننې اوقضائي قوو دبيلوالي په برخه کې برخه واخلي دغه پيشنهاد سمدلاسه د پاچا (چاچې پرته له شك څخه ددې پيشنهاد په جوړونه کې لاس دراود) له خوا ومنل شو اويوه کميټه وټاکل شوه چې دغه پيشنهاد مطالعه کړي او يو نوې اساسي قانون جوړکړی چې دتصويب لپاره لويې جرگې ته وسپارل شي . (۱)

پرته له شك نه دمحمد ظاهر شاه هيله داوه چې افغانستان يوې داسې مرحلې ته

راو رسوي چې حکومت شلمکوته مسئولیت ولري او په پای کې یوه داسې شاهي مشروطه منځ ته راوړي چې بنسټ یې په دیموکراتیکې توګه تا کل شوو نمایندګانو جوړ کړی وي. په افغانستان کې دسواد دټیټې درجې او غیر متفق څواکونه چې لا تراوسه پورې ملتیه شته په نظر کې ترولو سره دغه انتقال ژر نشو ترسره کیدای خو ناداوړکوونکي ګامونه اوچت شوي وواو تقریباً په اتفاق نظر سره تائید شوي وو. دا په آسیاکې له هغو روشاهي کورنیو سره دمحمدظاهرشاه دپالیسي له مقایسې څخه څرګنده ده چې افغاني پاچا په هوښیاري او سخاوت سره عمل کړیدی او په نتیجه کې ددغه شهرت اومحبوبیت زیات شویدی. دغه او مې داحترام اوعزت دهماغه شان موقف خاوند دی چې بنایې په تیره زمانه کې پوازې دراني احمد شاه بابااوامیردوست محمد خان درلود .

دپاچاله خوا تاکل شوي نوی کابینې نوی پالیسی منعکسه کړه. بنایې په افغاني تاریخ کې د لومړی ځل لپاره له وزیرانو څخه، یوهم دشاهي کورنۍ غړی نه وڅو څینو دراده په وسیله لدغې کورنۍ سره اړیکې درلودې .

نوی صدراعظم ډاکټر محمد یوسف دسابقې له مخې نسبتاً یو متواضع سړی وچې هغه دلیاقت او تحصیل ( هغه په فزیک کې د ګوتینګن (Goottingen) له پوهنتون څخه دکتورا (Ph.D) لاس ته راوړیده ) له لارې په حکومت کې لوړ مقام ته رسیدلی و. کابینې دنورو غړو له ډلې څخه پنځو تنو د ماستري شهادتنامې درلودې او دا یو داسې ریکارډ وچې په بل هیڅ هیواد کې و رسره سیالي کیدای نشي. د صدراعظم په شان یوشمیر له داسې کورنیو څخه منځ ته راغلل چې نه یې شهرت او نه یې شتمني درلوده.

دغه پروسه چې پاچا پیل کړیده دوام لري. د۱۹٦٤ کال په مارچ March کې هیواد په ۲۹ اداری واحدونو وویشل شو. له لومړنیو پنځو مقررشوو والیانو نه ترتر ارمشر درې څلور یشت کلن و؛ هر یوه له یوه خارجي پوهنتون نه دماستري شهادتنامه لاس ته راوړیوه؛ هیڅ یو د کورنی د موقف له مخې تاکل شوی نه و .(۲)

ددغی پالیسی حکمت څرگندو. دغه دول افراد له یوازی دېرمختگ دکار لپاره
چی اوس پری افغانستان په ټخت دی ترګومارل شوو کسانو چی دهغوی دنفوذ پا
کوونی موقف له امله تاکل شوی وو ښه لایق دی بلکی د هغوی پرمختگ نورو
ځوانو افغانانو ته دبریالیتوب امکانات څرگندوي.

په حکومت کې دغه بدلون دافغانستان تاریخچه تر ننه پوری رارسوی. د
هیواد دتیر حالت په نظر کې نیولو سره داینډی په باب یوه ښه زړه پوری خوشبینی
موجوده. افغانستان له نورو پرمختیایی هیوادونو سره د یوی مقایسی له مخی
قوی او کمزوری دواړه اړخونه لری. داهیواد هیڅکله یوه مستعمره نه وه او
خلک یی دحقارت له پاتی احساساتو څخه خلاص دی؛ هغوی ځانو نه له هر یوه
سره سیال گڼی. داځه اسان کارنه دی چی دهغوی په ځان ویسا تحلیل کړو خو
په دی کې شک نشته چی هغوی غښتلی اوتکره، کلک وطن پالو نکی دی اواراده
یی کریده چی په دی عصری نړی کې خپل ارزښت ثابت کړی.

برسیره پر دی، افغانستان هیڅ جدی ستونځی نه درلودی چې هغه دی له فرقه
پرستی یاله ستر قومی مذهبی یاله نژادی مخالفتو نو څخه منځ ته راغلی وی. کوم
اقلیتونه چې موجوددی لـه کـوم عملـی تبعیض سره مخامخ شوی نه دی او په
خاصو سیمو کی متمرکز نه دی. د اقلیت دقومونو ځینی غړی په افغانی حکومت
کی لوړ مقامونه ترلاسه کوی؛ عبدالمجید خان چی یو تاجک×وه دیوی لیسزی لپاره
دافغانستان دمالیی وزیرو. (۴)

له بلی خوا، افغا نان چې هیڅکله ترامپریالیستی کنترول لاندی نه دی راغلی
چې داد غربی تکنالوژی له گټو څخه دبې برخیتوب ماناهم لري، رښتیاهم ا ړوو
چې په خپله هغه کې تینگاروکړي چې هیواد ته دامپریالیستی قدرتونو د استاځود
راننوتلو مخه و نیسی که څه هم دهغوی په خپل نظر دآزادی په بدل کې دغربې تکنالوژې
د نشتوالي ارزښت لږ وخودي آزادی هیواد په یوداسې حالت کې پریښو دچې نه

× عبدالمجید خان تاجک نـه بلـکی پښتون دی (مترجم)

چې یو میلیون داو رګادې پتلی در لوده، نه یې صنعت، نه یې په کافي اندازه سړک او نه یې په پوره اندازه دمخابرې وسایل در لودل او دبې سوادۍ درجه یې خورا لوړه وه. له بله مرغه افغانستان او س دنفوس په برخه کې کومه ستو نځه نلري که څه هم دادنړۍ یو له هغو هیوادو نو څخه شمیرل کیږي چې دزیږیدنې اندازه پکې خورا لوړه ده او روغتیایې خدمتونه پکښې په ثابت ډول مخ پرزیاتیدو دي چې بنایې وضع په آینده کې په همدغه حال پاتې نشي. بیاهم له بده مرغه افغاني مشرانو د اقتصادي پرمختګ کار په، سرته رسولو کې توان او احتیاط ښودلی دی. هغوی په داسې حال کې چې له وخت نه دمخه دهیواد دصنعتي کولو په لار کې د هڅونې مخنیوی کوي، د کرنې او مالداری په سیستم باندې یې چې رومبی موجود و لګرا ښولی دی او دمهم، ارتیاوو تولید ته یې مخه کړیده چې هغه عبارت دي د نساجیو او نفتي موادله تولیداتو او سمنټو څخه. دادیره مهمه ده چې افغانان ددې کار په سرته رسولو سره دهغو تیر وتنو مخه نیسي چې پخوانورو پر مختیایې هیوادونو کړیدي.

دیره وخت لپاره دغه پریکړه چې دشوروي اتحاد زیا ته مرستې ومنـ، په متحده ایالاتو کې د کلکې اندیښنې سبب وګرزیدله او دمقالو یرلړي یې رامنځ ته کړه په دې مانا چې افغانستان دشوروي اتحاد یو بل قمر ګرزیدلی دی. اند یښنه او حکایتونه دو اړه بې ځایه وواو په نړیوا لوچارو کې د افغانانو د نن ورځې مطالعې څخه څر ګنده ده چې شوروي اتحاد د خپلې مرستې په بدل کې سیاسي ګټه ترلاسه کړې نه ده. په ملګرو ملتونو کې افغانستان د افریقا او اسیا له بلاک سره رایه ورکوي اودخپل دبیطرفي د اعلان کړي سیاست څخه یې انحراف نه دی کړی. افغانستان په هیواد کې هیڅ ډول کمونیست ګوند یا کمونیستي فعالیت ته اجازه نه ورکوي او په کابل کې دهستې د موجودیت په برخه کې دتبلیغاتو اوسره سره د کومې مخفي دستګاه په برخه کې څه بیلګې نشته. په افغانستان کې دشوروی اتحاد اتباعو ته خاص امتیازات نه ورکول کیږي؛ په حقیقت کې هغه دیرلږ ممانعت دادی چې د یوه افغان اودشوروي اتحاد دیره تبعه

ترمنځ د نږدې شخصي اړیکو مخه نیول کېږي. د شوروي اتحاد زیات پیشنهادونه
په تېره بیا هغه چې د حساسو سیمو په باره کې وو سمدلاسه رد شویدي. په دې دول
د هیواد ډېره ضروري هوائي سروې د یوه امریکائي شرکت له خوا وشوه که
څه هم شوروي اتحاد ته اجازه ورکړل شوه چې د هغې سیمې نقشه واخلي چې
د افغان شوروي پر سرحدکي واقع ده .

خارجي سیاسي کتونکي چې لا تراوسه پورې ویرېږي چې شاید د شوروي
اتحاد مرسته، افغانستان دې راضي کړي چې د خپل قوي ګاونډي په برخه کې معنوي
بدګماني پرېږدي چې د هغوی د مشرانو سیاسي بومي ته په کمه سترګه ګوري.
هرڅومره چې د افغانستان اقتصادي پرمختګ بېرته پاتې دی د خپل تاریخ په زیاتره
اوږدو کې قدرت د سیاستونو په یوه ګرداب کې واقع وا او مشرانو یې هرڅه چې
دي خود د غې مسایلو په برخه کې ساده نه دي. د سوغات ورکړنکو یونانیانو په
باب افغاني متل نه نشته خو هغوی له دې څخه پوره خبر دي چې نه د شوروي اتحاد
او نه د متحده ایالاتو د مرستې سخاوت د نوع پالنې پر بنسټ ولاړ دي .

رښتیا هم د شوروي اتحاد د مرسته پروګرام او په دې هېواد کې د شوروي
اتحاد د زرګونو اتباعو پرله پسې څرګندېدنې د شوروي اتحاد په مقابل کې او
د کمونیزم پرضد د افغانانو په روبې باندې منفي اغېزه کړې ده. لکه څنګه چې لیدل
شویدي د افغانستان په قومي خصلت کې له نورو اخرګندو ضروري خصلتونو څخه
یو هم میلمه پالنه ده چې سخاوت او لاس خلاصیتوب یې شامل دي چې داد
افراط خو سرحدته رسېږي. د افغانانو بت تمایلات چې هر څه وي هغوی د دغه
دود په وسیله ترزیاتې اندازې پورې هڅول کېږي څکه نو په افغانستان کې بدنیته
او خسیس خلک ډېر لږ دي او کله چې هغوي څرګندېږي نو کلکې ترټنیزي کړکې سره
مخامخ کېږي. د یو بل ضروري خصلت په نتیجه کې افغانان د تواضع په مسالکې د نړۍ
د قومونو په منځ کې په لوړ مقام کې ځای لري. هممدارنګه هغوی زښت ډېر ښه
زړي دي؛ هغوی د زیاتې خوښۍ په حالت کې چیغې هم وهي، نڅاوندي، پرغېږي

او په هره موقع کې سندرې وايي، له تقليد کولو نه خوند اخلي، خوش طبعي او
ټوکمار دي او داتن د پيل کولو لپاره دلاسو نو ترېږ کولو نه لږ څه زيات تشويق
ته اړتيا لري .

په افغانستان کې دشوروي اتحاد داتباعو او دهغو شوروي يانو کړه وړه له چا سره
چې يو زيات شمير افغانانو په شوروي اتحاد کې دهغوی په کورونو کې ليدلي دي تقريباً
په بشپړ دول سره کاملاً متضاد دي. دشوروي اتحاد اتباعو ته په ظاهره لاربښوونې کيږي
چې له شخصي تماسونو څخه ډډه وکړي او يو داسې حالت غوره او وښيي چې روسي
ارواپوهان ورسره ډېرې تيرري په توگه زياته مينه لري. په دې کې هيڅ شك نشته چې
دهغوی عايدات دامريکائي متخصصينو تر عايداتو ډير لږ دي مگر دهغوی امساك
خو يو نه دمشاهدو افغانانو له نظره پټ نه دي پاتې شوي . دمثال په دول، هغوی
دادول کالي اخلي چې هغه يا مستعمله دي يا په بازارونو کې داسې امريکائي
توليدات دي چې ټيټ کيفيت لري . په ظاهر کې هغوی تر دې اندازې پورې ساده
او بې حسه معلوميږي چې که چيرې هغوي په افغانستان کې له ژوند څخه خوند اخلي،
دا به هيڅوك هيڅکله حدس هم ونه وهي. که څه هم د هغوی سلوك په هيڅ دليل
په قصدي توگه غير مهذب نه دی خو څرگند وي چې هغوی دمودب والي او
خوا خوږتوب لږ احساس لري يعنې يا خو دوی يوه ممتازه طبقه نه لري چې
نوروته دتهذيب يامودب والي په برخه کې يوه نمونه وړاندې کړي يا خو دوی
غواړي چې پرولتاري ښيگڼې په ډاگه بيان کړي .

هغه افغانان چې شوروي اتحادته يې سفر کړيدی له يوې داسې مفکورې
سره بيرته راستانه شويدي چې په شوروی اتحاد کی دژوندانه سطح نسبتاً ټيټه
ده دهغو افغانانو شمير به ډيرکم وي چې متحده ايالاتو او شوروي اتحاد دواړو ته
يې سفر کړی وی او شوروي اتحاد يې غوره گڼلی وی . داچې په کلفورنيا کی
افغانان داسې احساس کوي چې په خپل کور کی دي له دې حقيقت څخه څرگنديږي
چې دهغو يو زيات شمير مشاهده کوونکي محصلين د کلفورنيا په پوهنځيو او

پښتونونو کې د شمول لپاره غوښتنې لیکونه وړاندې کوي.

شخصي عکس العملونه بدلېږي خو دا به داسې وبرېښي چې شوروي اتحاد ډېر زیاتې اندازې پورې له ناکامۍ سره مخامخ شوېدی چې د کمونیزم د مزیتونو په برخه کې زیاتره وافغانانو ته قناعت ورکړي. له هغو څخه یو لږ شمېر لکولکتیف کولو سره دلچسپي ښودلې ده. ښایي د تاریخ د جبر له امله افغانان په کلکه رقابت کوونکي دي؛ هغوی له خپلو ملګرو یا کورنیو سره همکاري کوي؛ خو هغوی غوره ګڼي چې له نورو ټولو سره رقابت وکړي یعنې پر خصلت چې د پخوانیو بدوي عرب د دعا په واسطه څرګند شوېدی چې هغه دعا په دې ډول ده «والله پر ما او محمد باندې رحم لري خو پر بل هیچا باندې رحم نه لري».

دا نا امکانه لري چې د شوروي اتحاد سیاستونو پر افغانستان باندې اغېزه نه ده کړې. د پاکستان له لارې چې د سوداګرۍ یوه پخوانۍ او تاریخي لار ده د بیړۍ په وسیله د مالونو د وړلو او راوړلو بندېدل او له لارې یې د ځینو کمونیستي مدارتو د سوداګرۍ او ښتل بې له شکه څخه ډېره اغېزه وکړه چې د افغانانو نظر د هغوی شمالي ګاونډي په برخه کې واړوي. له بلې خوا، کمونیست چین سره لږه علاقه لري سره د دې چې دغه دوه هېوادونه یو ګډ سرحد لري، هلته تقریباً د هغوی ترمنځ تجارتي راکړه ورکړه نشته او د افغانانو علاقه تر اوسه پورې نسبت شرق ته غرب ته زیاته ده.

ترکومه ځایه چې په مارکسیستي بنیادي عقیدې پورې اړه لري، د افغانستان په مقابل د شوروي اتحاد سیاست لږ تر لږه له نورو څخه توپیر لري. د تیوري له پلوه افغانستان لا هغه ځای ته نه دی رسېدلی چې د کمونیزم په قاموس کې د (ملي بورژوازي) پړاو په توګه معرفي شوېدی او له دې څخه باید د مارکسیزم ـ لېنینزم په اساساتو کې چې د کمونیستي دکتورین روسي وروستی بیان دی «د منځنیو پېړیو د پاتې شونو» په مقابل کې د مبارزې د موقتي پړاو په وخت کې ملاتړ وشي. افغانستان لا تر اوسه پورې د «سلطنتي فیودالیزم» په پړاو کې دی په کوم کې چې قدرت تر زیاتې اندازې پورې موروثي دی. سره له دې هم د شوروي اتحاد له خوا هڅه نه کېږي چې دغه

سیاسي جوړښت ته زیان ورسوي یابې کمزوری کړي؛ برعکس د شوروي اتحاد اقتصادي اوپوځي مرستې دېره اغیزه کړېده چې هغه، پیاوړی کړي .

د ټیوري او عمل ترمنځ د دغه ښکاره تضاد لپاره یو شمیر څرګند ما هرا نه دلایل شته، له دغو دلایلو څخه یوهم یوه غوښتنه ده چې په افغانستان کې د متحده ایالا تو د فعالیت مخالفت وکړي . هلته دا د شوروي اتحا د د منځنی آسیا حساسي سیمې ته بالقوه ګراښ دی . بله، انګیزه دغه، غوښتنه ده چې په پاکستان باندې فشاروا چوي اوپه دې توګه د دې هیواد امریکایي اډې داسې کمزورې کړي چې پرغل ته، جوړې وي . بیا هم بله انګیزه دغه غوښتنه ده چې افریقا، آسیا او لاتیني امریکا په پرمختیایي هیوادونو کې دځان لپاره یوه دېره غوره مفکوره رامنځ ته کړي او دا دپام وړ ده ځکه، چې دا په افغانستان کې ددې هیواد دلومړ نیو ګامو نو د پوره ته کولو راهیسې دغسې مفکورې په باب مثبت نظر په یو شمیر هیوادونو کې تکرار شوېدی .

افغانستان ته د شوروي اتحاد کومک په، ایډیالوژیکي توګه د مارکسیزم ـ لینینیزم داسا سا تو (Fundamentals of Marxism - Leninism) له مخې په حقه سره ښودل کیږي چې نوموړی اصول دشوروي اتحاد د کمونست ګوند له خوا د (۱۹۶۱) کال په اکتوبر کې په دوه ویشمه کنګره کې نافذ شول . په هرحال، ددغه نظر پر اساس چې چینایان یې نه مني په پرمختیا یي هیوادونو کې مبارزه د بورژوا او پرولتیا ریا ترمنځ نه، ده بلکې دعناصر وا ونړیوال امپر الیستانو ترمنځ مبارزه ده . دشوروي اتحاد په نظر د آسیا پر مختیایی هیواد ونه، په لومړي انقلابی پړوا کې دې یعنې په دې هیواد ونو کې لومړي باید «ملی» ورپسې ملی دیموکراتیک او په پای کې «سوسیالستی پړاو» منځ ته راشي او په دغه وروستی پړاوکې باید د کمونست ګوند ونوله خوا لارو ښو نه وشې . «دمارکسیزم ـ سوسیالیزم اساسات (Fundamentals of Marxism Socialism دغه، مرضوع په دې دول څرګندوي : « د نختیځ په هیوادونو کې دولتی پانګوالی په خپل موجوده شکل دامپریالستي انحصاراتو یوه وسیله نه، ده ؛ برعکس دا یو امپریالسیتی ضد حرکت هڅوي او په واقعی توګه په ختیځ کې دد غو انحصاراتـود

پراختیا پر ضد پرمخ بیول کېږي (٤).

په هر حال، د شوروي اتحاد د غه ارزیابی افغانستان ته د شوروي اتحاد د مرستې اندازه نه بیانوي په تېره بیا کله چې په دغه هېواد کې د «نړیوال امپریالیسزم» د مرستې محدوده اندازه ترغورلاندې نیول کېږي. د شوروي اتحاد په ارتباط کې دغه اصطلاح معمولاً ددې لپاره استعمالیږي چې پانګه اچونه او پورځې مرسته بیان کړي. متحده ایالاتو ربښتیا هم افغانستان ته پانګه برابره کړېده خو دغه پانګه د دې پرځای چې د پانګې اچونې په بڼه کې وي زیاتره د پورونه او مرستو په بڼه کې ده په داسې حال کې چې امریکایي پورځې مرسته بې ارزښته ده.

داد منلو وړ برېښي چې افغانستان ته د شوروي اتحاد د مرستې پراختیا تر ایډیالوژیکي هڅې نه زیات عملي بڼه لري چې د افغانستان اقتصادي پرمختګ په شوروي اتحاد پورې وتړي. د شوروي اتحاد د مرستې پراختیا او د پاکستان له لارې د افغاني صادراتو او وارداتو د لارې ترلو په افغاني سود اګري کې تقریباً یو ستر بدلون راووست او د افغانستان زیاتره صادرات او واردات شوروي اتحاد ته یا د دغه هېواد له لارې نورو هېوادو ته تراجرالاندې نیول کېدل. ربښتیا هم ځینې غربي سیاسي کتونکو مجادله وکړه چې افغانستان د اقتصاد له پلوه تر دې اندازې پورې په شوروي اتحاد بانلدې اتکا کړېده چې که چېرې دغه وروستي هېواد غوښتې واي کولای شول چې سیاسي کنترول منځ ته راوړي.

خو دغه نظر د تایم د مجلې د نظر په شان نیمګړی و چې صدراعظم سردار محمد داود یې د (پوه کمونیست) شهزاده په حیث وښود. افغانانو په تېره وخت کې ښودلې ده چې هغوی له بهرنی واك څخه بدوري او زیاتره قرباني ورکوي چې د دې حاکمیت مخه ونیسي. د تیروشلو کالو نه پرمختګ سره سره زیاتره افغانان لا تراوسه پورې په داسې اقتصادي چارو بوخت دي چې ایله بسري ګوزاره کېږي او د وارد شوېو مالونو لپاره تقاضا که څه هم مخ پر زیاتیدو ده لا هم کمه ده. د شوروي اتحاد د مرې هڅې مخه به په زړه ورتیا سره ونیول شي او

پرې بهانه شو دل شي چې د اقتصادي فشار په وسيله د دغه هيواد په کنترولو لـو لاس پورې کړي او دا به نه يوازي هرهغه ښه نيت چې شوروي اتحاد ورته په دې هيواد کې وده ورکړيده له منځه يوسي بلکې دا احتمال لري ، او کيدا ی شي چې د متحده ايالاتو له خرابې په اسانی سره مقابله وشي .

د صدر اعظم محمد داود له استعفا سره د ايران د منځګړتوب له لارې له پاکستان سره د خبرو اترو لپاره لار خلاصه او اوار ه شوه سياسي اړيکې د ۱۹۶۳ کال په وروستيو وختونو کې بيا ټينګې شوې او د پاکستان له لارې د صادراتو او وارداتو لاره بيا خلاصه شوه . متحده ايالاتو لاړو مبې د ۱۹۶۳ کال د مارچ په ۲۰ ، موافقه کړې وه چې د ايـرا ني سرحد کې له هرات څخه نيـ لې تر اسلام قلعه پورې يوه لويه لار جوړه کړی چې ديرې وسيلې په حيث ، پاکستان او شوروي اتحاد له لارې څخه د صادراتو او وارداتو د لارو بادلې د افغانستان اتکا کمه کړی :

هرهغه چاچې د دويمې نړيوالې جګړې د پای تـه رسيدو راهيسې دا موقع لرلې ده چې د افغانستان لرې ليد مطالعه کړی خامخا به د هيواد د پـادونـې ور پرمختګ ورباندې اغيزه کړيوی . په تـول هيواد کې ښوونځي څو ځله زيات شويدی ؛ . د کابل پوهنتون په پر له پسې توګه کولې شي چې دا سې محصلين وروزي چې هغوی په کافـي اندازه د لوړې زده کړې خاوندوی او يو بـل پوهنتون په جلال اباد کې د جوړيدو په حال کې دی . د پـلان د جـوړولو او تطبيقولو په برخه کې د غلطيو سره سـره د څمکو د خـړوبولو او د ښارو څمکو د بيا اباد ولو پروګرام په زرګونو جريبه څمکه د کرنې ور ګرځولې ده ؛ پر دغو پروژو باندې د بندونو د جوړولو کار د افغانستان د بريښنا قدرت په پراخه اندازه زيات کړيدی . لويې لارې جوړې شوی ، سمې شوی او پراخې شوې دی . د غه هيواد اوس يو هراتې ډګر لـري چې د جت الوتکو د بين المللي اړتيو د سر ته رسولو لپاره ور دی :

ټولنیز او سیاسي بدلونونه د ۱۹۵۰ کال راهیسې بوشان زیات شوي دي . د ښځو د ګوښه توب ناڅاپي پای ته رسیدنه یو ستر بنیادي بدلون و چې پر زرګونو استعداد لرونکي کارګران یې د هغو مقامونو لپاره ازاد کړل چې د افغاني شغل او ښوونې په ساحو کې موجود وو . په پای کې لکه څنګه چې ړومبی هم څرګنده شوې ده دغه هیواد داسې بریښي چې په ثابته توګه دیوه ذمه وار او نماینده حکومت په لور روان دی .

دغو بدلونونو د هیواد ټولې ستونزې حل کړې نه دي ؛ برعکس دا هیواد لا تر اوسه پورې د زیاتو جدي ستونزو سره مخامخ دی . محافظه کار او ارتجاعي میلانونه له منځه نه دي تللي ؛ که څه هم دغه میلانونه مغلوب او د په شاتګ په حال کې دي خو لا اوسه پورې په افغاني چارو کې یو مهم عامل دی :

د ښوونې او روزنې له پرمختګ سره سره په افغانستان کې بیسوادي په غیر عادي توګه لوړه ده او د هغې د له منځه وړلو لپاره د یر کلونه پر له پسې زیار په کار دی .

د متحده ایالتونو او شوروي اتحاد څخه د غټو پورونو له امله اقتصادي وده او پرمختیا ممکنه شوېده ، خو دغې ودې نوې ستونزې هم را پیدا کړې دي : د دغه مودې لپاره به د پورونو ورکړه د افغانستان په ملي عاید باندې یو بار وي او پرمختیا د انفلاسیون سبب شوېده چې مخنیوی یې مشکل ثابت شوی دی.

ښایي چې د دغو چټکو او پر له پسې بدلونونو د اوږدې مودې سخته اغیزه پخپله په افغانانو باندې وي. په تیر وخت کې نږدې ټول افغانان پرته له دې چې د بیوزلي اندازه یې په پام کې ونیول شي نه یوازې په دغه ډاډ سره چې د هغوی لپاره به بسیا خواړه او د خوب ځای موجود وي بلکې تر دې زیات لا ، یوې ځانګړې او مشخصې ډلې (پراخې کورنۍ ، پښې ، قبیلې یا کلي) سره دوړته هویت په قوي احساس متکي وو . هغوی له اوږدې مودې راهیسې د منل شویو ولسي لارو ارګان

او نور لکه قوي مذهب چې دوی یې دوکتورین بې اعتقاده ملي دی درلودل.
دغو تړلو د شخصي ارزښت احساس ور کړی دی چې یوه نښه یې په هېواد کې د
خورا لږ شمېر سوالګرو شته والی دی.

په ښکاره د اتوون شیان د هېواد د اقتصادي او ټولنیزي نمونې سره سم له چټک بدلون سره
مخامخ دي طایفه یي او قبیلوي وفاداري کمزوري کیږي، ښارګرتیا او ښارونو ته
د کوچیانو افغانانو په زیاتېدونکي لېږد او په پرمختیایي صنایعو کې په کار بوختېدلو سره
د کلیو جذب کمېږي. په عین وخت کې افغاني اولسي لارې او عنعنې د زوال په حال
کې دي چې ښوونه او روزنه، هغه په اوسني نړۍ کې تاریخي اشتباهات برلي.

البته، دا هماغه حتمي ستونزه ده چې نور وروسته پاتې هېوادونه ور سره په برابره
یا زیاته اندازه مخامخ دي. د هغو څرګندو افغانانو په بریالیتوبونو باندې د تشویقېدلو
لپاره دلیل شته چې په تېره لسیزه کې زیاتو روزل شویو زده کړو په مقصد لر یعنې
تخنیکي موسسې کښلي دي.

په دې کې هیڅ شک نشته، چې د پښتونستان مسئله، به یوه اساسي انډېښنه پاتې
شي او د افغانستان او پاکستان د ښو اړیکو تر منځ به د یوه خنډ په توګه دوام وکړي.
په همدې دول د دغې مسئلې وروستی حل به بې له شکه د افغانستان او پاکستان په
واکمنانو پورې نه بلکې پخپله په پښتنو پورې اړه لري که چیرې پاکستان په پای
کې خپلې سیمه ییزې ستونزې حل کړي او د ناسیونالیزم بیا ورې احساس ته وده
ورکړي، کېدای شي چې دغه پښتانه یې نه بیلیدونکې برخه شي او به حتمي
ښکاره شي چې یوه ورځ به هغوی هرو مرو د افغانستان له پښتنو سره یو موټی شي.

په هر صورت، احتمال شته چې افغانستان به د سبا ورځې په اسیا کې مهم نقش
ولوبوي. افغانان چې شمېر یې زیات نه دی او طبیعي منابع او ثروت نه څه نه لري
تل د لوړې روحي او اخلاقي ځانګړي صفات ښودلي دي چې حتی د دوی د دښمنانو د
تحسین سبب شوي دي. ښایي چې تر هر څه زیات د یوه هېواد یوازنۍ ستره منبع
دغه، هېواد خلک وي او په دې برخه کې افغانستان په رښتیني توګه بډای دی.

## دالف - ضمیمه

## پښتنی قبیلې

دنفوس ارقام چي په لاندي دول ښودل کیږي تخمیني دي . قبایلی صفات مغه صفات دي چي ددوی دګاونډیانو له خوایې دوي ته نسبت ور کړل شویدی:

### ابدالیان

ابدالیان د۱۷٤۷م. کال راهیسې ددرانیانو په حیث شهرت لري : پښې : بار - کزی ، اڅکزي ، پوپلزي ، الکوزي ، نورزي ، اسحاق زي اوعلیزي . شمیر یې تقریباً یو ملیون تـه رسیږي اودادافغانستان یـوه خـورا مهمه پښتني قبیلـه ده ؛ محمدزایی دبارکزي پښې څېل دی چي په جنوبـی افغانستان کی پراتـه دي او دکندهار دښار په شاوخوا کی متمرکزه ده

### اپریدي

پښې : ادم خیل ، اکاخیل ، قمبرخیل ، کمرخیل ، ملـکـدین خیل ، سپاي ، کـوکي خیل اوزخه خیل . شمیر یې تقریباً ۲۵۰۰۰۰ ته رسیږي اودوی دخیبر د ڼاڅې پالاري تاریخي ساتونکی دي . اپریدي چي مېشته شوي بزګریامالداردي چي ددوی حرکت په دوبي اوژمي کی عمودي شکـل لري . یوسیکمن یـاغیتلی او تیري کونکی قوم دي اودپښتني قبیلو یوله زیـاتومهمـو قبیلو څخه ده.

### بابریان

یوه کوچنۍ قبیله ده چي شمیر یی تر ۵۰۰۰ څخه لږدی . داقبیله دیرۀ اسماعیل خان

ته نژدې موقعیت لري او مرکز یې په چاودوان کې دی . هغوی شتمن دي او
درناوی یې کیږي ؛ زیاتره یې دملک یاجایدادخښتنان دي چې په هغو کې غیر
پښتون اجاره داران نشته . بابړیان ښه تعلیم یافته‌خلک‌دي هلته ددوی په باب یوه
وېناشته ، «یو بیه‌قله‌بابړ دګیند سړ حکیم دی »

## بابیا ن

یوه دیره کوچنی قبیله ده چې شمیر یې‌تقریباً ۱۰۰۰۰ تنوته رسیږي او په کو-
ښه کې پرته ده .

## باجوړیان

باجوړیان دتر کاڼیانوپه نامه سره هم یادیږي ؛ پښې: محمودیان ، عیسی‌زي
اواسماعیازي . یوه لویه قبیله ده چې تقریباً ۱۲۵۰۰۰ نفوس لري اوزیا تره یې په
باجوړ کی پراته دي . هغوی میشته شوي بزګردي ، د جنګیا لیو په حیث یو ښه
شهرت لري اوپه دي نژدې کلونو کې یې پاکستان ته تکلیف ورکړی دی ،

## بنګښ

پښې : میرانزي ، سهیل زي اوبایزي . تقریباً ۲۵۰۰۰ نفوس لري اودپیښور
د کوهاټ درې په جنوب کې پراته دي . زراعتی کارونه کړي ؛ آرام اوپه سوله
کې ژوند کوي . ځینې له هغوڅخه شیعه مذهبه دي .

## بنوچیان

دبنو دښار ګوتی په شاوخـواکي متمر کزدي.شمیریې تـقریباً ۸۰۰۰۰ تنو ته
رسیږي اودزړه ورتوب په برخه کې یې د شهرت درجه ټیټه ده . زیاتره یې له
غیرپښتنی کورنی سره مخلوط شویدي .

## بړیڅ

دنفوسو شمیر یې‌تقریباً ۱۵۰۰۰دی. ځینې یې دافغانستان‌دښوراوک په‌سیمه کې‌پراته
دي او ځینې یې په‌بلوچستان کی.نري اوتوریعنی تردیره حده دبلوڅو په شان دي ،

## بهرامزیان

یوه زبنه، شیره کرچني قبیله ده چې نفوس یې تقریباً ۱۰۰۰ تنه دي . دوی همسایه دي چې د اپریدو تر حمایې لاندې دي .

## بهیتني (بیټني)

پښې : تاتا ، دها نااو یوراسپان. د ټانک او بنو په سرحدونو کې په غرونو کې واقع دي او شمېر یې تقریباً ۲۹۰۰۰ ته رسېږي . جګې ونې لري او نسري دي . هغوی مسر دوته ور ته دي خو د هغوی ټلک دښمنان دي .

## څمکني (ځکمني)

پښې : حاجي کور، پره خېل ،خواجه کهول، بدا خېل او خاني خېل . د کرمې په دره کې د اپریدو ختیځ ته او د سپکارام لړۍ په جنوبي لمنو کې پراته دي : تقریباً ۱۲۰۰۰ نفوس لري ، خلک یې غریب دي . دوی مېشته شوي بزګر یا مالدار دي چې د دوی حرکت په دوبي او ژمي کې یو شان شکل لري .

## داودزي

پښې : مندور ، یوسف او مانکي نفوس یې تقریباً ۳۰۰۰۰ دی او په صحیح دول سره د پېښور شمال او د کابل د سیند جنوب ته پراته دي.

## داوړ (دوړ)

شمېر یې تقریباً ۲۰۰۰۰ دی او د داوړ د درې په لوړو او ټیټو ځایونو کې موقعیت لري . خراب شهرت لري ، متعصب دي ، دوی مېشته شوي بزګر دي.

## دلازاک

شمېر یې تقریباً ۸۰۰۰ دی او صحرایي صالح ته نژدې د سند ختیځ په لوړو یخ کې اوسیږي د کرنې چارې سرته رسوي ؛ نور نو یوه منظمه قبیله نه ده ؛ بدخلک دي .

## درانیان

پښتي: بارکزي، احمکزي، پوپلزي، الکوزي، نورزي اسحاق او علیزي. شمیر یې تقریباً یو ملیون ته رسیږي او دادافغانستان یو ه خورا مهمه پښتني قبیله ده؛ محمد زا یې د بارکزي پښتنې خیل دی چې په جنوبي افغانستان کې موقعیت لري او د کندهار د ښار په شاوخوا کې متمرکزه ده.

## گلهونان (جلو نان)

تقریباً ۱۰۰۰۰ نفره دي. دسند په دوار و ښارو کې میشته دي که څه هم ځینې یې پښتو خبرې کوي، نور نو هغوي یوه پښتنني قبیله نه گڼله کیږي.

## گنداپوارن

تقریباً ۱۲۰۰۰ نفوس لري او د ډیره اسماعیل خان په لو یدیځ کې او سیږي. زیاتره یې ښاریان یا دځمکو خاوندان دي.

## گاودا ران

یوه ډیره کوچنۍ قبیله ده چې تقریباً ۵۰۰ غړي لري؛ تور یړ او او رکزیو ته همسایه ده.

## غر بنۍ

ادعا کوي چې دعربانو له پښتنه دي. دد غو شمیر تقریباً ۵۰۰۰ ته رسیږي او د کسرمې په دره کې او سیږي. یوه غیر مهمه قبیله ده.

## غلزي

پښتي: هوتکي، توخي، نا صر، اندړ، علي خیل او سلیمانخیل. احتمالې مربوطې پښتې یې شینواري او وردک دي. شمیر یې لږ ملیون څخه زیاتو کسانو ته رسیږي چې دا په افغانستان کې ترټولو لویه قبیله ده چې ددي ترڅنگه

سلیمانخیل ددی قبیلی خورالویه څانګه ده. د دوی مرکز په کتواز کې دی چې دافغانستان په شرقي برخه کې واقع دی. خو زیاتره لا هغوی څه څه کوچیان دي. په دغه قوي سپکمن او نعال قوم کې صرف د وحدت نشتوالی د ر انیان پریښی دی چې خپل تفرق تینګ وساتي.

## ګیګیاني

پښې: هر تسک او ځبر کې. د پېښور لر ډیډیځ ته پراته دي، تقریباً ۲۰۰۰۰ نفوس لري او زیاته رهیي زراعتی کاروونه کوي.

## ځدران

تقریباً ۶۰۰۰۰ نفوس لري او د خوست په جنوبي برخه کې پراته دي چې په افغانستان کې واقع دي. غریب دي خو متجاوز او جنګیالي دي.

## جعفران

یوه کوچنۍ قبیله ده چې د سند په لویدیځ کې میشته ده چې په بلوچستان کې موقعیت لري. شمیریې تقریباً ۲۰۰۰ ته رسیږي او زیات له بلوڅانو سره مخلوط شویدي.

## ځاځي

تقریباً ۴۰۰۰۰ دي؛ د پیوار کوتل او شترګردن غاښې ترمنځ په یوه ځنګل شوی سیمه کې ژوند کوي. غریب دي خو یر قوي او سپکمن قوم دی؛ د توری او په مقابل کې دښمن دی چې په اجتماعي توګه دهغوی لیری خپلو اندي.

## کاکړ

پښې: ثمرخیل *، سنتیان، ترغاره او سرغاره. تقریباً ۸۰۰۰۰ دي؛ په اهیب، لورلایي او پشین کې میشته دي. هغوی دومره زیات شهرت نه لري؛ برخلاف دهغو زیاتو پښتنو، دهغوی مشران زیات صلاحیت لري.

---

* داد لیکوال یوه تیروتنه ده. دا «ثمرخیل» نه بلکې «ځمکرخیل» وه.

## کانیسیان ( کاسیان )

یوه کرچنی قبیله ده چی تقریباً ۱۰۰۰ نفوس لری؛ په کوبته کی او سیږی .

## خلیل

پښې: متیزی، بروزی، اسحاق زی او سالارزی. د پېښور په جنوب او لرید بخ کي پراته دی. تقریباً ۵۰۰۰۰ خلک دی؛ زراعتی کاروته کوی د خپلو مشرانو زیات درناوی کوی چی دار باباتو یا خانانو په حیث شهرت لری .

## خسو ران

دخاصور په لری کي اوسیږی. تقریباً ۵۰۰۰ نفوس لری. لږ شهرت لری .

## ختیك

پښې: تیری، ترکی او بولاك دپیښور او دکوهات ختیځ ته پراته دی او همدارنگه د بنو دسیمی په لویه بخ کي هم میشته دی لږ تر لږه ۱۶۰۰۰۰ نفوس لری .له موسیقی او نځاسره دمینی په خاطر مشهوردی .زراعتی چاری سرته رسوی .

## ختران

ددیرهٔ غازی خان دپاسه په غرونو کي پراته دی. شمیر یې تقریبا ۲۰۰۰۰ ته رسیږی .هغوی تر زیاتی اندازی پوری له بلوڅی او غیرپښتنی عناصرو سره مخلوط شویدی او تقریباً خپل پښتنی هویت یی له لاسه ورکړیدی.

## خوستـــوال

دوه څانگی لری : سپین گوندی او تور گوندی چي د اسماعیل خیلو، مندوزیو، شملو، مولیو، تریزیو، سبریو، بکر خیلو او تنیو په پښو ویشل شویدی . د وی د بنو د کرښې ختیځ ته دافغانستان دخوست په ولایت کی ژوند کوی. شمیر یی تقریباً ۶۰۰۰۰ ته رسیږی .زیاتره یې د کرنې چاری سرته رسوی او شولې چی ترینه وریجی لاس ته راځی اوتمباکو کری .

## خوګیاڼي

دجلال اباد جنوب ته پراته دي او شمیر یې تقریباً ۹۰۰۰۰ ته رسیږي . دغه قبیله له درانیانو سره دنسب له پلوه دخپلوۍ ادعا کوي او زیاتره یې د کرنې چارې سرته رسوي . له خپل لویوالي سره سره یوه قوي قبیله نه ګڼل کیږي .

## کندي

یوه کوچنۍ قبیله ده چې ټانګ ته نژدې اوسیږي . شمیر یې تقریباً ۱۰۰۰۰ ته رسیږي . په سوله کې ژوند کوي . زیاتره یې پرونده دي . دوی سوداګر دي او دمالونو دحمل ونقل لپاره له اوښانو څخه کار اخلي .

## لوڼي

یوه کوچنۍ قبیله ده چې تقریباً ۸۰۰۰ نفوس لري او ټانک ته نژدې پرته ده ، یوه شتمنه قبیله ده ، زیاتره یې ملاکان دي او نور یې مالدار دي .

## لوڼي

یوه کوچنۍ قبیله ده چې شمیر یې تقریباً ۶۰۰۰ دی . دبلوچستان د لورهاني په سیمه کې اوسیږي . زراعتي کارونه کوي .

## مسود (مسیت)

پښې : علیزي ، بهلولزي او شمن خیل . شمیر یې تقریباً ۵۰۰۰۰ ته رسیږي . مسود ورزیرستان په مرکز کې اوسیږي . اصلاً شپنی کارونه سرته رسوي او په کیږدیو کې اوسیږي . دوی زیات دموکراتیک خلک دي او پښایي دسرحدي قبیلو ترټولو قوي او سهمناک وي . هغوی جګې ونې لري او نري دي او دغلچکیو جګړه مارو په حیث شهرت لري .

## مقبل

یوه کوچنۍ قبیله ده . تقریباً ۱۰۰۰ نفوس لري او د کرمې دره په پورتنۍ برخه کې اوسیږي چې دډیورنډ دکرښې په دواړو خواو کې پرته ده .

## مندوخیل

پښې: هادیزي او حیدرخیل. شمیر یې تقریباً ۸۰۰۰ ته رسیږي. دوی سندیمان کلا او ا پوزي ته نږدې او سیږي چې په بلوچستان کي دي. هغوی خپل پښتني اختصاصي صفات یا خاصیتونه ساتلي دي:

## مروتان

شمیر یې تقریباً ۶۰۰۰۰ ته رسیږي. دوی «دشگې» او «دسرحد» په مروتانو ویشل شویدي. دشگې مروتان یې په بیدیا کې چې دسند له سین سره سرحد جوړ وي اود کرمی په جنوب کي ژوند کوي دسرحد مروتان یې د وزیرستان په شرقي سرحد کي اوسیږي.

## مشواني

یوه کوچنۍ قبیله ده چې تقریباً ۸۰۰۰ نفوس لري. دغه قبیله دهزاره په سیمه کي او دجندول دشرقي سرحد په اوږدو کي اوسیږي او خلك یې غریب دي.

## محمدزي

باید ددراني قبیلې له محمدزیو سره گډ نشي چې دافغانستان شاهي کورنۍ ده. *

پښې: تنگي، شیرپاو، ترو تگزي، اتمانزي، رازار، چارسده او پړانگ. شمیر یې تقریباً ۶۰۰۰۰ دی. دسوات سین په لودیځه څنډه کي اوسیږي چې تقریباً داباږي کلا دجنوب په شل میلي کي موقعیت لري زیاتره یې شتمن بزگردي.

## برموند

پښې: ترکزي، حلیم زي، بایزي او خویزي. شمیر یې تقریباً، ۶۰۰۰ دی. دوی د کابل له سین څخه نیولي بیا دباجوړ ترسرحد ونوپوري سیمو کې ژوند

* څرنگه چې دڅورتر انقلاب دمخه محمد زی دشاهي کورنی غړی وو ځکه نوددی کتاب مولف دشاهي کورنۍ یادونه کوی. اوس دشاهي کورنۍ په نوم کومه کورنۍ په افغانستان کي نشته. (مترجم)

کوي او د دېورند د کرښې په واسطه په دوو څانګو ویشل شوي دي. زراعتي کارونه کوي. بر خلاف د هغو زیاترو پښتنو، د هغوی ځان زیات وا کلري. جنګیالي او ډېر ښه جګړه ماردي .

## کوز مومند

پښې: کیا کزي، موسی زي، داو زي، متني او سرکاڼي. شمیر یې تقریباً ۷۰۰۰۰ دي او په صحیح ډول د پېښور په جنوب کې او سیږي، کوز مومندوله خپلو برومومندو له خپلوا نو سره تماس له لاسه ورکړي دی دوی زراعتي کارونه کوي.

## ملاګوریان

په صحیح ډول د خیبر دري شمال ته پرانه دي. یوه کوچنۍ قبیله ده چې شمیر یې تقریباً ۴۰۰۰ ته رسیږي. د هغوی ځانونه له خپلو داره ماروګ'وندیانو څخه د زړه ور توب او اتحاد په واسطه خوندي ساتلي دي.

## نیازي

د بنو په ختیځ او د سند د سین په لویدیځ کې اوسیږي. دوی میشته شوي بزګر دي او شمیر یې تقریباً ۸۰۰۰۰ ته رسیږي. دوی د پښتنو په پرتله له پنجابیانو سره زیاته خپلوي لري. ښې تراندازي پوري چې پنجابي تقریباً د دوی د ژبې په حیث د پښتو ځای نیولی دی .

## اروکزي

پښې: دولتزي، اسماعیل زی، لښکرزی، مسوزی، محمداو علیزي. له دوی سره چې اوسیږي یو شمیر کوچنۍ قبیلې دي چې هغوی همسایه دي او داورکزیو ترحمایې لاندې دي چې علي خیل، ملاخیل مشیتان او شیخان هم پکښې شامل دي. دا یوه قوي قبیله ده چې بنایي ۸۰۰۰۰ نفوس ولري. دوی دخانګی، مستوري

